


# د افغانستان ژبې

او

# توکمونه

لیکوال

څېړنمل دوست محمد دوست

پښتو ټولنه

۱۳۵۴

د پښتو ټولنې د خپرونو
پرله پسې نومره «۲۰۹»



# دافغانستان ژبې

## او

## توکمونه

لیکونکی
څېړنمل دوست محمد دوست

خپروونکې
**پښتو ټولنه**

۱۳۵۴





# سریزه

د افغانستان د ژبو او توکمونو په باب دا لومړنی مفصل اوهراړخیز اثردی چه په پښتو ژبه لیکل شوی دی. په دې کتاب کی د پښتنو، بلوڅو، او رمړو، پرا چگانو، نورستانیانو او پامیریانو په باب ژوره څېړنه شوې ده اولرغونی آریایی ژبې لکه اویستا، سوغدی، پارتیانی، خوارزمی، زړه پارسی اونورې په ایتمالوجیک ډول له پښتو سره پرتله شوی دی. همدارنگه په دې اثرکې دژوندیو ژبو د تصنیف او د هغو دسیمو اودعربی اوترکی ژبو دراتگ په باب رڼا اچول شوې ده.

د کتاب مؤلف ښاغلی دوست محمد دوست په دې تحقیقی څېړنه کې ډېر زیات زحمت ایستلی دی‌اود پښتوژبې رابطه یې له نوروآریایی

ژبو سره دژبپوهنې د پرنسيپونو په رڼا کی ښودلې ده . که‌دغه اثر په انگلیسی یا کومه بله مهمه ژبه واړول‌شی په بین‌المللی سویه به د پښتوژبې دمعرفی‌کولو په لاره کې‌ستر خدمت وی .

څرنگه‌چه‌دا‌کتاب د پښتو ژبې دا نستيتيوت دتأسيس کیدو‌دسیمینار په ویاړ چاپ‌شوی‌دی او په دې سیمینار کی یونسکوهم برخه‌اخیستی ده ، ښايی‌چه‌دیونسکوله‌خواد پښتوژبې‌دموقعیت په‌باب دزیاتو څیړنو د پاره په بین‌المللی‌سویه هلې ځلې پیل شی .

نوموړی سیمینارته د بحث د پاره یوه‌نظریه وړاندې‌کیږی اوهغه نظریه داده چه پښتوژبه دهغوژبو ترمینځ چه هندو ـــ ایرانی بلل‌شوی دی دا تصال کړی ده یا په‌بله ژبه پښتو ددغو ژبو تر ټولو لرغونې ژبه ده ځکه‌چه د دواړو څانگو گډ خصوصیات پکښې لیدل کیږی .

پښتو ټولنه دا خپله وظيفه گڼي چه د گران هېواد دنورو ژبو ترڅنگ د پښتو ژبې د تاريخ او ژبنۍ جوړښت په باب پرله پسې څېړنو ته دوام ور کړی .

دتوکمونو په باب بايد وويل شی چه دنژاد اصطلاح ورو ورو خپل واقعيت اوارزښت له لاسه ور کوی او هغه وخت ليری نه دی چه دغه فصل دانترو پالوژۍ له کتابونوڅخه حذف شی . په دې اثر کې د توکمونو په باب څېړنه يوازې اکاډميک اړخ لری . زمونږ دملت بېل بېل قومونه ديوې ونې گلونه دی . داونه ددې هېواد په لرغونی خاوره کې زرغونه شوې ده ، د تاريخ په اوږدو کې يې ريښې ځغلولې دی ، د گډ ثقافت اوگډ وار مانونو په چينه خړوبه شوې ده ، او دزمانې په غېږ کی به دتل د پاره تازه او برومنده وی .

«در پېيم»

په پای کی ښاغلی دوست ته دد ې ارزښتناك
اثر په لیکلو سره مبارکی وایم او هیله لرم چه
په دې لاره کې نور پرمختګ هم وکړی .

په‌درناوی

ځیر نوال محمد صدیق روهی

د پښتو ټولنې رئیس



«ځلمورم»

# خوښبري

دښاغلی دوست دغه کتاب که څه هم ما پخوا په کابل مجله کی د جلا جلا مقالو په بڼه لوستلی دی مګر اوسنی شکل یې له پخوا سره توپیر لری، ځکه چه اوس له هره حیثه منظم او منسجم شوی او بشپړ شوی دی او ځینی برخې یې چه ضروری نه وی، پرېښودل شوی دی.

کله چه دښاغلی دوست له خوا په کابل مجله کی د افغانستان دژبو دڅېړنی لړۍ پیل شوه نو دښاغلو لوستونکو له خوا یې په ډېره خوښی استقبال وشو، چه له یوې خوا د کابل مجلې دمشترکینو شمېر زیات شو او له بلې خوا دعلاقه لرونکو له خوا دا هیله څو ځله تکرار شوه چه که دا مقالې چه زموږ د ګران هېواد دیوې اړخ څرګندونه ده، د کتاب په شکل ترتیب شی، بهتره به وی.

د همدې ضرورت له مخی ښاغلی دوست دغه تکلیف یو ځل بیا په غاړه واخیست او دادی اوس یې ګرانو وطنوالو ته دیو خوږ سوغات په توګه وړاندې کوی.

یوستل دی چه: «له هرڅه دځان پېژندل ګران دی» دښاغلی

«پښځم»

دوست کتاب زمونږ دګران هېواد داولس دژبو او توکمونوپه برخه کی یولوی تحقیقی اثر دی چه ددې کتاب په وسیله سونږ خپل اولس ، ملی تاریخ ، دخپل اولس ژبې اونورې کلتوری برخې په ښه توګه پېژند لای شو یا په بل عبارت سونږ خپل ځان پېژنو اوملی وحدت او ملی اتحاد ته سورابولی داخبره ټولو پوهانو منلې ده چه دانهوآر یایی ژبو ترمنځ دارتباط دلړی پیدا کول او په علمی توګه یې څېړنه دافغانستان دژبو او خصوصاً دپښتو ژبې د تحقیق څخه پرته نیمګړی او ناقصه ده . دهمدې ضرورت له مخې ډېرو غربی او یوڅوشرقی ژبپوهانو په افغانستان کی ژبنی تحقیقات او څېړنی کړی دی او ترخپله وسه یې پوره زیار ګاللی دی. مګر متأسفانه تراوسه پورې سونږ داقدرت نه دی پیدا کړی چه دخپل ځان پېژندنې په برخه کی لازم علمی او مترقی ګامونه او چت کړو .

ښاغلی دوست په دې برخه کی دنړی دلویو ژبپوهانو اوعالمانو دآثارو څخه استفاده کړې ده اودضرورت وړموادو په راپیدا کولو پسی یې ډېرې ستونزی پرځان منلی دی .

داخو ټولو لوستونکو او خصوصاً هغو ښاغلو ته پوره معلومه ده چه په اوس وخت کی دژبنیو مسایلو دڅېړنی او تحقیق له پاره ډېر سمعی او بصری لوازم ، کافی وخت اودحمل او نقل وسا یل په کار دی او بې له دې لوازمو څخه یومحقق نه شی کولای چه

دموضوع دحق دپوره اداکولو له پاره مستند مواد وړاندې کړي.
مګر متاسفانه چه ښاغلی دوست بې له قلم او کاغذ څخه نور هيڅ
لوازم نه درلودل او په تش لاس يې دې درانده کارته ملاوتړله
چه دادی په نتيجه کی ددهٔ دپېرو ستونزواو کړاوونومحصول ديو کتاب
په شکل ګرانو لوستونکو ته وړاندې کيږی. هيله ده چه ددې
قيمتی کتاب په لوستلو سره زمونږ دهېواد والو ترمنځ دملی وحدت
مزی لا پسې ټينګ او کلکشی اودغه علمی لار دنورو وطن دوستو
ځوانانو له خوا تعقيب او بشپړه شی. زمونږ په ګران هېواد کی
دتحقيق له پاره زښتی ډېری موضوع ګانی شته چه تراوسه پورې
نه دی څېړل شوی ګوندې په راتلونکی وخت کی زمونږ پوه
او حساس ځوانان دې برخی ته متوجه شی او په علمی توګه يې
وڅېړی. هيله ده له دې وروسته دهېواد دپرمختګ پهلارکیدنورو
حياتی ځانګو غوندې دنورو خلکو داړتيا څخه خلاص شو او خپل
ځان دنورو په سترګه نه بلکه پخپلو غړو لوسترګو وپېژنو.
زه ښاغلیدوست ته ددې علمی اثر پهوړاندې کولو سرهٔمبارکی
وايم اوپهدې برخه کی نور زيات موفقيت اوبرياليتوب ورته غواړم.

خير محمد
د کابل مجلې مدير

# لومړۍ خبرې

دغه کتاب چې دښاغلیو لوستونکو حضور ته وړاندې کیږي زما دڅلور وپنځو کلونو دڅیړنې او زیار محصول دی . داچې دغه څیړنه به زموږ ټولنې ته څومره ګټوره وي دهغې فیصله خپله لوستونکو او محققینو ته پرېږدم .

زه خپل دغه اثر چې زمادڅیړنې لومړی محصول دی هیڅکله بشپړنه ګڼم بلکې نیمګړ تیا وې هم لري چې دهغو لرې کول زما له لاسه پوره نه وو . دمثال په ډول :

۱ـ دبین المللی ترانسکریپسیون‌توری لکه(چ ، ځ، څ ، ښ،ږ، او نور) دیوې ژبنۍ څیړنې دپاره فوق‌العاده ضرور دی چې له هغو پرته ژبنۍ مسألې څیړل نیمګړې دي .

۲ — دژوند یو ژبو په باب زما داستفادې څه مأخذونه بهرنی دی . له یوې خوا زمونږ په کورنیو خپرونو کې داسې مواد زمالاس ته نه‌دی راغلی بلکې زما په خیال اصلا نشته چې دخپلو ژبو پــه باب ورنه استفاده وشی او له بلې خوادماموریت چو کاټاواقتصادی شرایطو دومره امکان ماته نه دی را کړی چې افغانی‌ټولې‌ژوندی ژبې په خپله وڅیړم چې دبهرنیو پوهانو داستفادې مورد شي.

«۱ تم»

دافغانی ژوند یو ژبو په باب که زما داستفادې مو رد بهر نی
ما خذونه وی علت به یې همدغه وی .

په هر صورت ما تر خپلې وسی زیار ویستلی دی چې دمطلوبو موضوع گانو هر کتاب ، هر مأخذ او هر مدرك ولټوم او تر دې چې د یوه مطلوب ټکی په لټون پسې ډیر زحمت وگالم .

دغه کتاب زما ابتکار او اختراع نه ده اونه زماشخصی اوعندی نظریات دی . دادنړی دسلگونو پو هانو افکار او دتتبعاتومحصول دی چې د ا یندو آ ریـا یـی ژ بـو پـه بـا بـېـعموماً اود باختری ژبو په باب یې خصوصاً وړاندې کړی دی اوما په لنډډول دلته راټول کړی دی .

ددغه کتاب زیاتې برخې د ( ۱۳۴۹ ) کال نه تر ( ۱۳۵۲ ) کال پورې د کابل مجلې په بیلو بیلو گڼو کې خپرې شوی دی بیا دلوستو نکو له خوا ښه هر کلی زه تشو یق کړ م چې په نسبتاً لنډډول یې ښاغلیو لوستونکوته په یوه اندازه منسجم ډول وړاندې کړم .

دمجلې په گڼو کې دافغانی زیاتو ژوند یو ژبو گرامری برخه هم وړاند ی شوی ده خو د کتاب دحجم دلویوالی له امله هغه د لته مارانه وړه . دضرورت په وخت کې لوستونکی کولای شی د کابل مجلې په دغو گڼو کې یې ولولی :

۱ ـ د کو ر دی ژبې گرامر، کا بل مجله د۱۳۴۹ کا ل د لړم

لیند ی ، ورغوسی گڼې .

۲ - دبلوچي ژ بې گرامر ، کا بل مجله . ۱۳۵ د چنگاښ گڼه.

۳-داورمړي ژ بې گرامر، کابل مجله . ۱۳۵ دتلې ، لړم ،لیند ی گڼې.

۴ — د پراچي ژ بې گرامر کابل مجله . ۱۳۵ دورغوسی ،سلواغې گڼې.

۵-دسونجاني ژبې گرامر، کا بل مجله ۱۳۵۱ دغبرگولی گڼه .

۶-دشو غناني ،روشاني ژ بې گرامر کابل مجله، ۱۳۵۱ دزمري گڼه.

۷ -دا یشکاشمي، واخاني ژبې گرامر، کابل مجله، ۱۳۵۱ د وږي گڼه.

۸ -دپشه يي گرامر , کابل مجله ۱۳۵۱ د لیندی گڼه.

۹-وټه پوري شو ،ماشتي ، گواربانې، کهواري ژبې ، کابل مجلې، ۱۳۵۱ دسلواغې گڼه

۱۰- کاتي، وا یگلي، اشکوني، پراسوني، کابل مجله ۱۳۵۲ کال دوري گڼه.

زه هیله لرم چې زما د غه کتا ب که د ا فغا نستا ن د ژ بو اوتو کمونو دڅېړنې اوتتبع په لاره کې یو بشپړ گام ونه گڼل شي خو زما اویا دنورو محققینو د راتلونکو څېړنو سره به ترزیاتې اندازې مرسته وکړا ی شي .

په همدې ملحوظ هیله من یم محترم لوستونکي که زما په دغه کتاب کې کومې نیمگړتیاوی گوری هغه ماته هم را په گوته کړي.

په د رنا وی

**څېړ نمل دوست**

پښتو ټو لنه

د تلې ۲۶ - ۱۳۵٤ کال

«لسم»

# سرلیکونه



«پوو لسم»

## څلورم پاړکی - (میدیك) ژبی



## پنځم پاړکی



## ضمیمه



« دوو لسم »

د نړۍ د ټولو ژبو حقیقي شمېر لا تر او سه نه دی څرګند ځکه چه له یوې خوا دژبو او لهجو (دیالیکتونو) تر منځه قطعي پولې لا تر اوسه نه دي تثبیت شوې او له بلې خوا یوزیات شمېر ژبې (خصوصاً په امریکا او افریقا کښې) لا نه دي څېړل شوې . په ټکلي ډول د نړۍ دژبو شمېر درې، درې نیم زروته رسیږي چه د هغو په جمله کښې تقریباً پنځوس ژبې د بشري ټولنې د ملیونو نفوسو د لیک لوست او افادې استفادې ژبې دي چه د هغو په جمله کښې پښتو او دری «فارسی» هم شاملې دي .

د نړۍ ژبې (او دیالیکتونه) یوتر بله د نسبي خپلوۍ له مخې کله په لویولویو کورنیو ویشل کیږي لکه اینډو اروپایی ، سامی ، تورکی او نور او کله یې له نورو ژبو سره خپلوي نه لیدله کیږي .

د افغانستان دژبو اکثریت اینډوآریایی دی . اینډو آریایی ژبې د اینډو اروپایي ژبو یوه څانګه ده چه نورې څانګې یې (سلاویانی، بالتیکی، جرمنی، رومانی، یونانی، کیلتی، ارمیانی، خیتی، البانی) دی .

اینډو آریایی ژبی یا په دریو لویو گروپونو (هندي آریایی (۱)، داردی) ویشل کیږي . دافغا نستان زیاتی ژبی د (آریایی) گروپه دي . د آر یـا یـی ژبو لـه پـاره درې تا ر یخی مرحلی او درې اصطلا حگا نی منل شوی دی :

## ۱ - لرغونی ژبی :

دآینډو آریا یی ژبو د بیلتون له مرحلې (تقریباً لەدوەزره کاله قبل المیلاد لەپیله دڅلورمی ،دریمی میلادي پوری) . ددغی مرحلې ژبې له اویستا ، زړی پارسی سکیفو سرما تی (دتورې بحیری په شمالی لمنو کښی(اتمی قبل المیلاد نه د میلادی څلورمی پورې) ، میدي ژبه (چه لږ شمیر کلمی یې دهیرودوت یونانی مؤرخ په تالیفاتو کښی ساتل شوی دی ) .

## ۲ - منځنۍ ژبی :

دقبل المیلاد دڅلورمی ، دریمی نه د میلادی اتمی ، نهمی پوری ، داژبی له (باختري ، ساکی ،سوغدی ، الانی، خوارزمی ، پارتیانی منځنی پارسی) نه عبارت دی (چه په دغه کتاب کښی څیړل کیږی ) .

## ۳-معاصرې ژبی:

له میلادی اتمی ،نهمی نه ترنن ورځی پوری .

زه اصلا هغه ژبی دلته څیړم چه په افغانستان کښی موجودی وی او یا اوس هم نسبتاً زیات شمیر ویونکی لری . یولړ داسی ژبی هم لږ څه څیړم چه دتاریخی جریان او یا دژبو د طبقه بندی له مخی د افغانستان دژبو سره خاصی اړیکې او روابط لری، لکه خوارزمی، اوسیتی،زړه پارسی او نورې .

دلته زیاتی آریایی ژبی ترممکنی اندازی څیړل شوی دی-د کومو

---

۱ - هندی ژبې هم آریایی ژبی دی خود باختری او پیرسیک ژبوسره دتوپیر دپاره په هندی با هند یک یادیږی .

خیرل چه ما بی ضرور ته ګڼلی او دهغو د بشپړی څیړنی نه تیر شوی یم دلته یې په لنډه ډول وړاندی کوم :

### ۱- یز غلا می ژ به :

( د شوروی پا میر دیز غلام په دره کښی)د پا میری ژ بوله څا نګی.

### ۲- لوری او بختیاری دیا لیکتو نه :

دایران په جنوب لویدیځ کښی د کوردی دسیمی په ګاونډیتوب کښی دلوري او بختیاری تو کمونو ژ بی دی چه دنفوسو شمیرېی له یوه ملیون څخه تر یو ملیون او پنځه سوه زرو تنو پوری رسیږی . دغه دیالیکتو نه لاتر اوسه لیک نه لری .

( د پیر سیک ژ بو څخه دي ) .

### ۳- تا تی ژ به :

په شوروی ازربایجان کښی او څه یی په داغستان کښی موجوده ده . دوه اساسی دیالیکتونه لری : الف-دآزر بایجان دتاتانو ژ به . ب : دداغستان دیهودوتاتانو ژ به (پیرسیک ګروپ) .

### ۴- تالیشی ژ به :

په شوروی آزربایجان کښی او څه یی دایران په شمال لویدیځ کښی هم موجود دی . دټولو نفوسو شمیر یی تقریباً (۱۵۰) زرو تنو ته رسیږی (میدیک ګروپ) .

### ۵- غیلانی اوماز ندرانی دیالیکتو نه :

دغه دیا لیکتو نه سره ییخی څیلو ا ن او د کسا سپین دبحیری په جنوبی غاړو کښی پراته دی . د دواړو دو یو نسکو شمیر تقریباً یو ملیون ته رسیږی . غیلا نی د ( ګا یشی ) په نا مه یوه وړه بله لهجه هم لری . دغه ژ بی اوس لیک نه لری خو پخوا ماز ندرانی لیکلی ادبیات او لیک درلودل (له میدیک ګروپ څخه دي) .

## ٦-دایران مرکزی دیالیکتونه :

چه لیک نه لري او تراوسه ښه څیړل شوي هم نه دي ، دجغرا فیوي موقعیت له امله دایر ان د مر کز ي دیا لیکتونو په نا مه یادیږي او هغه دادي: نتانزي، خونساري، سیدي، یزدي، نایینی، خوري، سیمنانی، لا سګیردي ، سورخی ، سنګیساري ، شیمیرزی ، کاروانی او نور (چه غالباً دمید یک له ګرو په دي) .



دمعاصر افغانستان پەخاورەکې دننه اودهغه پەګاونډیو نږدې سیمو کښې ارکیا لوژیکې پلټنې اوڅیړنې اود هغونتیجې محققینو ته دا قناعت ورکوی چه افغانستان دلرغونو آریایی قومونو ځانګواو ټاټوبی و بولی .

دافغانستان غرنی جغرافیوی موقعیت دهندوکش دغرنیو لمنو په سمڅو ، غارونو او پناور کوونکو لویو ډبرو او کمرونو کښې د ابتدایی انسان دژوند امکانات ، پەبلخ ، کره کمر ، از ار سوم اود هندوکش په دواړو خواو کښې دلرغونو استوګنځایونو ډبرینو آلاتو کشف او نور تاریخی شواهد داټول دمؤرخ سره بی طرفانه قضاوت پیداکوی چەدمعاصر افغانستان سیمه دلرغونو آریایی‌قبایلو ځانګو او ټاټوبی وبولی .

تاریخی یولړ موثوق اسناد ددی شاهدی ورکوی چەد آریایی قبایلولومړی ټاټوبی بلخ اود هندوکش دواړه خواوې دی اولەدغه ځایه لومړی هندی آریایی قبایلو دختیځ او ایرانی آریایی قبایلو وروسته دلویدیځ خواته مهاجرت وکړ اولەدغه ځایه آریایی قبایل پەڅلورو ګروپو (ایرانی) (مرکزی یاباختری)، (هندی) او(داردی)

وویشل شول (۱) .

څرنگه چه هندی آریایانو نسبت ایرانی قبایلو ته څوپیړی پخوا (تقریباً دوه زره قبل المیلاد) مهاجرت وکړ اوایرانی قبایل څوپیړی نور هم په باختر کښی پاتی شول ځکه نو دباختري ژبو خپلوي دهندی ژبو په نسبت دایرانی (پیر سیکو - مدیکو) ژبوسره زیاته ده . لهدغه ځایه دواړه گرو پونه کله کله د (آریایی) اودرې واړه د (هندو آریایی) په نامه هم یادیږی .

ځینی محققین باختری (مرکزی آریایی) اوایرانی (پیرسیک)ژبی د (ایرانی) په نامه یادوی.ددوی مطلب له (ایرانی) څخهآریاییدی نهدمعاصر ایران موجوده جغرافیاییسیمه.اوس چهایران دیوی خاصې سیاسی جغرافیوی سیمېنوم دی ځکهنودابهیوهاشتباه وی چه باختری ژبی دپیرسیکو ژبوسره یوځای د (ایرانی) ژبوپهنامهیادې شی.مثلاً پښتو چهد تاریخی او جغوافیوی شرایطو په لحاظ دایرانی او هندی ژبوترمنځه موقعیت لریدلغت ، گرامر اوفونیتیک پهلحاظ ددواړو گرو پونو ترمنځه دوصل دکړی حیثیت لری . دهغی یو اړخیز نسبت ایرانی یاهندیته پهعلمی اساس بناء نهښکاری .

ددې موضوع یادونه بهپه لنډ ډول وروسته راشی.

څرنگه چهزماد څیړنو مورد یوازېدافغانستانژبیدينودهندیک گروپ بحثپههمدغه ځای پریږدم.

پهآریایی ژبو خورا لرغونی لیکلی مواد کهڅههمدایرانپه لویدیځو غرنیو ولایتونو کښی (پهزړهپارسی )لاسته راغلی دېخودمحققینو په عقیده داسیمه هیڅکله دآریایی قبایلو لومړنیټاټو بی نــه شی کېدای.

---

۱ - ددارډی قبایلو بحث پهخپل ځای کښې راځی .

دلرغونو ژبوپه باب تاریخی اسناد ددې شاهددي چه دمیلاد نه درې اودوه زره کاله پخوا دایران پهدغو لویدیځوسیمو کښې داسې قبایل اوسیدل چهدهغوی ژبی‌نه یوازې داچهله آریایی بلکی د ایندو یوروپی ژبوله‌لړی څخه نه‌وې. دغه قبایل له(ایلامیتو،دکاروان او کرخې پهوادیګانو کښې‌چه‌نن دخوزستان‌په‌نامه‌یادیږي)،(کاسیتو بابلی (کاشو) او لولوبی) (۱) قبایلو څخه عبارت وو. یوازې د قبل‌المیلاد زرو کلونو په‌شروع کښې دغوسیموته دآریایی‌قبایلو د مهاجرت او هلته دمیشته کیدلو‌نخښې لیدل کیږي.

له‌دغه‌وخته وروسته دایران‌په‌شمال‌لویدیځ کښې‌دمید ي قبایلو لوی دولت جوړ شو چه‌د(میدیا) په‌نامه په‌تاریخ کښې‌یا دیږي او مرکزیې ننني‌همدان ؤ.تقریباً همدغه وخت‌دقبل‌المیلاددنهمی پیړی‌په نیمایی کښې‌دپارسیانوپه باب شواهد په‌تاریخ کښې‌لیدل کیږي‌چه د فارس تر خلیجه ورسیدل اوپه‌دغه خلیج یی‌خپل نوم کیښود(۲).

دآریایی قبایلو بل ګروپ (ساك) په‌قبل‌المیلادزرو کلونو کښې د توري بحیرې‌له ساحلونوڅخه دچین‌تر سرحدونو خپور شو.

هغه آریایی قبایل چه‌په خپل اصلی ټاټوبی کښې‌پاتی او(مرکزي آریایی)یا(باختري) ګروپ‌تشکیلوي:

باختریان: دامو‌پاسنی اومنځنی برخه‌د باختر په ولایت کښې.

پارتیان: د(کسپین دبحیرې په‌جنوب ختیځ کې‌دخراسان‌په‌شمال اودمنځنی اسیا په‌جنوب لویدیځ کښې‌د(پارثاو)په‌ولایت کښې.

آریا): داریرود په‌غاړه په(هرایوه) ولایت کښې.

سوغدیان:دزرافشان دسیند په‌جریان اوپه‌ورشیرمه‌سیمو کښې د (سوغدا) په‌ولایت کښې.

---

1— Elamit—s, Kassit-s (kash shu), lullubi-s.

۲ـ (ایرانی‌ژبی) ۳۳ـ۳۴ مخونه.

خوارزمیان: دامو په‌لاندنی جریان کښې د(خوارزم) پولایت کښې او دسا کودقبیلې یوه برخه.

جرمنی نامتو ژبپوه او محقق اګوستین شایخر عقیده‌لري چه معاصر افغانستان او هغه ته ورڅیرمه سیمه نه‌یوازې دآریایي قبایلو او ژبو بلکې داینډو یوروپي قبایلواوژبو ځانګواولومړی‌ټاټوبی‌دی. دادي ددغه محقق‌دلیکنې دیوې برخې‌لنډ مطلب:

«... هغه اینډو یوروپي اولسونه چه څومره ختیځ ته نژدې او یا په بیدو ختیځ کښی‌دي هماغومره یې‌ژبه لرغونې ده‌اولرغونې صفات ډیرلري‌او څومره چه‌لویدیځ‌ته نژدې‌او‌یا بیدو په لویدیځ کښی دي هماغومره یې‌ژبه لرغونې خواص لږلري. سلاویانی‌او جرمنی قبایلو د لویدیځ خواته‌ترټولولومړی او بیا ورپسې‌یونانی، ایټالوی- کلتی‌قبایلو مهاجرت‌و کړ.

پخپل ټاټوبی کښې‌له پاتې‌شویو آریایانو څخه‌هندی‌قبایلو جنوب ختیځ ته‌مهاجرت وکړاو‌ایرانی‌قبایل‌دجنوب لویدیځ‌خواته‌خپاره‌شول. او په‌دې‌ډول داینډو یوروپي قبایلوټاټوبی دمرکزي آسیا د غرونو لړۍ‌دي».

نوموړی محقق لیکی: «هندي قبایلونسبتاً وروسته‌په‌مهاجرت لاس پورې‌کړ.دوی‌له خپل نوي ټاټوبی څخه هغه ولسونه وشړل چه له اینډو‌یوروپي‌تو‌کم‌څخه نه‌وو اودهغوی له‌ژبو یې‌څه‌خصوصیات په خپلوژبو‌کښی‌واخیستل»(۱)

ددغه جرمنی نامتو ژبپوه‌له‌لیکنې په‌څرګند‌ډول معلومیږي‌چه‌دده په‌عقیده داینډو‌یوروپي قبایلولومړی ټاټوبی معاصر افغانستان‌او هغه ته‌ورڅیرمه سیمه‌ده.

---

۱-(دنولسمی او شلمې پیړی‌دژبپوهنې تاریخ) لومړی‌ټوك ، مسکو ۱۹۶۳ کال ۱۰۸-۱۰۹ مخونه.

**آر یایی ژ بې :**

کله چه دآر یا یي ژ بو نوم اخیستل کیږي په هغو سره مطلب کله هندو آر یا یي (پیر سیک ـ لوید یځی باختري ـ مرکزي او هندي ختیځی) ژ بې وي . او کله کله ور نه مطلب یوازې باختري او پرسیک ژ بې وي چه په عنعنوی ډول د ( ایرانی ژ بو ) په نامه هم یا د یږي . (ایرانی ژ بې ) دغو گرو پونوته و یل یوازې یوه اصطلاح ده چه په علمی دلیل برا بره نه ده .

یعنی که پیر سیکو ژ بوته (ایرانی) وو یل شی، مجازلري اما باختري هیڅکله ایران ته نه شی منسوبیدلای. ځکه نودغه ډله ژ بې زه د(آر یا یی) په نامه یادوم . اوددر بو اړو گرو پومجموع (هندوآر یا یی) بولم.

آریا یی سړې ژ بې دادي :

**او یستا :**

( دلرغونی بلخ او دزردشتی دین دمقدسو کتا بونو دلیک ژ به )

**منځنی پارسی :**

(دسا سانی دولت رسمی او دولتی ژ به) .

**سو غدی :**

( د زر افشا ن د دري دلر غونو او سیدونکو ژ به ) خوار زمی (دلرغونی خوارزم، دامودلاندینی برخی ژ به).

**باختری:**

( دلرغونی باخترژ به چه په یونا نی الفبا یی کتیبی موندل شوی دي).

**سا کی :**

دلرغونو سا کو ژ به ( چه کتیبی یی په تورفان کښی موندل شوي) داټولی هغه ژ بې دي چه یولړ کتیبی یی د نړی دعلمی ټولنو په لاس کښی موجودې دي.

تاریخ دیولړ نورو ژ بو دموجودیت شواهد هم په لاس کښی لري :

**میدی ژ به :**

( دلر غونو میدي قبا یلو ژ به چه په اتمه قبل المیلاد پیړی کښی یی یو ځا نگړی دولت د ایران په شما ل غرب (همدان) کښی جوړ کړی ؤ).

**سکیثی ژبه** : (دهغو جګړه مارو کوچیانو ژبه چه د توري بحيرې او ازوف بحیرې ترمنځه سیمه کښې دچین ترسرحد و نویی مهاجر تونه کول).

**پارتیانی** : ( دلرغونی (پارثیا) ژبه (چه دار شکانو په دورو (۳-قبل المیلاد -۳-میلادی): کی دټولی پارتیا د شاهی قلمرو (هم په ایران او هم په منځنی اسیا کښې )دولتی ژبه شوه.(۱)

تاریخی شواهد او مقایسوي ژبپوهنه ثابتوي چه آریایی ژبې او لهجې سره دخپلوۍ لرغونی رابطه لري او دیوې ستې (آریایی) بیلی بیلی څانګې دي . مقایسوي ژبپوهنه دغه خپلوي هم دلغت او هم دګرامراو هم د فونیتیک په ساحه کښې ښیي . هماغه ګډ ژبنی خواص چه دغه ټولی یا دې شوې ژبې یې لری ژبپوهانو ته اجازه ور کوي چه دا ټولی یادې شوې ژبې دیوې ستې ښاخونه و بولی -دغه ستې ته اصطلاحاً (آریایی ژبه) نومیږي چه دهغې تاریخ ډیرلرغونی ګڼل کیږي او ددوه زره قبل المیلاد تر مخه و او لیکل شوې مواد ترې پاتی نه دي. ددغې (مور) ژبې نه لومړی نورې ژبې دلهجو او دیالیکتونو په ډول وزیږیدې او دوخت په تیر یدو هر دیالیکت دځانګړې ژبې په حیث منځ ته راغی . دغه په څانګوویش او انشعاب متوازي حیثیت نه لري . ډیرې ژبې له منځه لاړې دځینوو یونکی ډیرزیات او دځینو بیخی لږدی ځینې څنګه او څنګه دي .

دتاریخی ،اجتماعی،جغرافیوی شرایطو سره سم دټولو آریایی ژبو انکشاف یوشان او یوه اندازه نه ؤ.همدارنګه په خپلو کښې دژبو ترمنځه دخپلوۍ نسبت هم ډول ډول ؤ.

ځینی ژبې له نورو بیخی لری شوې دي. ځینی نورو ته له یوه یا بله اړخه نژدې پاتی شوې. ددغو ژبو ترمنځه لږیا ډیرلریوالی چه په ابتدأ

---

۱-پورته مطالب: ایرانی ژبې ۳۴،۳۵ مخونه .

کښې يې د ډياليکټ حيثيت لاره، څومره چه ژبې د تاريخي تکامل او ځانګړيتوب خواته پرمخ تللې هماغومره زياتيده او نن داسې مرحلې ته رسيدلې چه ديوې ژبې ويونکې مثلاً داوسيتي ژبې ويونکې په بلوچي نه پوهيږي او بالعکس . ځينو تاريخي او اجتماعي شرايطو دژبو لغوي پانګه هم له نورو څخه او بشپړه کړه چه د يولړژبو ترمنځه يې بيلتون لازيات کړ .

مثلاً پښتو ، فارسي، کوردي او ځينې نورې داسلام د راتګ او دعربې ژبې دسيادت سره په عربي لغاتو داسې بډاى شوې چه څپل زياتګه او بومي لغات يې له استعماله وغورځول او بالاخره هېرهشول. بالعکس په اوسيتي کښې دعربي کلمواندازه د ګوتوپه شمارده او داځکه چه د پښتو، فارسي او کوردي ويونکي سيمې اوېر دهوختونه دعربو د مستقيم تسلط لاندې وې. اما په قفقاز کښې د اوسيتينيانوسيمه دعربو دنفوذ نه په څنګ وه .

يوبل لوى عامل چه دغه ژبې يې يوتربله سره لرې کړې دي هغه دژبو غير مساوي پراختيا ده، په دې معنا چه يولړژبو څپل لرغوني خصوصيات په زياته اندازه ساتلي دي او بل لړ ژبو هغه په زياته اندازه له لاسه ورکړي دي .

مثلاً پارسي ژبې دعربو دفتوحاتو ( او ومه عيسوي پيړۍ) تروخته لرغوني اسمي خصوصيات (او ښتنې) جنسيت (مذکراو مؤنث) او ګرامري حالت (فاعلي او مفعولي) دضمير تصريف تقريباً بشپړله لاسه ورکړي وو . اما بالعکس پښتو ژبې دغه ټول لرغوني خصوصيات په زياته اندازه لاتر اوسه په څپل ځان کښې ژوندي ساتلي دي (۱) .

يوبل عامل چه آريايي ژبې يې يو تربله سره لالرې کړې دي هغه دژبو ترمنځه جغرافيوي موقعيت او دنورو سره او ږده تماسونه دي .

---

۱- دزيات تفصيل دپاره په دې باب (ايراني ژبې) ۱۸-۱۹ مخونه مراجعه و کړئ .

دژبو دانکشاف تاریخ ددې شاهدی چه هره یوه ژبه دخپلې ګاونډۍ ژبې نه یوه زیاته اندازه ژبنۍ مواد اخلي او ځان پرې بډای کوي او یوه زیاته اندازه مواد ورکوي او لبوترلبره خپل هغه ژبنۍ مواد خوندي ساتي چه په ګاونډۍ ژبه کښې ژوندي وي. په آریایي ژبو کښې ددې موضوع ډیرښه مثال پښتو ژبه ده چه دهندیک او پرسیک ګروپونو تر منځه دوصل دکړۍ حیثیت لري، دواړو خواوته یې خپل زیات شمیر لغات هم ورکړي او هم یې ترې اخیستي دي .

## آریایي ژبې د تاریخ له مخې :

دآریایي ژبوویش دتاریخ دزده کړې له پلوه له هغې مرحلې شروع کیږي چه هندوآریایي ټولنې سره بیلیږي. دمیلاد نه تقریباً دوه زره کاله پخوا آریایان(باختریان او پارسیان)دهندوآریایي ټولنې نه جدا کیږي او په ځانګړو پراختیاو پیل کوي .

تاریخ دآریایي ژبودانکشاف دوره په درې مرحلوو یشي :

۱- دلرغونو آریایي ژبو عصر :(دهندي ژبو نه دبیلیدلو څخه نیولې دقبل المیلاد څلورمې اودریمې پیړۍ پورې ) .

دزړې پارسي او اویستالږ څه مواد ددغې مرحلې له وروستیو پیړیونه پاتې دي .

۲ - منځنۍ آریایي ژبې:(دقبل المیلاد څلورمې-دریمې پیړۍ نه نیولې دمیلادي اتمې، نهمې پیړۍ پورې) . داوخت دمنځنۍ پارسي، سوغدۍ پارتیاني، منځنۍ پښتو(باختري) اونورو کتیبې موجودې دي چه زیاته برخه یې ددغې مرحلې وروستیو پیړیوته منسوبیږي .

۳- داتمې ،نهمې میلادي نه ترموجوده مرحلې پورې چه ژبو ته یې تر مخه اشاره وشوه .دآریائي ژبوتر منځه بیلتون لاهماغه وخت زیږیدلی ؤ چه آریایي قبایل په خپل منځو کښې او سیدل او مهاجرت یې لانه وکړی .

د دغو قبا یلوتر منځه داقتصادي، کلتوري او سیا سي رو ابطو سستوالی ددې عامل شوچه دوی یوه ژبه‌ونه سا تلی‌شی او په بیلو بیلو دیا لیکتونو(لهجو) او بالاخره په بیلو بیلو ژ بوخبری‌و کړي. له بله پلوه دغه قبایل دتا ریخی‌او کلتوري شرایطو،دعشیروی او ژ بنی‌چا پیریا ل په لحا ظ هم‌سره بیل بیل وو .

ځکه نو دغه ټول د دی عامل شول چه آریایی ژبی په خا صو ګروپونو وویشل شی .

پا رسی ،میدی او هغه‌آریا یی‌قبا یل چه‌دنن‌نه تقریباً‌دری‌زره کا له پخوا دایران لوید یځوغرنیو سیموته و کوچیدل له‌دغه وخته‌دپیرسیکو او باختري ژبوقبا یلوبشپړ بیلتون منځ ته‌راغی‌چه دژ بو کامل بیلتون هم‌وربا ندې بنأ دی . ددوی او هغوی ترمنځه لویې‌سیرې اووچ ډا ګونه‌واقع شول چه‌تیریدل ورنه‌ډیر ګران‌وو. ددغه‌واټن په‌تاریخی پولو کښی د (دشت لوت)او(دشت کویر) نومونه دیادونی‌وړدي .

دجنوبی‌اروپا سکیفیان (یا سکیتیان)هم دغه شان‌له‌خپلو (هیوادو الو) جلا شول . دد غو آریا یی قبا یلو دژوند شرایط نور په ډول ډول ووچه دژ بومقدرات هم‌پرې بناوو چه دلته‌وړاندې کیږي .

## دآر یا یی ژ بو خا نګی :

معا صره ژ بپوهنه دتاریخی مقا یسوي ژ بپو هنی په حکم آر یا یی مړې اوژوندی ژبی‌اودیا لیکتونه په‌د وولو یولویو خا نګو و یشی چه‌هره‌یوه‌یی‌بیادوه دوه ښاخونه لر ی :

لومړی باختر ی ـ الف جنوبی : باختری،سا کی،پښتو،اور مړی، پراچی (۱)اوپا میری ژ بی .

---

۱ـ اور مړی‌او پراچی‌یولړ محققینو په (میدیک) ګروپ کښی شا مل بللی دی وروسته یې‌بحث راځی .

ب: باختري شمالي: سوغدي، يګنوبي خوارزمي، اليانی او سيتي .
دوم : الف : ايراني جنوبي: زړه پارسي، منځنی پارسي، نوي پارسي، تاتي، لوري ، بختياري ، کومزاري ...
ب: شمالي: (ميدي) کوردي (د کوران ، زازا او نورو لهجو په شمول) بلوچي، تاليشي، غيليانی (دمازندراني لهجوپه شمول) دايران مرکزي ديا ليکتونه او جزءاً دفارس دايالت ديا ليکتونه .دغه ګروپ ته (ميديک) هم وايي .
داويستاد لرغونو متونوتجزيه اوتحليل ښئي چه بايد په باختري ګروپ کښې ونيول شي .وروستني متنونه يې چه دساساني دورې پورې مربوط دي له دغه ګروپه څه لرې ښکاري .
ميديک (شمالي ګروپ ) داسې ژبې خصوصيات لري چه له يوې خوا جنوبي پرسيک ژبوته هغه نژدې کوي خوله بلې خوادباختري ژبوسره يو لړ ګډ خصوصيات لري چه باختري ګروپ ته نژدې کيږي .
لکه چه ترمخه ورته اشاره وشوه دپيرسيکواو باختري ژبودو يونکوترمنځه ډول ډول لريوالی موجود و، اولويې دښتي يې ترمنځه واقع وې ځکه نودژبې مقايسې په لحاظ دواړه ګروپه سره بيل اودلغت ، ګرامر او فونيتيک په لحاظ سره نه شي يوځای کيدلی.
دادي يولړ لغوی مواد چه باختري ژبې دپيرسيکوپه مقابل کښې ديوه ګروپ په حيث سره يوځای کوي.

## لومړی دلغت په ساحه کښې:

**پښتو** :(اغوندل ، اغوستل) مونجانی(اغوند-اغوست) ، اشکاشمي (اغود-اغوست) ، يازغولامي(نوغوند- no ghwand نو اغوست ) ، اوسيتي ( اغوند، اغوست) پراچي (اغوند، اغوست) اورمړي (پرغون) سوغدي(غوند، غوست ) يګنوبي ( نيغوند )، خوارزمي ( انغوند)

پا رتیا نی (نغوند ـ n—gwand )، سا کی(همغون همغوست) (۱)
ددې کلمی لرغونی(ریښه (gud) پټول ، اغوستل )ښوول شوې ده .
په سا نسکر یت کښی دا کلمه د (—gudhyati) پټو ل ، پنا ور کو ل۔ gudheraa پټو ونکی پنا ور کوونکی) (۲) ده .

**پښتو** : (له:۔لکه له کوره ،تر....)اشکا شمی (له) مو نجا نی(له) ایتمولو ژیک قا مو سونه دلته د (ل) غږ د (د) دغږ او ښتی بڼه گڼی او لرغونی آریایی ریښه یې(هده ـ hada ) گڼی چه په دې ترتیب د پښتو (د۔لکه د کورو نه تر....) دتور فا نی، پهلوی او او سیتی ( اد۔ ad سوغدي (دون۔ dwn اویستا۔هده)زړه پارسی ( هدا ـ hadaa) زړه هندی (سدهه ،سهه)له یوې ریښی دي (۳).

**پښتو**: (پی۔ماسته )سریکولی (پی، پود —pay pud) ، شو غنا نی (پیه۔پود piy—pud)سنگلیچی(پو۔ pu )،ایدگا(پیو۔ (pio) یازگولیا می (پیو ـ piw )دا کلمه په اویستا اوزړه هندی کښی دپو ـ (pu) په بڼه مو جوده ده اود (خوسا) معنا ور کوي چه په پا میري ژ بو کښی همدغه معنا افاده کوي او د(پیو) لازمی صفت دی . د(پنیر) کلمه هم لـه دغـی ریښی ښکا ري .

**پښتو**: (وړ،وړ یا)واخانی یور (یور —ywar وړ،غوره)خوارزمی (ywur) انتخابول،غوره کول)سوغدي(یور (ywar) ، بیلو ل ) بیلول پا رتیا نی (WWR) اویستا(ور۔ (Var) ۔غوره)اوزړه هندي(ور۔غوره،

---

۱۔ دا وسیتی ژ بی تا ریخی ایتمولوژیک قا موس ۳۸-۳۹ مخونه.
۲۔ په او سیتی ژ به یادونه مؤلف فرانسوي ختیځ پېژ ند و نکی بینو ینبیست ۹۳ مخ .
۳۔دا وسیتی تا ریخی ایتمولوژ یک قا موس ، ۲۱۰ مخ .

منتخب) (۱).

**پښتو:** (وژل-دحیوان ،اور)سریکولی ( وزیو —wazew )داور رنیا - سړه کول شوغنانی (ویزیو - wiztw وژل) مونجانی (وزوو- uzow وژل - اور )یـازگولیا مې(اوزیـو- wziw وژل داوررنـا) ساکی (بویسو - —bu—yasu سوه کول و ژل).

**پښتو:** (شین) اورمړي(شین) یازگولیامې(شین) اید گا(اخشین) اوسیتی(اخسین ) کوردي (شین )ساکی(اښښینه )سوغد ي ( اخشین) اویستا(اخشینه - axshena .)

**پښتو:**(و ابښ،و اښې، سرو اښې-تښې) شوغنانی(و ابښ،و اښې)سنگلیچې (وو بښ -و اښې )پراچې (با ش-و اښې) ،اورمړي ( بیش،و اښې) اوسیتی (بوس-اوښې).په‌تور کی ژبو کښې هم‌د (بوش bosh) په بڼه د(تښې) او(و اښې) په معنا کلمه لیدل کیږی.

**پښتو:** (تو ږل)شوغنانی(تیش)مونجانی (تیژ) یگنوبی( تش-توش) سوغدي(تش-تشول) یازگولیامې(تښت)و اخانی (تش)مو نجا نی (تشر- لنډول،توږل ) اویستا (تش-غوښول) زړه هندي (تکش -غو ښول) . د پښتو(تشول) او (تښځ همد ارنگه‌دپارسی‌تیشه)هم له‌دغی‌ریښی‌ښکاري.

دا کلمه‌په اینډو یوروپی‌نوروژ بو کښې هم‌ثابته ریښه لري خود مطلب دنه او ږدولو په‌غرض ورنه‌تیریږم.

**پښتو:** (پوول -دمیږو،اوزو ،غواو اونورو څرول) و اخانی (پوي)اراشوري(پوي )اورمړي (پوي ) سو غـدي ( پې —pay). دا کلمه په‌سا کی کښې(پا- پای pa—pai -ساتل‌خوندي کول)،په‌اویستا کښې(پای-ساتلو-خوندي کولو)،په‌زړه‌هندی کښې(پای)دساتلوخوندي

---

۱-همدغه قاموس ، ۲۲۰مخ.

۲-داوسیتی تاریخی -ایتمالوژیک قاموس، ۲۲۰ مخ.

کولو معنا ور کوي (۱) .
**پښتو:**(او سپنه) شوغنا نی (سپپین- (sepin) ) اشکا شمی(سپون- spun) سنګلیچی سپون ـ Bazon ) سریکوای (سپین- spin ) مونجا نی (یوسپن )یـا زګولیا می(سپون )خوارزمی ( ایسپا نی) سوغدي (اسپن) او سیتی ( افسن ) اویستا (سفنه- safna)(۲) .
**پښتو:**(و یسل ـو ړل)مونجا نی- ییس- yisـو یسل )اید ګا (ایسن) ر و شا نی (یوش) شو غنا نی ( یاس- yas)همدا رنګه (یوس- yos ) یا ز ګولیا می(یس- yas ) سریکوای (یوس-yus) اشکا شمی ( ووش- wus ) .دا ټول د(و یسل و ړل) په معنا . دا کلمه په او یستا کښی (یا س- yas ـ رسول) سوغدي اوخوارزمی ( اس - as ـ نیول )په معنا دي(۳) .
**پښتو:** کب(ما هی)اید ګا(کپ) مونجا نی ( کپ) و اخا نی(کوپ) سو غدي(کپ) سا کی (کوه- kawa )سکیتی (کپه- kapa) او سیتی (کف- kaf ) (۴).
**پښتو:**(کند ي- نا حیه،د قربی برخه)سوغدي (کند- کند ي )سا کی (کنته کند ي) یګنو بی (کنت ـ kent ، ښار ) او سیتی (کنت ـ کلا) .دډیرو ښار و نوارغو نومونو( کندهار، کندوز، کندیس روهیل کنډ ، سمرکند او نورو ) نو مو نونه هم دد غی کلمی سره ربط لری.

---

۱ـ د اوسیتی تاریخی ـ ایتما لوژیک قاموس ،۲٦۸ مخ
۲ـ » » » » » ،۳۳٦ »
۳ـ » » » » » ،۳۳۲ »
۴ـ » » » » » ،۳۸۱ »

**پښتو** :(کوم-لکه کوم سړی، کوم یو)سا کی (کا مه) اید گا ( کیوم- kyum ) خوك. اشکا شمی (کوم) زازانی (کم ـ کوم) یگنو بی ( کو م ـ kum ).

**پښتو**:(کراسته-لمڅی ،دلمڅی یا خرمنی زړه‌تو‌ته) واخانی(کراست پوستین) اشکاشمی (کر و ست) سنگلیچی ( کو ر و ست ـ korost پوستکی خرمن ) مونجانی (کراست-خرمن پوستکی)اید گا کراست ـ پوستکی خرمن (۱).

**پښتو** : (کشر ) سا کی ( کستر ه ـ kastara ) سو غدی کشتر- kashtar ) اویستا ( کسو- kasu )وړوکی.(۲).

**پښتو** :(کسل، کسی -(دستر گو)سنگلیچی(کس- kas ) یازگولیامی (کس- kas )د(کتلو ، کسلو)په معنا. سوغدي (کس ـ kas -خارنه) خوارزمی(شکش ـ shkash ـ کتل، کسل)اویستا (کس،اکسل، کتل) زړه هندی (کش-څلیدل، کتل.)

**پښتو**: چا(څوك )په‌دویم حالت کښی سریکوای (چوی) شوغنانی (چای-چا )روشانی (چای).

**پښتو**:(سکور ،سکروته )سوغدی(سقور -سکور) اویستا ( سکرنه- sakarana )(اورلړونی، داوردوړلواله)

**پښتو**:(منه)یازگولیامی (مون- mown )شوغنانی مون- ( mown ) روشانی (ماون mawn-) سنگلیچی (مین) اشکاشمی (میند) مونجانی (امینگا) ،پراچی (مون) .

**پښتو**: (غلبیل)شوغنانی(غلبیل )سنگلیچی (غلبیل) واخانی(غلبیل) اشکاشمی (غلبیل) مونجانی(غلبیل).ریښه یی‌سوچه پښتو(غله بیل) په نظر راځی.

---

۱- داوسیتی تاریخی ... قاموس ۵۸۲ مخ .

۲- » » » ۵۸۹ مخ .

**پښتو**:(سیاشت-سیاست) شوغنانی (سیست) بازګولیامی (ماست) روشانی ( سیست) بارتنګی او سریکولی (سوست - most).

**پښتو**(غوجل)شوغنانی:( غیچید ) یازګو لیاسی (غه ګود) .

**پښتو**:(غر،غرکی،ډبره) شوغنانی(غر-ډبره) یازګولیامی (ژیر-ډبره) واخانی (غر) ساکی (غری - ggari ) او یستا ( ګیري - gairi) اورسړي ( ګري) .

دا کلمه په ایندو بوروپی ژبو کښی د(غ،ګ) او (ر)دغږ ونو په اصالت رښیه اسري .

**پښتو**:(ښوول)یازګولیامی(اښوو-اښود- ښوول) اویستا ( شیو - کردار ، عمل) .

**پښتو**:(زرکه)شوغنانی(زریخ)روشانی(زریخ) سریکولی(زریخ) واخانی(چهکر)مونجانی (ږورږا)اوسیتی (زر zar- سندره ویل ) .

**پښتو**:(رودل)شوغنانی (ریو د reud) روشانی (ریود) بارتنګی (ریود- rivd ) سریکولی (ریو د).

**پښتو**:(واښه)شوغنانی (ووښ)په(مجهول واو ) روشانی (ووښ) بارتنګی (ووښ) سریکولی (ووښ په خرګند واو) .

**پښتو**: تور(رنګ) بارتنګی(تور - tor) سریکولی (تور) روشانی (تیر-تور)شوغنانی (تیر-تور) .

**پښتو**:( سپږه- مخصوص خزنده) شوغنانی (سپیږ) او یستا (سپیش) بارتنګی (سیپو sipaw ) .

**پښتو**:(شوټ،شل) بارتنګی(شوت-ګوډ) شوغنانی (شت) .

**پښتو**:(غوږ)شوغنانی(غوږ)روشانی (غوو) بارتنګی(غو) سریکولی (غیو) یګنوبی (غوش)سوغدی (غوش) او سیتی(غوس).

**پښتو:** (میږ-میږه) شوغناني (میږ) روشاني (میو- mew) بارتنگی زماو - Maw) اویستا ما یشي ( maeshi ) .

**پښتو:** (پرخه-شبنم) شوغناني (پیربښ) روشاني (پیربښ) بارتنگی (پیربښ) اویستا (پرشویه - parshuya ) .

**پښتو:** (زړه-قلب) بارتنگی (زورد- په پښتو او) سریکولي (زورد) شوغناني (زورد) یازګولیاني (زارد) روښاني او خوفي (زورد) اویستا ( zarada ) . میډ یـک ژبي هم دغه ریښه په (ز-د) لري .

**پښتو:** (اوږد) شوغناني (ووږد) روشاني (ووز - vuz) بارتنگی (ووز- vuz ).

**پښتو:** (پیژندل) یگنوبي (بیزونته- Bezonta ) سوغدي (پیزن) او سیتي (بزون- Bazon) یا زګولیاني (وزن- ویزنت) روښاني (وزون) ساکي (پیسن- paysan) میډ یک ژبي هم دغه ریښه په (ز- ن) لري .

ددي کلمي ریښه (زن - zan) ښودل شوي ده چه په اوستا او سوغدي کښي په همدغه بڼه او معنا موجوده ده، دا یوه له هغو تیپیکو کلمو څخه ده چه د باختري ژبو د (ز) دغږ په مقابل کښي یې جنوبي پیرسیک ژبي د (د) غږ لري . لکه د ( دان، دانش) .

**پښتو:** (وړی، لوړه) یگنوبي (وژ-دیوز- wazh-dewaz وړی، لوړه) سوغدي (دیزه-لوړه) پارتیاني (دیزه- لوړه) ساکي (دیبیشه) .

**پښتو:** (لویدل) یگنوبي (دیویته- dewita) شوغناني (دی- di ) روشاني (دای- day ) سریکولي (دیی- day ) ددي کلمي ارغوني آریایي ریښه (دویه dwaya لویدل) ښودل شوې ده .

**پښتو:** (ایشیدل) یگنوبي (ایشته- eshta ) سوغدي (یش- ysh) اویستا (یایش - yaesh). داله هغو تیپیکو کلمو څخه ده چه د باختري ژبو د (ی) دغږ په مقابل کښي پیرسیک ژبي د (ج) غږ لري، لکه : (یا له-جوي، ایشیدل جوشیدن )

**پښتو :** (غنډل)، سوغدی(غندك ،غنتک-ناوړه) سریکولی(غوند-ناوړه) دفارسی ژبود(ګنده) او باختری ژبو (غند) ریښه یوه ده .

**پښتو :**(خېری) یازګولیا سی(خریک) شوغنانی(خیذ) سوغدی(غریک) یګنوبی (غیریو-دوړه ، اوګرد ).

**پښتو :**(ګورل) لکه‌زه‌ګورم،یګنوبی (غور) سوغدی(غور ، اغوز) او سیتی ( اګورون - لټول ) .

**پښتو:**(هو!)یګنوبی (هو!هون!) خوارزمی (هه) .

**پښتو :**(اینځه)سوغدی (اینچ-ښځه) یګنوبی(اینچ - ښځه) پراچی (جینج-ښځه) پښتو (کوټه) یګنوبی (کت- kat، کوته، کور) سوغدی (کت ، کتک - کور) او یستا (کته) - kata کور) پارتیانی ( کود) یازګولیا سی (کود) د پښتو(ګوده‌او ګوډی) هم‌له‌دغی ریښی‌ښکاری .

**پښتو :**(لونډ) یګنوبی (لوند=لټ، بیکاره) شوغنانی(لوند=لټ تنبل) .

**پښتو :**(مینه-ودانی)یګنوبی(مېین- meyn مینه)په او یستا کښی(میشنه)ده.

**پښتو:**(ناست)سوغدي (نیست - nyst )یازګولیا سی( نوست - nust) مونجانی ( نیو ست - nyest ) .

**پښتو :**(نیغ ) سوغدي(نیغ- nygh)همدارنګه(نغی)یګنوبی(نیغ ) .

**پښتو :**(پل ، پلی) ایدګا (پول- pol پل)اویستا (پذه) سوغدي (پذك) اوسیتی (غد) یګنوبی (پذ) . دآریایی ژبود (د) دغبرګه مقابل کښی د پښتود(ل)غبرګېکه مقابله‌دچه د باختری په مقابل کښی(د)لری .

**پښتو:**(پر - پر میز) یګنوبی (پر) سوغدي (پر) خوارزمی (پر) روشانی (پر) بار تنګی (پر ) .

ددغی خدمتی کلمی لرغونی آریایی ریښه (او پري - upari - پر) ښوول شوي ده .

**پښتو :**(پیرودل)سوغدي(پرید)یګنوبی(پیرون- peron )واخانی(پورون).

**پښتو:**(ريبځ ـ جارو) يگنوبی(رو بچ)و اخانی(دريپيچ). مار گينسترين ددې کلمی اصل (راو پاچی ـ raupachi) ښو دلی‌ده .

**پښتو:**( ستوري )يگنو بی ( سيتو ره ) سو غد ي ( ستري ) سا کی ( ستري ـ staray ) ا شکا شمی ( ستر و ك ـ struk ) مـو نجا نـی (ستوري ـ storay ) اورمړي ستژي .

**پښتو:**(وند)د(وندر، غړوندي اووندي)په کلمو کښی.
يگنوبی (ونت ـ vand )يازگوليا می (وند) روشانی (ويند vind)واخانی (وند).

**پښتو:**(ورخ ـ دپټی)يگنوبی (وغ)پارتيانی(پند ـ ور گم ـ بند ورځ) دا کلمه په‌اوسيتی کښی‌د(ارخ ـ arx )اوپه ارميانی کښی‌د (ارق) په بڼه موجود ده. دغی ريښه په‌تورکی ـ مغولی ژبو کښی هم ښوول شوې‌ده. تورکی(ارخ ـ ارق ) کانالو ياله ، مغولی ـ (ارك ـ ark کاريز)(۱) .

**پښتو:** (برايی ـ تيره شپه )يگنوبی (وبرای ـ viBray) سو غدي (بيـري ـ Byryy )خـوار زمـی (بيري ـ Biyari) شو غنانـی بيـور ـ Biyor ـ پرون) پراچی (ويار ـ wyar ).

**پښتو:**(شوده ـ شيده ) ساکی (شويده shida ) يا ز گو ليا می (شوود ـ shoud )شوغنا نی (شود) سريکولی(شيود) ايد گا(خوشود خـوړ) اويستا ( خشو بيپـته xchipta )شـو د ه . يگنو بی( خشيفت ـ xshift ـ شوده)سوغدي (خشبت ـ شوده).
اورمړي لوگری(ښيپی ـ)، کانيگرامی(شيپی)

**پښتو:** (وينه ـ خون) مو نجانی (اينه ـ yina) اويستا ( وهونی ـ vahuni ).شوغنانی(ويخين ـ vixin )پراچی(هين ـ nin )اورمړي(ښون)

---

۱ـ داوسيتی تاريخی ايتمولوژيک قاموس، ۱۷۵مخ د(ارځ) کلمه.

**پښتو:**( داسی )روشانی (داس): (لکه‌داس‌مک =داسی مه کوه) شوغنانی (دیس) .

**پښتو:**(ښه)روشانی (شی- Shay ډو ای ،په ښو کالیو کښی پټ) خوفی پاسنی کلمه په‌پاسنی‌معنا لکه په‌دې جمله کښی(سی‌وخت‌خلق فوکاد شی‌سوج -زمونږ دوخت خلک‌ښه کالی اغوندي).

**پښتو:** تا-د(ته)دویم‌حالات)روشانی(تا-د(تو) دویم‌حالت‌خوفی(تاو).

**پښتو:**(تر-تر کوره )روشانی‌او خوفی (تر- tar )لکه دروشانی په‌دې‌جمله کښی (مش‌وای‌ترباز اریوسم -مونږ به‌هغه ترباز اره یوسو).

**پښتو:**(څه‌رنګ)شوغنانی(څه‌رنګ) روشانی اوخوفی (څه رنګ) اور سړي (څه رنګ) .

**پښتو:**(جوړه-جفت )شوغنانی ( جور-جوړه ) سنگلیچی (جو ري) مونجانی (جوار ) .

**پښتو :** (جوړ - روغ) دشوغنانی (جور) ( جورات یاست -جوړ یاست) اور سړي **(** جوړ) .

**پښتو:**( کوږ) شوغنانی(کږ) سنگلیچی ( کږ) اشکاشمی (کـژ) مونجانی (کوږا ) .

**پښتو:** (جوړ - روغ) شوغنانی (جور)لکه (جورات یاست = جوړ یاست) اورمړی (جوړ)

**پښتو:** (موټی) شوغنانی (موت mut ) سنگلیچی (مو ت) اشکاشمی (موت )دا کلمه په سانسکریت کښی ( موټس- mutas ) (کنډه ، غوټه) ده.

اوپه دې‌صورت په‌سل کونو داسی‌لغات‌موندلای شو چه‌باختري ژبی دیوه ځانګړي گروپ په حیث‌تشکیلوي ، چه‌دلته‌یی‌لږ څه‌مثالونه وړاندې شول مگرپه‌پرسیک‌گروپ کښې کلا یاجزءاً نورې کلمې‌لری.

**دفونیتیک په‌ساحه کښی:**

دفونیتیک په‌ساحه کښی‌هم باختري ژبی‌دپیرسیک گروپ‌په‌مقابل کښی‌یوه‌ځانګړې‌ډله‌ده‌چه‌څوگڼ مهم‌خصوصیات‌یی‌دلته‌وړاندې کیږي.





د باختري او پیر سیکو ژبو ترمنځه د فونیتیک په ساحه کښې یو مشهور توپیر دادی چه د پیرسیکو ژبو دلغاتو په سر کښې د (ب ،د ،گ ، ه) غږونو په مقابل کښې په باختري کښې د ( و ، ذ ،ل، غ ،ا) موجود دي:

**باختری ژبې:**

| | | |
|---|---|---|
| پښتو | ورور | وړل |
| سوغدي | ورت | ور |
| یګنوبی | ویروت | وار |
| شوغنانی اوروشانی | ویرود | وار |
| یازگولیامی | ورید | |
| واخانی | وروت | |
| اشکاشمی | ورو (د) | |
| سریکولی | ویرود | ویرد |

داتیپ کلمې په پیرسیکو ژبو کښې د(ب) په غږ موجودې دي. (پارتیانی ، کوردی، بلوڅی،تالیشی او نورو) کښې د یاختری گروپ په شان د (ز) غږ موجود دی.

د فونیتیک په باب باختری او پیرسیک گروپونو ترمنځه بله څرگنده او تیپیکه نښه داده چه په باختری ژباتوژبو کښې د(ښ) او (څ) غږونه موجود دی خو پیرسیک گروپ یې نه لری.

**باختری :**

| | | | |
|---|---|---|---|
| پښتو | څلور | څرمن | پنځه |
| خوارزمی | | څرم | • |
| اوسیتی | څه پر | څرم | فنڅ |
| شوغنانی | څوور | • | پینڅ |
| روشانی | څوور | | پینڅ |
| اشکاشمی | څه فور | | پونڅ |

| | | |
|---|---|---|
| واخانی | څه بر | پینځ |
| سریکولی | څوور | پینځ |

د کلمو په سر کښې د پیرسیک گروپ د (ه) غږ په باختري ژبو کښې په الف راځي:

| | |
|---|---|
| پښتو | اوه |
| مونجانی | ووده |
| اوسیتی | اود |
| یگنوبی | اود |
| شوغنانی | اوود |
| اشکاشمی | اوود |

د فونیتیک په ساحه کښې دا هغه ډله پیزاو عمومي نښې وی چه ذواړه گروپه یې سره بیل کړی دی، په خصوصی توگه ډیرې بیلوونکی نښې شته چه باختري ژبې یوتر بله سره نژدې او له پیرسیکو ژبویې بیلوی مثلاً پښتو او پامیری ژبې:

په پامیری ژبو کښې کټ مټ د پښتو په شان د (ټ، ډ، ړ، ږ، ښ، ڼ) غږونه موجود دي (۱).

هغه کلمې چه باختري ژبې یې په سر کښې د (غ) غږلري په مقابل کښې پیرسیک گروپ د (گ) غږلري.

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| پښتو | غوی، غوا | غوږ | غندل | غوز | غنم |
| سوغدی | غو | غوش | غندك | انغوذ | غنتوم |
| اوسیتی | غوگ | غوس | ایغندون | انغو | ــ |
| شوغنانی | ژوو | غوږ | | غوز | ژیندوم |
| یازگولیامی | غیو | غوون | | | |
| واخانی | ږیو | غیش | | اوغوزو | غندوم |
| اشکاشمی | غو | غوی | | اوغوزو | غندوم |

۱ ـ د افغانستان دخینوژبو او لهجو قاموس د شاه عبدالله بدخشي تالیف مقدمه .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| سریکولي | ژیو | ژیوی | غوند | |
| مونجاني | غووا | غوغ | اغوزا | غوندوم |

د( غوز) کلمه په منځنۍ پارسي کښې د (ګاوز) په بڼه او پاسنۍ نورې کلمې هم په پیرسیکوژ بو کښې د(ګ) په غږ موجودې دی.

دباختری ژبودهغې (ز) دغږ په مقابل کښې جنوبي پیرسیک ژبې د (د) (۱) غږلری چه د کلمو په سر کښې واقع وی :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| پښتو | زوم | زه | پېژندل (پی+زن+دل) | |
| اویستا | زماتره | ازم | زن | |
| مونجاني | زما | زا | وزند کا | و ـ زند ـ کا |
| سنګلیچي | زمود | ازي | | او ـ زین ـ وا |
| اشکاشمي | زومد | از | پزیند | |

د کلمو په سر کښې د (ز) دغه لرغوني غږ د پیر سیک ګروپ په جنوب غربي ژبو کښې (زړې پارسي ، منځنۍ پارسي، بختیاري، تاتي او نورو) کښې د(د) په غږ اوښتي دي خو په شمال غربي ژبو کښې د(ز) په غږ دی.

**دګرامر په باب :**

لکه چه دلغت په ساحه کښې باختري او پیرسیک ګروپونه سره په اساسي ډول بیل بیل دي دغه شان دګرامر په باب هم دوی سره اساسي بیلتون لری لکه :

په باختری ژبو کښې صفت له موصوفه او مضاف الیه له مضافه ترمخه وي خو په پیرسیک ګروپ کښې داموضوع بالعکس ده . همدارنګه د باختري ژبو په اکثریت کښې دفعل داطلاق دپاره لرغوني سیستما تیک ادات د (و ، نه ، په ) په بڼه موجود دي حال داچه پیرسیک ګروپ له دغه لرغوني ادات څخه بېخي او اصلاً محروم وو او دی.

---

۱ ـ زوم ، زند (پېژندل) او نور په پیرسیک کښې غیرله میدیکه د (د) په غږدي : (داماد ، دانش ...).

# پښتو
# زموږ ملی او رسمی ژبه

پښتونن د نړی د نژدې هغوپنځوسو معتبرو ژبو په کتار کښې ولاړه ده چه بډای ادبیات لری او د بشری زیاتو وګړو دلیک او لوست ژبې دی. لکه چه د ایرانی (پیرسیک) ګروپ دژبو په لړ کښې یوازې دری ادبی او دلیک اولوست ژبه ده ، په باختری ګروپ کښې د اصفت یوازې د پښتو په برخه دی (١).

پښتو ژبه چه د افغانستان ملی او رسمی ژبه ده زمونږ دهیواد نژدی (١٢) ملیونو او په بل عبارت په سلو کښې له (٦٢) څخه زیات وګړي پری خبری کوی . او په پښتونستان کښې نژدې اووه میلیونه پښتانه پرې ګړیږی .

سربیره پردغو دوو سیمو یوزیات شمیر پښتانه په پاکستان ، هند کشمیر ، یولږ شمیر د چین په (سین کیان) او له پنځوسو زرو نه زیات د ایران په خاوره کښې پښتانه ژوند کوی (٢) . د ایران پښتانه په ختهالیزي

---

(١) ـ آریانا دائرة المعارف د (السنه) عنوان .

(٢) ـ د سین کیان او ایران د پښتو په باب مقدماتی فیلا لوژي ١٠٥ مخ وګوریء .

او نور زي دي اود سين کـيان د پښتنو د دو جوده ژبې په باب معلومات نشته .

د پښتنو دتوکم په باب پخوانی نظریه داوه چه پښتانه ګوندې دسامی توکم (بنی اسرائیلو) څخه دي چه دا نظریه دګورګا نیا نوله دربار ه نشئت کوی . ددغې نظريې لومړی څرك په ( مخزن افغانی) کښې چه دجهانګیر د دربار واقعه لیکونکی نعمت الله هروي غالباً په(۱۰۲۰ ه،ق) او میلادي (۱۶۱۲) کښې ایکلې دی، لیدل کیږی.

همد غه نظریه بیا دافضل خان ختټك په تاریخ مرصع ، دحافظ رحمت خان په(خلاصة الانساب) خور شید جهان، مرحوم قاضی عطاء الله (د پښتنو تاریخ) سرو یلیام جونز ، راورتی او نورو مؤرخینو هم تعقیب کړې ده .

د پښتنو د توکم په باب بله نظریه داهم شته چه پښتانه ذحضرت ابراهیم له اولادې څخه دي-له دې نظريې سره سم بیا هم پښتانه دسامی ګروپ له توکمه ګنل کیږی . ځینو غربیانو ابتداء ، د البانیانـو اویـا ګرجستانیانو سره هم په توکم کښې ګډ بللی وو .

دغه نظریه چه پښتانه سامی نژاده دي تفصیل یې د پښتنو د تاریخ په بیلوبیلو آثارو او کتابونو کښې خپور شوی ، دمو جوده پوهنې اوعام په نظر کښې دغه نظریات له افسانې څخه زيات ارزښت نه لری.

بشرچه دتاریخی واقعاتو او پیښو ډیر تیاره اړخونه نن دزیار ، هاندا و فنی وسایلو په مرسته روښان کړي دنولسمې پیړی له پیله دا نظریه ورته پیداشوې چه پښتانه د بشري لويو کورنیو په ولکه کښې هندو اروپایی او په هغه کښې آریایی باختري توکم دی . دا نظریه د پښتو نخوا دلر غونو تاریخی اسنادو اود نورو ژبو سره د پښتو په تاریخی مقایسوی زنا کښې سپینې ته وتلې ده ، څکه چه د (پښتون) ریښه

په (پښتو) کښې پرته ده . دلته غواړم چه د پښتو په باب دلویدیځو ختیځ پوهانو د پاملرنې او بیا د نظریاتو لنډیز وړاندې کړم .

## پښتو ته دختیځ پوهانو پاملرنه :

د پښتو څیړنې اوزده کړې ته دوروستیو دریوپیړیو په جریان کښې دلویدیځو محققینو زیاته پاملرنه اوښتې ده : په بریتانیا ، روسیه ، فرانسه ، جرمنی او نورو هیوادو کښې ډیرو پوهانو پښتو زده کړه اوویې څیړله ، خودډې ټولو په جمله کښې پښتوته په لویدیځ کښې زما په خیال دوه مرکزونه ټاکلی شو:

۱ ـ لویه بریتانیه چه پښتونویې په خپل استعماری قلمرو کښې داخله ګڼله .

۲ ـ شوروی اتحاد چه پښتونویې دخپل یوه دوست ګاونډي اولس ملی ژبه ګڼله او ګڼی یې .

کله چه بریتانیې دهند نیمه وچه ترخپلې لاندې کړه او د پښتنو سیمې ته یې پښې وغزولې ، دخپل تسلط دساتلو په غرض یې د پښتو په زده کړه او څیړنه لاس پورې کړ ، چه وخت په وخت یې په پښتو کښې داسې کتابونه ، قاموسونه او نور مواد خپاره کړل چه دلویدیځې اروپا د نورو علاقه لرونکو دتوجه سبب هم شول اودلته یې په اسانۍ ډول وړاندې کوو :

کوکس: د پښتو ګرامر ولیکه چه په (۱۸۱۱) کال کښې په لندن کښې خپور شو . راورتی چه د بریتانیې د پوځونو یوسپاهی و ، او د (۱۹) پیړۍ په لومړۍ نیمایی کښې دیر غلګرو په پوځ کښې د پښتنوخاورې ته راغلی او دلته یې پښتوزده کړې وه چه انګریزانو د (پښتوپلټنو) دپلار په نامه یادا وه په (۱۸۵۵) کال کښې یې د پښتو ګرامر خپور کړ او په (۱۸۶۰) کال کښې یې دغه ګرامر لا پسې بشپړ او دریم ځل یې په (۱۸۶۷) کال کښې خپور کړ . په همدغه

کال ده (پښتو انګریزي قاموس) دویم ځل چاپ کړ. همدارنګه (ګلشن روه) (د پښتو شاعرانو غوره اشعار) چه وروستی کتاب دانګریزی ترجمې سره په (۱۸۶۳) کال کښی چاپ شوی دی. دده ښه آثار دي، په همدغه کال کښی بې انجیل په پښتو خپور کړ. نوموړي د پښتنو د نسب، جغرافیې او نورو په باب ښه آثار لیکلی دي.

واهن نومی انګریز په (۱۸۶۰) کال کښی د پښتو یو ګرامر په لندن کښی چاپ کړ. همدارنګه د پښتو په باب د بیلیو دلغت او ګرامر کتابونه ښه شهرت لری چه د پښتو قاموس یې لومړ ی په (۱۸۶۷) پسه لندن او بیا په (۱۰۹۱) په لاهور کې چاپ شو. او د پښتو ګرامر یې په (۱۸۶۷) په لندن کښې چاپ شو.

ترو مپ چه اصلاً جرمنی دی د پښتو ګرامر یې په (۱۸۷۳) کښی پسه لندن کښی خپـور شو، ده او ګریرسون (پښتون) دویداد (پکهت) او د یونانی مؤر خینو (پکتویس) سره مرادف ګڼل.

لو ریمرد وزیرود لهجی ګرامر او قاموس په (۱۹۰۲) کښی خپور کړ، د وزیرو د لهجې په باب ګریر سون هم یو کتاب پسه (۱۹۲۲) کښی خپور کړ.

ژ وس کیپل: د پښتو ګرامر په (۱۹۲۲) کال کښی په لندن کښی خپور کړ. ښاغلی میکنزي په لندن کښی د پښتو د قلمی نسخو کټلاك چاپ او د پو نسکو د پاره یې دخوشحال ختک د دیوان یوه زیاته برخه پـه انګریزی ترجمه کړه. دلته دهیوز (کلید افغانی) هم د یادونی وړ دی. او په دغه شان د پښتو په باب په انګلستان کښی په سلګونو کتابونه او رسالی وخت پـه وخت لیکل شوی چه د پښتو په زده کړه کښی یې د نورو ختیځ پوهانو سره پوره مرسته کړې ده.

د پښتو د زده کړې او څېړنی په باب زیات شمیر نورختیځ پوهان هم شته چه د څو مشهورو نومونه یې دادي:

دار مستترنا متوفرانسوي عالم دی چه د پښتو د اولسي سندرو مجموعه (د پښتو نخواهارو بهار) سهم کتاب یې لیکلی او په (۱۸۸۸) کال کښې په پاریس کښې خپور شوی دی، په دغه کتاب کښې د پښتو د فونیتیک او لغوي تحلیل ښه څیړنه شوې ده.

گیگرد پروفیسر مارگین سترین په قول په لویدیځ کښې د پښتو د غږپوهنې اساس اینبی چه اثریی (د پښتو ایتمولوژي او غږپوهنه) نومیږي او دده یوسونو گراف دی چه په سیونیخ کښې په (۱۸۹۳) کال کښې چاپ شوی او بل اثریې چه (پښتوژبه) نومیږي چه (د ایرانی فیلالوژی بنستونه) نومی اثر جزء دی او په ۱۸۹۸ کال کښې په سترسبورگ کښې چاپ شوی دی.

مارگین سترین نارویژی عالم او د پښتو ټولنې افتخاري غړي د افغانستان دیولږ نورو ژبوسربیره په پښتو ښه آثار لیکلی دی مثلاً: په (۱۹۲۷) کال کښې د (په نژاد پیژندنې پورې مربوط پښتو محاورو وي لغات) نومی کتاب خپور کړ په (۱۹۲۷) کال کښې یې په اسلو کښې د پښتو ایتمولوژیک قاموس خپور کړ.

په امریکا کښې د ډاکتر پنزل له خوا په (۱۹۵۵) کال کښې (د پښتو گرامر د کندهاری لهجې تشریحی څیړنه) نومی کتاب او بیا یې په (۱۹۶۲ - ۱۹۶۵) کال کښې د مشیگان د پوهنتون په مطبعه کښې (د پښتو قاموس او د پښتو لوست) چاپ کړل.

د پښتو د مطالعې په باب په چکوسلوا کیا کښې د ښاغلي بچکا خصوصاً د پښتو د خج په باره کښې رساله هم دیادونې وړده.

د پښتو او پښتنو څیړنه په روسیه کښې سیستیماتیکه تاریخچه لری:

د اتلسمی پیړی په لومړی نیمایی کښې د پښتنو په باب معلومات راغونډ کړای شول. د ۱۸ پیړی په وروستی نیمایی کښې نه یوازې د روسیې بلکې د لویدیځې نړی د محققینو له پاره اکادیمیک گیولډ ینشتید (د استراخان اکادیمی)

له خوا سره معلومات را غونډ او په (د قواوژ بومقايسوي قاموسونه) پتروز بورګ۱۷۸۷ کال کښې خپاره شول.

د پښتو ګرامري مواد دنولسمې پېړۍ په سر کښې ددا کترايو يرسمن له‌خوا نسبتاً په مفصل ډول خپاره‌شول.

د پښتوپه ګراماراوا يتمو لوژۍ او د ايرانې او باختري ژبو سره د مقايسې په رڼا کښې کلاپ روت‌دلوید یخوهغو افغان پېژندو نکونظريات رد کړل چه په (۱۹) پېړۍ کښې يې پښتانه ګرجستانيان ، ارمنيان، البانيانان اوياسامي نسله ګڼل اوضمناًيې دانظريه‌هم رده کړه‌چه پښتو ګوندې د دري (فارسي) يود ياليکت‌دی .

همدغه نظريه بيانا ستوافغان پيژندو نکی دورن‌هم‌تاييد او تشريح کړه ۰دورن چه‌دخار کوف په‌پوهنتون کښې دختيځوژ بود کرسي‌مشرو، د پښتواو پښتنوپه‌باب ډير ګټور اوغوره تاريخي‌آثارلري لکه :نعمت‌الله هيروی چه دپښتوتاريخ (مخزن‌افغانی) د(۱۷) پېړۍ په‌سر کښې ليکلی و،ددورن‌له‌خواترجمه اوددورن‌له خوا دزياتو تبصرو دضميمو سره په (۱۸۲۹ - ۱۸۳۶) کال کښې چاپ شو .

د(۱۸۳۹) کال‌دعلوموداکاډيمۍ په غونډو کښې دورن د پښتو دګرامری جوړښت په باب سهم کنفرانسو نه و رکړ ل چه د پښتو د زده کړې په تاريخ کښې‌زيات‌ارزښت‌لري .

په(۱۸۴۲) کال کښې‌ددورن‌له‌خوا(د پښتوګرامري‌ياددا شتونوسمم) د نو مو ړ ی له خوا خپو ر شو. په(۱۸۴۷) کال کښې‌دلومړی‌ځل له پاره ده‌د پښتو انتخابات چاپ کړل . دورن په‌حقيقت کښې دهغو روسی محققينوله پاره دپښتو د زده کړی قوی بنسټ کښيښو د چه په راتلونکي‌وخت کښې‌يې‌دپښتو زده کړې‌ته‌ملاوتړله . بلکې دورن‌ته نوراروپايي محققين(دپښتودعلمی ګرامرلومړی‌مؤلف) وايي: دده په

غوښتنه په (۱۸۵۵) کال کښې پښتو د پترزبورګ د ختیځو ژبو د پوهنځی په تدریسی پروګرام کښې داخله شوه، مګر دغه تدریس یوازی دوه کاله دوام وکړاو بیا تقریباً یوه پیړی بس شو. ددورن نه وروسته دپښتو په باب ځینی کارونه و شول لکه د تیرین تیف، پروفیسر ګریکوریف، تومانویچ، یفیموف او دنوروآثار. مګرد پښتو په باب اساسی کارونه دروسیې په شوروی دوره کښې بیا شروع شول.

د(۱۹۳۰) کلونوپه حدودو کښې بیرتیلس(دپښتو ژبی ګندهاری لهجه) د(پښتوجوړښت) او د(پښتواودهغی دلیک او لوست په باب لنډ معلومات) نومی آثار خپاره کړل.

له(۱۹۳۹) کاله وروسته د مسکود ختیځ پیژندنې په انستیتوت او په یوشمیر نوروعالی پوهنځیو کښې دپښتوتدریس په منظم دول شروع شو چه دتدریس انتظام او دموادو برابرول داستاد اسلانوف دزیاراوزحمت محصول وو، لکه (د پښتولغت لیکنه)،(دپښتو فولکلور او په شوروی کښې د هغه زده کړه)،(پښتود افغانستان ملی ژبه)، (پښتوروسی قاموس) تقریباً پنځوس زره لغات، اوداسی نور.

استاد اسلانوف دپښتوپه باب ډیرشاګردان وروزل چه هغوی د شوروی په عالی تعلیمی مؤسسو کښې خپله داستادانو مقام لری، لکه پروفیسرلیبید یف، پروفیسردوریانکوف، پیری میچیوی، ګالینینه، غنی یف پاځینکویچ، ګیراسیموه او نور.

پروفیسرلیبید یف په (۱۹۶۵) کال کښې دپښتوبشپړګرامرولیکه او بیا یې په (۱۹۷۱) کال کښې دپښتوبل ګرامری کتاب خپور شو.

پروفیسر لیبید یف د (روسی-پښتوقاموس چه نژدی ۳۲ زره لغات لری) په (۱۹۷۳) کال کښې خپور کړ او سربیره پردې یې دپښتو د بیلو بیلو اړخونو په ځیرنو کښې زښتی ډیرې رسالی او مقالی لیکلی دی.

ښاغلی دوریانکوف دپښتو دفعلی سیستم په څېړلو کښې ښه کار کړی دی او په (پښتوژبه) نومی اثر کښې یې پښتو ښه معرفی کړېده . دپښتو دهجاوو په باره کښې هم دښاغلی دوریانکوف زیارد یادونی وړدی .

ښاغلی ګیرس دپښتو دادب په معرفی کښې لویه برخه واخیسته او دافغانستان او پښتونستان دادیبانو او ادبیاتو په معرفی کښې یې ډېر کار کړی دی.

ښاغلی زودین دلومړی ځل دپاره په (۱۹۵۰) کال کښې کوچنی پښتو روسی قاموس چاپ کړ چه نژدی د ولس زره لغتونه لری بیا یې په (۱۹۵۵) کال کښې روسی پښتو قاموس ولیکه چه نژدی (۲۱) زره لغات لری او دویم ځل بیا په (۱۹۶۳) کال چاپ شو. په دغه صورت ګورو چه پښتونن دلوید یځو هیواد و په ډېر و پوهنتونو کښې لوستل کېږی او له ډېرو هیواد و څخه دراڅیو ګانو په ذریعه بروډ کاست کېږی .

دپښتو او پښتون په باب دلوید یځو محققینو په آثارو کښې البته ابتداء یولږ اشتباهات شوي دي چه په تدریج سره دزیاتو تحقیقاتو په اثر دنورو له خواهغه بیاسم شوي دي . په هغو کښې ډېر مهم ځای دپښتنو دتوکم ثبوت او په آریایي ژبو کښې دپښتو دموقعیت نظر یه ده چه لنډه یې په لنډه وړاندې کېږی:

داوېستا په روایاتو اوزړې پارسی دمیخی لیک په کتیبو اود لرغونی یونان دمؤرخینو او جغرافیه پوهانو په لیکنو کښې داباسین (اندوس) د لوید یځ (پښتونخوا) داولسونو یادونې مکرر ر ې راغلې دي. په دې باره کښې دقبل المیلاد د دریمې پیړی یونانی جغرافیه پوه ایراتوسفین eratosfen په هغه روایت کښې چه دستر ابون strabon په لیکنو کښې ساتل شوی دی داسې څرګندوي:

دهندوکش په جنوبي لمنو کښې پروپا میسادیان (۱) (.د کابل خوا او شا) اود هغو دجنوب خواته اراخوتیان (کندهار یان) او له هغونوو هم جنوب ته (په معاصر بلو چستان کښې) گېدروسیان او سیږي چه د اباسین تر غاړ ورسیدلی دي.

د پروپامیسا د یانو لویدیځ ته آریان او سیږي (۲) او د اراخوتیانو او گېدروسیانو پورې ددرنگیانو (سیستان، هلمند) پولې نښتې دي.

ددغو اولسونوسیمه چه ختیځ ته د اباسین ـ شمال ته دهند و کش او جنوب ته د بحرالعرب او لویدیځ ته د میدیا او پارس پورې غزیدلی وه، د آریانا په نامه بلل کېدله.

ددغې سیمې دخلکو په ژبه کښې تقریباً توپیرنه وموجود

داو، دایراتوسفین روایت. همدغه ډول روایتونه نور هم موجود دي چه ددغې سیمې د خلکو دژبې یووالی اویاد لهجو خلپوي ورنه څرگند یږي.

مثلاً: چیني گرزندوی (چژان څیان) چه په قبل المیلاد (۱۳۵ ـ ۱۱۵) کښې (لویدیځو هیواد و) ته سفر کړی و، په خپلو یاد داشتو نو کښې لیکلي وو: «چه «د فرغانی او پارتیا» ترمنځه که څه هم په بیلو بیلو ژبو خبرې کیږي مگر دغه ژبې عموماً سره ورته دي او په خبرو اترو کښې یوتربله سره پوهیږي» (۳) دهمدغه روایت په شان کټ مټ بل روایت بل چیني گرزندوی (څیان خانشو) په «دخان دلویې کورنی تاریخ» کښې لیکلی: «...که څه هم د دغو خلکو په لهجو کښې لوی توپیر شته مگر

1— Paropamisad

۲ـ (د پاکستان او لسونه)، ۵۹ مخ.

۳ـ (مقدماتي فیلولوژی) ۱۳۹ مخ، (ایرانی ژبی) ۶۳ـ۶۵ مخونه.

ژ به يې بيخي سره ورته او يو تر بله سره په خبرو ا ترو کښې پو هيږي»
د دغه خلکو ژ به څه ر نګه وه.

په دې باب دغه وروستې کرښې ځواب ور کوي : دقبل الميلاد
زرو کلونو په منځ کښې دا باسين دحوزې د لويديځ خوا ته باختری
اولسونه دمعاصر افغانستان په تاريخي سيمو (با ختر يا ، ارا خوزيا،
درنګيانا او ګيدروسيا) کې او سيدل چه ددوی دژبود وروستی دورې
څخه دسره کوتل کتيبه په باختري ژبه پاتی ده . دنو رو پاتی ژبو
کتيبې تراوسه دمحققينو لاس ته نه دي راغلي، مګر دمحققينو په عقيده
ددغو لرغونو باختري قبايلو پاتی شونی تو کم پښتانه، اور مړي او
پراچيان دي(۱).

دهمدغه ځای داوسيدونکو پکتيايانو په باب هيرودوت دهنديانو
دبيان په يادونه کښې داسی روايت کوي :«نورهند يان د کا سپا پيراو د
پکتيا يانود زمکې په پولو کښې اوسيږي» (۲).

ددغه يونانی مؤرخ په روايا تو کښې په يونا نی لهجه (پکتويس)
کلمې ته د(پښتون) سره زياتو محققينو سمون ور کړ ی دی . همدغه
مؤرخ دپښتون سيمه ياهيواد د(پکتيکا) په نا مه څو ځا يه يا د کړی
دی .اووايې چه:

دغوخلکو(پښتنو)به دڅرمنو کالی (پوستينونه) اغوستل، غشی او
ليندۍ او چړې به يې لرلې او دژوند په لارو چارو کښې کټ مټ
دباختريانو په شان وو . دهيرودوت له روايته واضحه ده چه د باختريانو
او پښتنوتر منځه دلباس وسلې اودژوند چارې يوشان وې اود شريک

---

۱- دپاکستان اولسونه ۵۸،۶۰ مخونه.
۲- دپاکستان ملتونه ۶۱،۶۲ مخونه .

تمدن او کلتور خاوندان وو. دهیرودوت له لیکنې څخه څرګندیږي چه په پکتیا کښې څلورو (ګندهاریان، اپاراتی(اپریدي)، ستاګیدی، داد یکی، داردي) قبیلو ژوند کاوه. دنورو تاریخي اسنادو په حواله (ګندهاریان) همدغه دننګرهار او پیښور لرغوني او سیدونکي دي.

د اپارتینی په باب د محققینو لکه بیلیو، میکنزي، د کیرو په (پټان) مقدمه، ګریرسون دانظریه بیخي سمه ښکاري چه دسو جوده (اپریدي) سره سمون لري.

ستاګیدي چه د ښاغلی ګهزاد په حواله (د افغانستان تاریخ لومړي ټوك) هم هیرودوت او هم بطلیموس په دغه نامه او هم با بلیانود (ستوګوي) په نامه یاد کړي دمؤرخینو په عقیده د اخلك د ګوملي ددري او سیدونکی دي. د ښاغلی برتل په عقیده د اخلك د پروپامیسا د (کابل) او هلمند او سیدونکی وو، دده په عقیده د اخلك (ختك) او ځینی نور وایي چه (شیتك) دي.

دهیرودوت (دادیك) چه بطلیموس نې هم په دغه نامه یادونه کړې ده چه سیمه یې د (ګندهارا) په شمالي غرنیو برخو کښې واقع وه، مؤرخینو د(داردي) سره سمون ورکړي(۱) چه بحث یې په (داردي ژبو) کښې ګتلای شو.

ددغه مطلب درانقلولونه زما مطلب دادی چه مونږ حتی دهیرودوت له روایت نه دا معلومولای شو چه پښتو د باختري څونژادونو ګډه ژبه وه نه د کوم یوه توکم ژبه.

---

۱- ددغې موضوع یادونه په تاریخي ډیرو منابعو کښې راغلې ده، دمثال په ډول (پښتانه د تاریخ په رڼا کښې ۸۸-۹۱) مخونه، همدارنګه ځینې مواد په(دپاکستان اولسونه ۵۸-۸۹ مخونه) کې وګورۍ.

همدغه موضوع مونږ دلو يه يخو محققينو په نظر يا تـو کښې لټولي او موندلي شو .

کله چه د شلمې پيړۍ په پيل په تورفان کښې د سا کودخوتن دديا ليکت کتيبې او بيا په (۱۹۵۷) کال کښې د بغلان په سره کوتل کښې کتيبې وموندل شوې، لويد يخو محققينو ته عقيده پيداشوه چه ددغو کتيبو ژبه باختري ده او دهغې خپلوی بايد له يوې خوا د پښتو او له بلې خوا دسوغدی اوخوارزمي سره ولټول شي(۱) تولو محققينو لکه مارېک، هينينگ، بينو ينيست، ليوشيخ دنورو باختري ژبو په څنګ کښې د پښتو سره ددغې کتيبې دژبې خپلوي ښوولې ده .

ترکومه ځايه چه د باختري ژبې په څيړنه کښې ددغې کتيبې لوست او تحليل وړاندې شوې دی، دهغه له مخې د کتيبې ژبه له نورو باختري ژبو څخه نسبتاً لرې او يوازې د پښتوسره يې خپلوې ثابتيږي اوس نو ځکه باختري ژبې ته کولای شو چه دپښتو مور په حيث قايل شو او د بغلان کتيبه د پښتو ژبې لومړی بشپړه کتيبه وگڼو. هغه ژبنی خصوصيات لکه د مطلق او استمراري فعل دجوړښت سيستم مثلاً په (وخوت) کښې ، اير گاتيف سيستم په (کنيشکا- لومړي حالت) (کنيشکی-دويم حالت) لغوي شريکه پانگه (لکه کيدل،ختل) چه دغه لور (پښتو) او هغه مور (باختري) لري داسې خپلوي له بلې هيڅ باختري ژبې سره نه لري .

ددوی خپلوي داسې ده لکه دنوې دري او ساسانی . ساکي ژبه هم دغه شان ده هغه خپلوي چه دساکي ژبې او پښتو ترمنځه په گرامري او لغوي اړخونو کښې موجوده ده، دو مره د بلې ژبې سره بشپړه خپلوي نه لري .

د(باختري) او(ساکی) ژبو په بحث کښې ليدلی شو چه دغه ژبې

---

۱- د افغانستان تاريخ لومړی توک ۱۹۲ مخ . همدارنگه (دپاکستا ن اولسو نه) ۶۰ مخ .

خصوصاً (باختري) د پښتو سره نسبي خپلوي لري چه هغه د (ستې) او (ښاخ) له خپلوۍ څخه لېږه نه ده. ساك د پښتو يوه پښه ده د پښتو لوړې مستند شاعرا سير كړ وړهم په ختمه ساكو.

## پښتو او هندي ژبې :

او س په دې كښې شك نه دی. پا تې چه پښتو د لويد يځو آريا يي ژبو په كورنۍ كښې داخله او په هغو كښې د باختري ژبو په جمله كښې يوه ژوندۍ ادبي ژبه ده. خو بيا هم د نورو لويد يځو آريايي او باختري ژبو په نسبت د هندې ژبو سره خصوصاً په لغوي پا نگه كښې د پا سلر نې وړ ګډ ون لري .

د دې علت له يوې خوا د هندي ژبو سره د پښتو زړ ګونه كا له ګاو نډيتوب او د ګډو پولو ارل دي . د ستر ابون په حواله يو نا نې جغرافيه پوه ايراتوسفين ـ eratosfen لا په قبل الميلاد دريمه پېړۍ كښې د هند يا نو په باب ليكي چه «... نو ر هنديان د كا سپا پير او پكتيا نو د هيواد په پو لو كښې او سېږي» (۱) .

دو يم علت يې په هند با ندې د پښتنو څو پېړ يو حكومتونه دي چه د هغه په اثر پښتنو ډېر څه هندی ژبو ته ور كړل او ډېر څه يې ورنه واخستل چه د هغو په نتيجه كښې هندی ژبې له پښتو او پښتو له هندی ژبو څخه متأثرې ښكا رې . د پښتو او هندې ژبو تر منځه بل ګډ خصوصيت د فونيتيك په برخه كښې د سېر يېرال (ټ، ډ، ړ، ڼ) غږو نو موجوديت دی . د محققينو په عقيده آريا يي ژبو د غه غږو نه نه لرل پښتو مستقيماً او يا د هندي ژبو له لارې د غه غږو نه له دراويدي ژبو څخه اخيستې دي . هندی ژبو هم دغه غږو نه په خپل اصالت كښې نه لرل او هغه يې له مغلوبو او شړل شويو دراويدي ژبو څخه اخيستي دي (۲) .

---

۱ ـ د پا كستان او لسونه ۶۱ ـ ۷۲ مخونه .

۲ ـ مقد ما تې فيلا لوژ ي ۳۰۷ مخ .

لەدغه ځایەوه چەپولړ نامتو محققین لکه تروسپ پەدې عقیدەوو چەپښتو دهندی ژبو له کورنی څخه ده .

دغه نظریەچەپښتویوهآریایيژبەدەنەساسی، ققتازی، البانی، دلوسړی ځل لەپارەپه(۱۸۲۸) کال کښی کلا پروت claprt اولەهغیڅخەوروسته م ایلفینستون M.Elfinsten سینخ ته راوړه چەپښتویوه آریاییژبەده نه ایندو آر.یا یی . دغې نظر یسې تەبیا،ب . دو رن او دهغه پسې ف.سیو لر پر اختیا ور کړه .

بالاخره هوسشمن او کیگردې فیصلې تەورسیدل چەپښتو یوه مرکزی آریایی (باختری) ژبەدەچه دهندیژبو لەګروپه نەده .

له هغو وروسته چه کوسو پوهانو باختری نوری لکه (پا سیری) ژبېدتاریخی مقایسوی ژبپوهنې لەمخې وځیړلې دانظریه په پریکړې ډول تائید شوەچەپښتو یوەباختری ژبەدەنەایرانی اونەهندیاوپەدغه صورتپەدغو آریاییژبو کښیددری څانګوپتنتیک (باختری)، پرسیک (ایرانی) اوهندیک (هندی) تثبیت وشو .

معاصرەژبپوهنه اوسپەدې کښیشک نەلری چەپښتویوه مرکزی آریایی (باختری) ژبەده ،مګردهندی ژبوسرەدهغې دګډو خصوصیاتو او اړیکو خواته هم پاملر نه لری .

دتاریخ پەاوږدو پوړیو کښیپښتو دهندی ژبوسره پەګاوندیتوب کښیاوسیدلی اودسانسکریت ، ویدا او پرا کریتی ژبونەطبعاً متأثره شویچەدغه تأثردهندی ژوندیوژبوسره دپښتوپەمقایسوی پلان کښی ښەڅرګندیږی . دپښتوپەاولسی او ادبیفورم کښیمطالعه دا امکان محقق ته پەلاسورکوی چەپەهندیژبو دپښتواو پەپښتو باندیدهندی ژبو داغیزی بیلې بیلې لاری وموسی . دګاوندیتوب دمکان اوزمان دشرایطوسرەسم دپښتوپەبیلوبیلودیالیکتونو دهندیژبواغیزه توپیرلری

دغه اغیزه په ځینو دیالیکتونو دومره زیاته ده چه ناسټو ناروېژی محقق یی دی ته اړ کړی چه ووایی : «د پښتو خصوصاً د پېښور دیالیکت په فونیټیکی سیستم کښې تقریباً هندی شوی دی» (۱) مثلاً (ښ) (ځ) چه په آریایی ژبو کښې د باختری ژبو خاصه او په هندی ژبو کښې نشته د پېښور په دیالیکت کښې غالباً د (س)، (ز) په غږ ویل کیږی. د پېښور په دیالیکت کښې د (ړ) غږ ډیر ځله په (ړ) ویل کیږی او داسی نور .

دا چه دمعاصرو هندی کوسو ژبو سره پښتو زیات ګډ خصوصیات لری دا موضوع بشپړه رڼا ته نه ده وتلی . د ډارمسټټر په عقیده دغه خصوصیات د پښتو او هندی (هندوستانی) ترمنځه زیات دي ، مګر د مارګین ستړین په خیال د پښتو او لهندی ترمنځه .

البته ددغې موضوع پریکړه په دریوا ړو ژبو کښې ژوره څېړنه غواړي .

دلته د پښتو او هندی ترمنځه څو ګډ لغات د مقایسی په غرض وړاندې کیږي :

**پښتو** هډه ـ ګیدړ ـ ګولی ـ ګړی (ساعت) ـ چاره ـ جوړه ځنډه ـ ټوکری ـ ټول ـ نایی ـ پالل ـ بهیدل ـ لګیدل ـ ډار ـ اتوار (دوشنبه) .

**هندی :** اډه ـ ګیدړ ـ ګولی ـ ګهړي ـ چاره ـ جوړه ـ جنډه ټوکري ـ ټول ـ نایی ـ پالنا ـ بهینا ـ لګنا ـ ډار ـ اتوار . .

هندي چه په یولړ کلمو کښې د (ه) غږ هم لري په پښتو کښې هغه نشته لکه :

**پښتو :** جګړه ـ چټ ـ لیکل ـ چلیدل .

**هندی :** جهګړه ـ چهت ـ لیکهنا ـ چهلنا .

په مؤنثو کلمو کښې د هندی څرګنده (ي) د پښتو په ثقلیه (ی) اوړي .

---

1—G. Morgenstriene, Report on a linguistic Mission to Afghanistan, Oslo 1926. P. 12.

**پښتو :** کړکی ـ ګولی ،توکری ـ ګړی .
**هندی :** کهړکی ـ ګولی ـ توکري ـ ګهړي .
دپښتو او لهندی ترمنځه دګډو لغاتو ښکارندوی :
**پښتو :** ښنګله ـ دار ـ ادو (بیخی) و یجاړ ـ کوټه ـ ټاپو ـ لوټ ـ ټول ـ تول .
**لهندی:** ښنګله ـ دار ـ هدو ـ اوجاړه ـ کوټهه ـ ټاپو ـ لوټ ـ ټول ـ تول .
**پښتو** دنورو هندي ژبو سره هم یولړ ګډ لغات لری چه دلته دمثال له پاره مرهټی وړاندې کیږي :
**پښتو :** تیره (دپخ مقابل) ، ړوسی (لومړي) ،ټ (ټمی) ، واده والا (سوفیکس) ګنګال ـ ډیوه ـ بوله (ساده)، ها (هاغه)، بلل .
**مرهټی :** تیوره ـ اروسیه ـ ټ ـ وادو (ناري) والا ـ ګنګال ـ ډیوه ـ بوله ـ ها ـ بوله .

دهندی ژبو سره دپښتو دغه ګډ خصوصیات نه یوازی دلغوي پانګی په ساحه کښې دی بلکې دمور فولوژی په ساحه کښې هم لیدل کیږي .لکه د(وال) او (والا) سوفیکسونه لکه په (ښاروال ، کور والا) کښې. همدارنګه د (پر) کلمه په اوردو او هندی کښې د(پر) مثلاً پښتو (پرسرك) داوردو (سرك پر) . همدارنګه دپښتو (تاسو،تا سی) دجمع مخاطب ضمیر دهندی د (توسی) سره سمون لری (۱) .

**پښتو دپر اختیا په پړاو کښې :**

پښتو نخواته دعربو دنفوذ نه وروسته دعربی او عربی ادبیاتو له خوا وروپه ورو دپښتو دادبیاتو ساحه ورننګه شوه . دپښتو دادبیات یوازې دفولکلور په ډول دعامو پښتنو په سینو کښې ساتل کیدل چه له یوه څخه

---

۱ ـ په دې باب «دهند ، پاکستان، نیپال ،سیلون ژبې» نومی کتاب دشوروی دعلومو داکاډمی ۱۹۶۸ کال په خپرونه کښې د ښاغلی دوریانکوف «دهندی ژبو سره دپښتو رابطه» مقاله ښه مواد لري .

بل ته په شفاهي ډول نقل کېدل . او په دغه صورت پښتو د پردیو ژبو دیرغلونو څخه خوندي وه . ددغه وخت دخوږ و اشعارو څخه ژبنه په لاس کښې یوازې دامیر کروړ یوحماسي شعر (ددویمې پېړۍ پیل) په خوږه او نګه ژبه او بل دابو محمد ها شم ابن الزید السر و انـي (دریمې پېړۍ پیل) یوشعر چه دده داستاد (ابي العيناء) دعربي یوه شعر ترجمه ده موجوددی . البته ددغه فاضل بل اثر (دسالوو ږمه) دزمانې سیلیو ژبنه ترلاسه نه دی راپریښې .

دسوریانو اوغوریانو په عصر کښې دالسرواني ، اسعد سوري ، ښکارندوی ، تایمني او دپښتو دنورو پیاوړو شاعرانو دروزنې او پالنې ځانګو دشاهانو دربارونه وو . په دغو دربارونو کښې پرته له پښتو په نورو ژبو خلک نه پوهېدل . په دغه موضوع یولړ تاریخي اسناد شاهددي مثلاً : دامیر مسعود (۱۱۳هـ) له خوا دغور دیوې (دورمیش بت) نومې کوټ دنیولو پېښې په بیان کښې بیهقي داسې لیکي : «..... تا امیر حرکت کرد بران جانب دانشمندې را برسولی انجا فرستاد و مرد غوری را ازان بوالحسن و شیروان تاترجماني کنند ....» (۱) یوبل روسي مستشرق و . و . بارتولد لیکي چه دغوریانو ژبه دومره جلا وه چه امیر مسعود د مترجم په ذریعه دهغو سره خبرې کولې . بل مستشرق هولدج دغور په باب لیکي چه ددغه ځای خلکو په داسې مخصوصه ژبه خبرې کولې چه دخراسان دخلکو ژبې ته ورته نه وه . همدارنګه رومودین او

---

(۱) ـ د افغانستان لومړی توک د تاریخ (۲۵۹ - ۲٦۰) مخ په حواله بوالحسن خلف او شیروان په غور کښې درسوخ خاوندان وو چه د مسعود له خوا دوی تطمیع کړی شول او خصوصاً د بوالحسن د دریزره مسلحو سپرو او پلیو په مرسته یې غور ته ماتي ورکړه او له همدغو پښتنو څخه یې دغوریانو سره د ترجماني کار اخیسته .

مسون عقیده ښکاره کوی چه د او خت دغور خلک په فارسی نه پوهیدل(۱)
دغسې ډیر اسناد شته چه دهغوی له مخې د سوریانو او غوریانو د ر باره
د پښتو دروزنې او پالنې ښه ځانګو اود دوی ژبه پښتو وه . دغوریانو
ژبې د سوچه والی دلیل یوداهم وچه د دوی قلمرو دفارسی او عربی ژبو
د نفوذ نه ساتل شوی و . د سور ځینو په عقیده غوریانو دغزنویانو ترقوی
کیدلو پوری د بل هیڅ ګاونډی په مقابل کښې ساتی نه وه خوړلی، دعربو
فاتحانو لښکر دغور سیمې ته نه و ننوتی، د سامانیانو یوسر لښکر په یوه
یرغل کښې یوازی دخیسار او تولک کوټونو ته ځان رسولی و (۲) غور
یوازی د غزنویانو په مقابل کښې ساتی وخوړه چه د سو بکتګین له خوا
(دطبقات ناصری د روایت سره سم ) وو هل شو ، خو بیاهم نیم خپلواك و او
د سلطان محمود په وخت دغور بادشاه امیر محمد ابن سوری و نیول شو چه
په لاره کښې هغه بیا له غیرته ځان ووژه . مګر بیا هم غور دغزنویانو
تسلط ته غاړه نه ایښوده چه بالاخره د بوالحسن خلف او شیروان په مرسته چه
دواړه غوریان وو (۳) دغزنویانو له خوا د پښتنو دغه مرکز او بالاخره
دغوریانو له خوا (غزنی) دواړه وران شول .

پښتنو شاهانو په هند کښې نه یوازی د هند آبادی او مدنیت ته خدمت
کړی بلکې په خپلو دربارونو کښې یې پښتو هم پاللې ده . حتی خپله یې په پښتو
ښه ښه شعرونه ویلی دی چه ښه شاهد یې د پښتو په خوا ړه نظم د شیخ رضی لودی
او نصر لودی سوال او ځواب دی . «پټه خزانه ۷۰، ۷۲ مخونه »

---

(۱) ـ د افغانستان تاریخ لومړی ټوك (۲۶۰) مخ .
(۲) ـ (تاریخ بیهقی) د افغانستان تاریخ (۲۵۸) مخ په حواله .
(۳) ـ د افغانستان تاریخ لومړی ټوك (۲۵۸-۲۶۱) مخونه .

په هند کښې د پښتو پالونکو شاهانو په جمله کښې سلطان فیروزشاه (۷۵۲) دیادونې وړدی. دده د پښتو پالنې په باب دخورشید جهان دغه لاندې عبارت کافی گڼم چه لیکی :« ......جزءوسیلهٔ پښتو و پښتو گویی در دربار فیروز شاهی احدی راپیش قدمی مقدور نبود وطایفهٔ افاغنه رافیروزشاه ازتمام شرفاعزیزترمی داشت ..... »

سلطان بهلول لودی (۸۶۰) خو سربیره پردی چه پښتو پالونکی و دپښتویوښه شاعرهم و (۱) .

دپښتو او پښتنو پالنې په باب شیرشاه دخاصې یادونې وړدی. عباس خان سروانی په خپل کتاب ( تاریخ شیرشاهی) کښې لیکی: « شیر خان فرصت و موند .... اود پښتنو په روزنه یې پیل وکړ . ځینې پښتانه چه دزمانې دحوادثو په سبب فقیراو پوستیان وو له فقیری یې خلاص کړل اودسپاهیانو په جمله کښې یې داخل کړل. اوهغه پښتانه یې ووژل چه سپاهی توب یې نه ماننه گدایی یې کوله. ده ویل هرپښتون چه نه سپاهی کیږی هغه به ووژنم ..... پښتنو چه واوریدل چه شیرخان دپښتنو د روزنې سره زیاته مینه لری له هره ځایه دده ملازمت ته راتول شول .... » (۲) .

بل ځای لیکی :« شیخ بایزید دشیرخان دربارته ورغی هغه غوښتل چه شیرخان ته لاس ورکا شیرخان ورته په پښتو وویل : شیخه: تر غاړه به وځو»(۳) .

---

۱- لاندې څلوریزه یې پټې خزانې را اخیستې ده :
ملک به زرغون کړم په ور کړه راسه- گوره اوریځې دداد له پاسه.
خول سې دعدل په دروروڼ دی- جهان به زیب موسی زماله لاسه

۲- شیرشاهی تاریخ ۹۵-۹۶ مخونه .

۳-(تاریخ شیرشاهی ) ۱۶۶ مخ .

په تاریخ شیرشاهي کښې د شیرشاه سوري د پښتوپالنې اوروزنې په باب ډیر شواهد او اسناد وړاندې شوي دي چه دلته یې ښکارندوی وښوول شو(۱).

هجری لسمه او یوولسمه پیړۍ د پښتو د روزنې او د پښتو د ادبیاتو د پرمختګ طلایي پیړۍ ګڼل کیږي. په دغه وخت کښې مونږ د پښتو له پاره دوه چاپیریالونه تړاکلی شو:

۱- رسمي چاپیریال چه د ستر مشر میرویس نیکه له وخته د پښتو سیاسي او ادبي مرکز کندهار (بیا کابل) ګرځي.

۲-اولسي یا غیر رسمي چاپیریال چه د روښانیانو د تحریک سره سم شروع کیږي.

دلته به په لومړي چاپیریال لږ څه رڼا واچول شي.

د پښتو د پالنې او پرمختګ د غه دوره د ملي ستر قاید میرویس نیکه (۱۱۱۹) په ملي مبارزو کښې د بریالیتوب سره یوځای شروع کیږي.

د میرویس نیکه درنې کورنۍ نه یوازې د پښتو پالنه کړې، بلکې د پښتو ښه شاعران هم وو. د میرویس بابا مور میرمن نازو خپله هم د پښتو ښه شاعره وه. دده په دوره کښې د پښتو ښه شاعران وروزل شول لکه سپه سالار سیدال خان ناصر، ملا پیر محمد، بابوجان بابي، داؤد هوتک، ملانور محمد غلجي او نور.

بیا دده دزوی شاه حسین په عصر کښې د پښتو دخدمت په باب د تاریخ یوه ځلانده دوره ده چه دده دربار د پښتو ژبې او ادب ښه ځانګو ګڼل کیږي. دده په امر د پښتو شاعرانو تذکره (پټه خزانه) ولیکل شوه چه د پښتو د ادب تاریخ یې (۱۳) سوه کاله مخکښې زمانو ته ورساوه.

---

۱- «تاریخ شیر شاهي» دعباس خان سرواني تالیف دی دا کې د پوهنتون د ۱۹۶۳ کال خپرونه.

پښتو ژبه په ادبي لحاظ د احمد شاه بابا (چه د پښتو شاعر هم ؤ) او د ده داولادې تیمور شاه او شاه زمان په وختو کښې پالل شوی مگر په حقیقت کښې د تیمور شاه له خواله کندهاره د سیاسي مرکزیت لیرد ول د پښتو د پرمختګ له پاره لویه صدمه وه چه جبیره کول یې گران شول.

په وروسته وختو کښې دربارونو هم پښتو ته پاملرنه لرله مگر محیطي شرایطو یې د پرمختګ مخه عملاً نیولې وه.

د اعلیحضرت امیردوست محمد خان په کورني کښې د پښتوژبې کلکه مینه پرته وه، د همدغې مینې په اثر ددهدوه ورونه سردار سهردل خان او سردار پردل خان د پښتوخوږژبي شاعران وو.

د اعلیحضرت امیر شیرعلي خان په وخت کښې پښتو ژبې ته په رسمي ډول خدمت شروع شو. ټول عسکري او ملکي اوډ کا یېنې دغږیو القاب یې په پښتو واړول . د اعلیحضرت امیر شیرعلي خان دوخت ځینې عسکري قوماندې چه په پښتوشوې وې لاتراوسه ژوندۍ دي لکه( تیا ر سیء ولاړسيء، دریږ) او نور . دده په وخت کښې یولړ کتابونه په پښتوترجمه او یو لړو لیکل شول لکه ددوست محمد خټک (دخوشحال خټک له کورنۍ) کتاب (بحرالعلوم) په پښتو نظم (اخلاق احمدی) ،(طریقه محمدیه) او نور.

اعلیحضرت امیر عبدالرحمن خان هم د پښتو سره بې مینې نه و. دده په امردعبدالقادر خټک (یوسف او زلیخا) په سلطنتي مطبعه کښې چاپ شوه.

د اعلیحضرت حبیب الله په وخت کښې د پښتو په باب یولوی گام واخستل شواوهغه داچې د معارف په تعلیمي نصاب کښې یې ځای ونیواو د ښوونځي په درسي پروگرام کښې رسماً داخله شوه . مولوی صالح محمد درسي (لومړی پښتو کتاب )ولیکه چه دغه کتاب بیا په لاهور کښې هم چاپ شو. په سراج الاخبار کښې د پښتو د مضامینوخپریدل شروع شول .

د اعلیحضرت امان الله خاصه توجه پښتوته گرځیدلې وه. دوی د پښتو د زده کړې او تعمیم په غرض (پښتو مرکه) نومې ټولنه جوړه کړه، چه د هیواد د ټولو قومونو فاضلانواوعالمانو ور کښې گډون کړی و. د اوخت د پښتو د پاره گرامري قواعد ولیکل شول، لغوي پانگه او د اصطلاحاتو

ذخیره یې راټوله کړی شوه، نوی نومونه او اصطلاحات یې هم جوړ شول، دپښتو درسی کتابونه(یوازینی پښتو)،(پښتو پښتویه)و لیکل او چاپ شول. طلوع افغان ورځپانی چه په دری یې مضامین خپریدل دپښتود مضامینو په خپرولویې هم پیل وکړ چه ورو په وروټوله پښتوشوه.

داعلیحضرت نادرشاه په وخت کې پښتومرکه په(پښتوانجمن)و اوښت او بیا مرکزته رانقل او د«کابل ادبی انجمن» په ګډون په ( پښتوټولنه) و اوښت . په دغه وخت کی دپښتو دپراختیادپاره کارشروع شو .

پښتانه لیکوال راوېښ اودخپلې ژبې دتعمیم او پراختیادپاره یې هڅې شروع کړې . ددوی په زیار او کوښښ پښتوژبه په(۱۳۱۵) کښې درسمې ژبې په حیث اعلام اوزده کړه یې په ښوونځیواودولتیدفترونــو کښې هم اجباري شوه.د(۱۳۴۳) کال په اساسی قانون کښې پښتو د(ملی او رسمی)ژبې په حیث و پیژندل شوه، داداب، فنونو ،علومو په ساحه کښې په ترجمو اوتصنیفو بدایه ،دراډیو ، ورځپانو او مجلوژبه او په دولتی دفترونو کښې تریوې اندازې دافادې او استفادې ژبه شوه(۱).

داو ،دپښتوحال په رسمی چاپیریال کښې. په اولسی چاپیریال کښې دپښتودپالنې اوداداب دپرمختګ شروع دروښانیانو په مذهبی رنګ کښې دملی او سیاسی حرکت ـ سره یوځای شروع کېږي.

دپښتو ژبې په لمن کښې دروښان تالیف خیرالبیان لومړی تقریباً ( ۹۷۰ ) کـال بیا دهغه نقل په ( ۱۰۶۱هـ ) کې . دالـومړی بپښتو کتاب دی (۲) چه په متفا نثر لیکل شوی دی . له دغه کتابه ترمخه

---

۱ـ په (پښتو پراختیا په پوړیو کښې) زیاته استفاده د (کابل کالنۍ (۱۳۲۲) دښاغلی بینوا له مقالې (پښتو دشاهانو په دربار کښې) څخه شوې ده.

۲ ـ په دی وروستیو وختو کی چه « روښانی منظومه رساله » موندل شوی زما په خیال د خیرالبیان نه ترمخه لیکل شوی ده.

پرته د شیخ سلی له دفتره (چه ورک دی) او د سلیمان ماکو د تذکرة الاولیاء (چه ځو پانې موندل شوې) مونږ د کوم بل کتاب خرک نه مومو.

راورتی وایی: «چه له ما سره د پښتو د اسې زړې نسخې شته چه د مغولی اکبر باد شاه نه ترمخه یا د هغه په زمانه کښی لیکل شوي» مگر را ورتی د هغو کتابو او د هغود مؤلفینو نوم نه دی اخیستی او نه یې ورنه اقتباس کړی دی(۱). نو ځکه خیر البیان په پښتو کښی لومړی بشپړ کتاب ګڼل کیږي.

د پیرروښان ژوند په یوه داسې وخت کښې و، چه په پښتنو کښی د پیری او مریدی بازار تود و. د یوه ( کامل پیر) په حیث د مغولو سره په مبارزه کښی د پښتنو د ملاتړ د جلبولو په غرض ده د پښتنو د پوهولو له پاره د دوی په ژبه خیر البیان و لیکه. د ده سنت او طریقې د ده د پیروانو (ارزانی، مرزا، دولت و اصل) او نورو په بشپړ د یوا نو نو کښی ژوندي و ساتل شول. او په دغه صورت مونږ گورو چه په روښانی تحریک کښی نه یوازې په مذهبی جا مه کښی سیاسی مبارزه روانه وه بلکې د پښتو ادب د نهضت دوره یې ګڼلی شو.

د پیرروښان د مبارزې په مقابل کښی د پښتو د ادب دویمه مرحله د درویزه او د هغه د پیروانو دوره ده چه د روښانی تحریک د ما تولو په غرض د کورگانیانو له درباره یې سرچینه اخیستې وه. د درویزه مبارزه کورگانیانو په مقابل کښی د پښتنو (روښانیانو) د سیاسی ما تی سبب شوه خو د پښتو د مقفا نثر (او کمزوري شعر) په لاره کښی یې خدمت وکړ. مگر تر دغه وخته منظوم نثر او شعر د ژوند له چارو په ځنګ او یوازې د عقاید و او علم کلام په خدمت کښی بوخت وو.

د پښتو د ادب روښانه دوره یوازې د خوشحال ختک د منځ ته راتللو سره سمه شروع شوه چه د ده د قلم په قوت د پښتو شعر د عذاب قبر او د

---

۱ـ د خیر البیان مقد مه ۵۷ مخ.

دوزخ له لمبو خلاص شواو دژوند دټولو اړخونه په خدمت کښې ولویده دی په حقه و، چه ویل یې:

درویزه مې له مخزنه سره و نغړ-پیرروښان مې یاوه گوی سره ما نند کړ(۱).

دخوشحال دقلم په قوت نه یوا زې پښتو د ننۍ اد بې ژبو سیا له شوه بلکې د پښتنو دملیت دژوندې کولوساه یې بایدوگڼو. خوشحال د لوړې ځل له پاره په پښتو کښې ادب ، سیاست (دستار نامه) طب (طبنامه) او نور علوم ځای کړل چه دا کار نه مخکې چا کړی او نه وروسته.

دخوشحال دغه سپیڅلی میراث دده د کورنۍ (عبدالقادر، صدرخان، هجری ، شیدا ) او نورو له خوا لاپسې بشپړ شو.

دخـوشحال په عصراولـه هغـه وروسته په پښتو کښې غښتلی او نازکخیاله شاعران منځ ته راغلل لکه رحمان بابا، حمید ماشوخیل، حسین ، مصري خان او نور چه دنولسمې پیړۍ ترپیله پورې یې دوام و کړ او په پښتو کښې یې اخلاق ،تصوف، بشر دوستی ځای کړل.

د نولسمې پیړۍ په پیل کښې خارجی استعمار چیانو(لومړی سیکانو او بیا انگریزانو) ددورانی دولت دمشرانو له اختلافه استفاده وکړه او د پښتنوخاوره یې په دوو(بلکې دریو ) برخو وویشله چه دا ستعمار دغه میراث لا اوس هم په خپل حال دی .دا ستعمار په مقابل کښې دلرې پښتونخوا پښتنو په یوه لاس کښې توره او په بل کښې قلم واخیستل چه په دوا ړو مبارزه ترننه روانه ده.

---

۱- دا بیت د خوشحال د کلیاتو دلومړی قلمی نسخې څخه چه په په جان کوره کښې لیکل شوې و اخیستل شو، په چاپی نسخو کښې نشته. بیت په دې قصیده کښې دی:

(په پښتو شعرچه ما علم بلند کړه ...).

## د پښتو دلیك دود تاریخچه :

د پښتو موجوده توری (الفباء) دعربی تورو په اساس جوړ شوی دی. چه سبب یې د اسلام د راتګ سره‌سم دعربی ژبی نفوذ دی .

د اسلام نه ترمخه دمعاصر افغانستان او هغه ته په ورځیرمه سیمو کښی دوه ډوله الفباء زیات عمومیت درلود : الف خروشتی ب : یونانی ( آرمی الفبا د پښتوله پاره دومره اهمیت نه لری.)

دمعاصر افغانستان او هغه ته په ورځیرمه (خصوصاً لویدیځو) بیلو بیلو سیمو کښی دموندل شویو کتیبو او سکو په استناد مورخین وایی‌چه ددغو سیمو د بیلو بیلو ژبو له‌پاره خروشتی الفباء مروجه‌وه . په لرغونی ګند هارا (د افغانستان ختیځی سیمی - دهند دنیمی وچی په شمال لویدیځ) کښی دقبل المیلاد دزرو کلونو په منځ کښی یولړ او لسونه او توکمونه اوسیدل چه دهغوی ژبی سره ډیرې لرې‌نه‌وې. دغه‌ژبی یولړ محققینو د (ګند هارې) په نامه اصطلاحاً یادی کړی دی . ددغو توکمونو په تشکیل کښی باختری،داردی اینډو آریایی او حتی ما قبل اینډو اروپایی عناصر او توکمونه شامل‌وو . خروشتی لیك او ددغو توکمونو ژبه داشوکا ( ۲۷۳- ۲۳۲ ق.م) دیولړ کتیبونه مشهوره ده . همدارنګه یولړ نوری کتیبی‌هم په‌خروشتی‌لیکل شوی‌چه‌د لیکلو تاریخ یې‌له‌دغه وخته وروسته‌دی، الفباء یې‌خروشتی ده(۱). داشوکا په هغو کتیبو کښی چه دمعاصرافغانستان په‌جنوب او جنوب‌لویدیځ کښی‌موندل شوی‌دی‌یوشمیر محققینو (د. شلومبیرګیر) او(ی. بینوینیست) په‌عقیده‌د لرغونی آریایی ژبې یوشمیر لغات لری او دبرتیلس په عقیده ددغه ځای دخلکو ژبه اویستاته نژدې وه (۲) .

---

۱- دپاکستان اولسونه ۵۵-۵٦ مخونه .
۲- دپاکستان اولسونه ٦٠ مخ .

دخروشتی الفباء په باب انگریز محقق سرویلیام جونز وایی چه د خروشتی لیک ژبه دآریانا ژبه وه او که چیرته په پښتو کښی پوره څیړنی وشی نوښایی چه یووخت ددغی ژبی په مرسته ډیری خروشتی کتیبی ولوستلی شی (۱) . دغه الفباء (ه.ه.ویلسون) دآریانا دالفباء په نامه یاده کړی ده چه ددی دپیدا ایښت او له منځه تللو سیمه دآریانا خاوره ده .

په هرصورت دلته باید وویل شی چه خروشتی دیوډول لرغونی الفباء نوم دی، نه د کومی ژبی او د کتیبو له تاریخی څیړنی څخه ځرگند یږی چه خروشتی الفباء له دریمی (ق.م) پیړی څخه ترپنځمی میلادی پوری په دغو سیمو کښی موجوده وه. په خروشتی الفباء له اسونه ترارغنداوه، له کندهاره ترتکسیلا، په هډه، دوردگوخوات، باجوړ، شاهباز گړی او نورو بیلو بیلو سیمو کښی ډیرې کتیبی او سکی موندل شوی چه کله کله په دویمه الفباء (آرمی یایونانی) هم لیکنې ورسره موجودی وی .

دخروشتی الفباء رواج دکنیشکا او هغه داخلافو په ذریعه په تدریج سره له منځه لاړ او ځای یی یونانی الفباء ونیو (۲) .

دمقدونی سکندر له راتگه وروسته دیونانیانو دنفوذ دټینگید لو په اثر یونانی الفباء ورو په وروعمومیت وموند .

چینی سیاح هیون تسنگ چه په میلادی(۶۳۰) کال کښی افغانستان ته راغلی ؤ په تخارستان، بامیان، کاپیسا، شوغنان او چترال کښی دیونانی الفباء دعمومیت روایت کوی (۳) .

---

۱- ژبپوهنه ۶۵

۲- تاریخ خط و نوشته های کهن افغانستان ـ سنگ نوشته های خروشتی پوهاند حبیبی، په دې باب دعکسی خیرالبیان په مقدمه کی دپوهاندرشاد مقاله هم په مواد لری .

۳- ایرانی ژبی داو رانسکی تالیف ۹۵ مخ .

له دغه ځایه یقین کولای شو چه د مقدونی سکندر در اتګ سره سم یونانی الفباء د افغانستان په خاوره کښې مروجه وه چه بیا د کوشانیانو او ګریکو باختر په دوره کښې زیات انکشاف ورکړ شوی دی . د پورتنی روایت او دیولړ کتیبو او مسکوکاتو په شهادت یونانی الفباء په دی سیمه کښې د میلادی اوومې پیړۍ ترلومړی نیمایی پوری عام وه .

د اسلام په اوایلو کښې د یونانی الفباء په اساس د پښتو دخا صوتورو جوړول د عربی الفباء په اساس لکه دروزګان په یوه کتیبه کښې د یونانی الفباء په اساس د ( ځ ) له پاره د عربی الفباء په اساس د (څ)




توری په همدغه شکل جوړ شوی دی . په همدغه کتیبه کښې د آرمی الفباء په اساس هم د پښتو څو کلمې لیکل شوې دی (۱) .

د پښتو موجوده لیک د عربی الفباء په اساس جوړ شوی . د عربی الفباء په چوکاټ کښې د پښتو دخاصو غږونو د پاره توری غالباً ډیر پخوا جوړ شوی ځکه چه پښتو ژبه وه او لیک به یې هم و ، خو په ځینو روایاتو په هجری، څلورمه پیړۍ کښې جوړ شوی دی . په دې باب قاضی خیرالله په خیر اللغات (۲) کښې داسی لیکلی دی چه : د سلطان محمود په

---

۱ – تاریخ خط و ۱۳۷،۱۱۸،۰۰۰ مخونه .

۲ـ خیر اللغات (پښتو اردو قاموس) د قاضی خیرالله تالیف په لاهور کښې د ۱۹۰٦ کال د چاپ سریزه.

زمانه کښې دده دیوهوزیر حسن بیمندی (۱) پهخاصه اشاره قاضی صیف الله د پښتود خاصو غېرونوله پاره توری جوړ کړل چه هغه (ځ، څ، ډ، ړ ړ، ږ، ښ، ګ) دی اودغه ترتیب خاص رواج و موند. ژب ښودنه هم د لیک دود په بحث کښې د (مرأت الانساب) پهحواله د سلطان محمود دوزیر حسن میمندی په اشاره د پښتو دخاصو غږو نوجوړوونکی قاضی صیف الله ګڼی.

قاضی خیرالله د (ټ) په باب لیکلی چه پښتنو تاجرانو بیاوروسته په سیند او پنجاب کښې د مروج (ت) وربانديدپاسه (ط) توری پـه نوې بڼه (معاصره- ټ) واړاوه.

ددغو روایتونو سرهسم دپښتود خاصو غږونو له پاره خاص توری ډیر پخوا جوړ شوی دی، خودهغو دجوړولو نسبت کله پیرروښان، کله درویزه او کله خوشحال ختک ته کیږی. ښایی ددې علت به یاداؤ چه دوی ته به پخوانی لیک نهوی رسیدلی یا به یې پههغه قناعت نهدرلود، نوځکه ددوی پهآثارو کښې دغهلیک دودیا بیخی او ښتی(لکـه پـه خیرالبیان کښې) او یالږ څه بدلونونه پکښې لیدل کیږی (لکه په مخزن او دخوشحال پهآثارو کښې) دعربی الفباء پهاساس دپښتو لومړی اثرد سلیمان ماکوتذکرة الاولیادی چهدکندهار پهارغستان کښې په (۶۱۲ه.ق) کښې لیکل شوی او یوازې اته مخه ورنهپاتیدی. ددغیتذکرې لیک دود دمعاصر لیک دودسره ډیر تفاوت نهلری یوازې (څ) پههمدغه بڼه چه یوټکی د (ج) پهشان ورلاندې هملری لیکل شوی او د (ی) د ډولونو ترمنځه ور کښې توپیرنه لیدل کیږی.

لهدغه ځایه لیدل کیږی چهدغه تذکره د پښتوپهیوهبشپړاو پرمختللی لیک دود لیکل شوېوه او امکان لری دقاضی صیف الله لیک دود یې مؤلف تهرسیدلیوی (۲).

داسی شواهد هم موجوددی چهد پښتو د خاصوتور و جوړ و ل

---

۱- په پښتا نه شعرالو مړی ټوک کښې د تذکرې عکاسی شوی مخونهو ګوریء.
۲- غالباً دا کلمه (میوندی) دی چه نسبت یې (میوند) ته شوی دی.

پیر روښان ته منسوبوی چه دلته وړاندې کیږی:

د پښتولوسړی بشپړ اثر دپیر روښان کتاب خیرالبیان دی چه په (۱۰۶۱ ه ق) کښی دویم ځل دپیرروښان له مرګه (۳۰) کاله وروسته د بهارتوی په قلم لیکل شوی دی.

دخیرالبیان له لیکنې څخه څرګندیږی چه دپښتو خاص توری د پیرروښان له خوا جوړ شوی او یا یې پوره انکشاف ورکړی دی. په دې باب دخیرالبیان داعبارت شاهد نیول کیږی.

«او بایزیده! وکښه هغه حرفونه چه په هرهژبه سازیږي دفایدې دپاره دادسیانو» (او بایزیده دحرفونو کښل په تادی، دحرفونو څرګندول او نوښونه (نمون) او ښودل) په مادی، وکښه ژ سا په فرمان په مانند دحروسونود قرآن او کښیږده په ځینې حروفونوتکی یا غړوندی اویانورې نښانی بی له حرفونو....»(۱)

له دې وروسته د عربی د تورو په شمول په خیرالبیان کښی د پښتو تورو لیکل هم په ځانګړی او هم په مرکب ډول وړاندې کیږی، په دغو تورو کښی د(څ، ړ، ژ) د موجوده تورو سره سمون نه لری په دې معنا چه (څ) د(د- ورلاندې تکی)، (ړ) د(د- په منځ کښی تکی)، (ژ) د موجوده (ړ) په بڼه لیکل شوی دی.

دولت لوانی (۹۸۰ ه.ق په حدود کښی) هم داخبره تائیدوی چه پیرروښان د پښتو دپاره توری جوړ کړی دی لکه چه وایی:

افغانی لفظ مشکل ولوست کویښ نه شو- ورته وشوه کننده دیارلس حرفونه.

دلوانی له وینا څخه معلومیږی چه پیرروښان د پښتو دپاره (۱۳) خاص

---

۱- دخیرالبیان ۲-۳ مخ ، د پیښور چاپ او د کابل د پوهنتون فوتوکاپی چاپ څلورم الف مخ .

نوی توری جوړ کړی دی ، حال داچه د (ی) نه پرته چه تو پیر یی په خیر البیان کښې نه لیدل کیږي) (۱)

په پښتو کښې یوازې (۱۲) خاص غږو نه دعربي په نسبت اضافه دی. دیار لسم توری زما په خیال د پیر روښان په لهجه کښې یوغږدی چه په کانیګرامی اورمړی کښی موجود او د (ږ) (ښ) ترمنځه غږو ر کوی (۲). په خیرالبیان کښې تول توري یو یوځل لیکل شوی دی مګر (ګ ـ ګ) دوه ځله تکرار شوی دی (۳) نوځکه زه یقین لرم چه د (ګ ـ ګ) تکرار د دي له پاره دی چه یو توري يې د دغه خاص غږ له پاره وضعه شوی دی .

په مخزن الاسلام کښې د پښتو د خاصو تورو یوه برخه (پ ـ ټ ـ چ ـ خ ـ ډ ـ ړ ـ ښ ـ ګ ـ ڼ) د خیرالبیان د لیکنو سره سمون لري ، مګر د مخزن الاسلام په پخوانیو نسخو کښې د (ځ) په ځای (څ) په خیرالبیان کښې (د ـ ور لاندی ټکی) (ژ) په همدا بڼه (په خیرالبیان کښې د (ږ) په بڼه) او (ږ) هم په همدا بڼه په خیر البیان کښې (د ـ په منځ کښې ټکی) په شکل لیکل شوي چه د غه دري توري د خیرالبیان سره توپیر لري .

د پښتو د خاصو تورو یادونه په مخزن کښې داسې راغلې ده :

« و دیگر معلوم باد که چون حروف در الفاظ افغانی و هنند و ی ثقیل می آیند بنا بران علامتی بران آورده میشود تا معلوم گردد که این همان حرف ثقیل است . چنانچه : (ب) چون ثبقل شود سه نقطه در تحت او ایزاد گردد (پ) میشود و گاهی (ت) چون ثقیل شود جز مکث در تحت آن داده (ټ) میشود و ...» (۴) .

مخزن د پښتو د (ځ) د پاره توری نه لاره د مخزن ډیره لرغونی قلمی نسخه چه لومړی په (۱۱۱۲) کښې د کریمداد د نمسی له خوا بیا د عبدالغنی کاسی

---

۱ ـ یوازې (ی) غالباً د (يې) په بڼه لیکل شوي ، لکه (پیی ، زمیی)
۲ ـ داورمړی فونیتیک وګوریء .
۳ ـ خیرالبیان خلورم مخ .
۴ د مخزن وروستی بحث وګوریء .

په لاس په سلطان کښی په (۱۱۳۲) کښی لیکل شوی (۱) د (څ) په ځای کاله (ځ) لیکی لکه (نمونځ ، پنځه) او کله (ز) لیکی لکه (زکه، راوزي) د(ځکه، را وځي) په ځای . داخون درویزه د مخزن په دغه ردیف کښی د(ڼ) یا دو نه هم نه ده شوي خو په ځینو نسخو کښی په (ڼ) او په ځینو کښی په (نړ) لیکل شوی دی . په دغه زړه نسخه کښی هم د (نړ) په بڼه لیکل شوی ښا یی دلیل یی داوي چه د درویزه په عقیده د امرکب (ن+ړ) توری دی .

د پښتو دلیکدود د خاصو تورو له پاره خوشحال خټک او دغه کورنی بیل سیستم لاره .

د پښتو ټولنی په کتابخانه کښی دخوشحال خټک داشعارودرې قلمی نسخې موجودې دي چه ټولی یوډول لیکدود لری . ډیره لرغونی نسخه یې په (۱۰۹۹ هـ . ق) داپرید یو په جانکوړه کښی لیکل شوی ده .

په دغه نسخه د(او نورو) کښی د پښتو توري په دی ډول دي : (پ ، ط ) (ورلاندی ټکی دټ) دپاره . چ (ورلاندې همزه غوندی نخښه د(څ،ځ) له پاره . په دریمه قلمی نسخه کښی (ح) ورلاندی همزه د (ځ) له پاره، (د ، ر) (ورباندې دهمزه غوندې نخښه) د (ړ، ډ) له پاره(ژ،ش) د (ژ ، ږ،ش،ښ) له پاره .(ك) د(ك ، گ) له پاره ،ن (ورباندې همزه غوندې نښخه) د(ڼ) د پاره.

دخوشحال په لیکدود کښی چه یو نوی شی لیدل کیږي هغه دثقیلی (ی،ی ء) موجوددیت دی . ثقیله (ی) کله په(ی ء او. کله په (هـ+ي) لیکی . دغه لاندې دوه غزلی :

۱ـ داوله په سرجوړه کادړی ـ بیا ټیکه په ورځو کیږدي خونړی
۲ـ په ښایست کښی دې ځوك نشته دسیالی ـ که دې ځه خو مهرهم وای نتیالی .

چه څنګ په څنګ (۲۷۳-۲۷۳) مخونو کښی لیکل شوی لومړی ردیف په (هـ+ی) اودویم په (ی ء) لیکل شوی دی . په پټه خزانه کښی ددرویزه د مخزن لیکدود دتعقیب شوی دی . داچه هوتکیانو به د پښتو دلیکدود دپاره څه کار کړی وی په دې باب ماته معلومات نشته . د(ځ) توری

---

۱ ـ دغه نسخه په (ادبی ستوری ـ لومړی ټوك) کې معرفی شوې ده.

چه د(ج) په شان ورلاندي تکی هم لری د سلیمان ما کو په تذکره کښی موجوددی خودا میرعبدالرحمان په وخت کښی د(ځ) په شان لیکل کیده چه ددوو غږونو مشترك توری و (۱) .

دا میرحبیب الله خان په وخت کښی چه پښتو تدریس د حبیبی په تعلیمی نصاب کښی داخل او د مولوی صالح محمد له خوا ورته (لومړی پښتو کتاب) ولیکل شو ، په هغه کښی د (ځ) د پاره داسی توری جوړ شو چه د(چ ،خ) په شان یی یوتکی پاس او بل یی لاندي لاره - د مخزن په څینو وروستیو نسخو کښی هم دغه توری په دغه بڼه لیدل کیږی او (پښتو سر کی) هم دا توری همداسی ونانه .

مولوی صالح محمد دزور کی د پاره ( زور ) لیکه او د ( زور ) په صورت کښی یی حرکت نه لیکه .

ترمخه وړاندي شوه د ثقیلی (ی) توپیر دخوشحال په لرغونی(۱۰۹۹ ه،ق) قلمی نسخه کښی لیدل کیږي چه کله په (ه + ی او کله په ی ء) لیکله شوي . د پښتو ادبی انجمن په (۱۳۱۱ ه) کښی منځ ته راغی او ثقیله (ی) یی په (یء) ومنله .

د تانیث (ی) په دغه بڼه کښی بیا وروسته منځ ته راغلی ده . د پښتو ادبی انجمن د (ځ) له پاره هم همدغه شکل ومانه . د پښتوادبی انجمن د پښتو د بشپړ لیک دود بنسټ کیښود چه بیا وروسته د پښتو ټولنی د غوښتنی په اساس په (۱۳۲۱ ه،ش) کال په لومړی فیصله او بیا په (۱۳۲۷ ه ، ش) کال کښی په دویمه فیصله کښی لږلږ ترمیمونه ور کښی وشول او د پښتو موجوده لیک دود په لومړی فیصله کښی یوازي دافغانستان دلیکوالو له خوا او په دویمه فیصله کښی د ټولی پښتو نخوا دلیکوالو له خوا ومنل شو .

---

۱ - دا میرعبدالرحمان په امر په سلطنتی مطبعه کښی دعبدالقادرختک (یوسف او زلیخا) چاپ شوی کتاب وگوریء .

د شلمې پېړۍ تر پیل پورې د ساکی او تخاري ژبو په باب د علمي پلټنو په لمن کښې څه معلومات نه وو. د دغو ژبو و یونکو چه په دویمه قبل المیلاد پېړۍ کښې د امو د جریان په پاسني ساحه، باختر، درنگیان، آراخوزیا او خوا او شا کښې لویه وا کمني لرله. همدارنگه د هیون (hyon) یفتلیا نو د ژبې په باب هم څه مواد د پوهنې په واك کښې نه وو. د دغو ټولو قبایلو د ژبو په باب معلومات د هغو سکو نه په لاس راغلي دي چه د دوی او د ساکو شاهانو د عصرو نو پورې مربوط او په یوناني الفبا لیکل شوي دي لکه: ( شاو، شا، شاو نا نوشا ) ( ۱ ) او خـوتای ـ Xvatay ( ۲ ) . اه د غـو سکو څخه د لوسړي ځل له پاره د اعقیده پوهانو ته په لاس ورغله چه ساکی تخاري او یفتلی قبایل آریایی ژبی وو .

---

1— Sha, Shao, Shaunanu sha.

(۲) ـ دغه رینبه چه په (خدای ، خاوند) کښې لیدل کیږي هم د باد شاه په معنا ده .

دشلمې پیړۍ په پیل کښې (خصوصاً د ا ، ستین) دعلمي پلټنو په ذریعه په‌خوتن او د چینی تورکستان په‌ځینو نورو حوزو کښې یولړ کتیبې و موندل‌شوې چه په براهمنی لیک لیکل شوی او بودایی‌مضامین یې لرل .

ددغو متنونو دلیکلو تاریخ چه میلادي (۷–۱۰) پیړیو ته رسیږي له‌سانسکریت څخه زیات ترجمه شوي دي . ددغو متنونو ژبه دهغو سکو دژبو سره یوه وه ، چه په باختر ، تخارستان او ورځېرمه نورو سیمو کښې موندل شوې‌وې .

دغه متنونه د (ساکی خوتنی) ، (خوتنی) او په نورو نوموننو اوس یادیږي . ددغو متنونو په‌جمله کښې داسې متنونه هم‌شته چه رسمی ، نظامی ، دنیوي مضمون لري اویا شخصي لیکونه دي ، همدا رنګه بودایی منظومې قصیدې هم‌لري .

د خوتنی‌متنونو څخه سر بیره دچینی تورکستان دیار کند او قاشقار نه داکسو په‌لاره کښې دمرال باشی په‌حوزه کښې هم یولړ کتیبې په‌ساکی ژبه‌موندل شوي چه‌د شخصي لیکنو خصوصیت لري .

ډیر وخت په‌دې باره کښې مشاجره روانه وه چه‌تخاري ژبه په کوم نامه باید یاده‌شی .

دې‌نظریې‌لا په‌۱۹۰۸ کال کښې ډیر پلویان لرل چه تخاري ژبه دباختري‌خلکوژبه وه‌چه‌په(۸–۹) پیړیو کښې دچینی تورکستان په تورفان کښې‌خپره‌وه (او که‌دساکی ژبې‌سره یوه‌ونه ګڼله شي)نو دهغې ساکی‌سره‌بې ډیره خپلوي لرله‌چه متنونه یې په خوتن اومرال باشی کښې موندل شوي وو .

ساکی ، تخاري ، هیونی (یفتلی) قبایل چه‌له‌قبل المیلاد دویمې پیړۍ څخه‌د میلادي(۳–۵) پیړۍ پورې‌دافغانستان او دمنځنی اسیانورو سیموته راغلي وو دهغو باختري قبایلو یوه برخه وه چه په چینی

تور کستان کښې او سيدل. ددوی بله برخه چه په دغو مهاجر تو کښې ددوی سره نه وه د (تاريم) په حوزه کښې ميشته وه .

دانظريه چه ساك ، تخاريان او هيو نيان باختري قبايل دي له نويو ار کيالوژيکو کيندنواو موندنونه وروسته تائيد شوه چه يو لړ کتيبې ديوناني الفباء په اساس وموندل شوې (۱) .

داوو سي پيري په لومړي نيمايي کښې چه چيني زاير سيوان څزيان دامودجريان پاسنې برخې ليدلی وې د تخارستان دالفباء په باب يې داسې ليکلي وو : «دتوخولو (تخارستان) ليك د سولی (سوغد) (۲) دليك سره ډيرتو پير لري او (۳۵) توري لري. افقي له کينې خوانه ښي خواته ليکل کيږي» (۳)

ددغه روايت له مخې څرګنديږي چه تخاريانو لاپه اوومه ميلادي کښې ديوناني الفباء په اساس ليك سنلی و او دخپلې ژبې دغږونو دافادې وړ يې ګرزولي و. په يوناني کښې چه دکوم غږ (ش) توری نه وهغه يې ورته په خپله ژبه کښې جوړ کړی و ديوناني الفباء (توري ۲۴) دی او ددغه چيني زايرد (۳۵) تورو روايت کوي .

دتخاري ژبې ليکلي آثار ډير سر والي له مخې لږدي او متأسفانه ښه نه دي سا تل شوي ، اکثره ښه نه دي لوستل شوي او دژبې دمطالعې له پاره ډيرلږ مواد لري او هغه دادي :

---

۱- مقدماتی فيلالوژي ۲۰۵-۲۰۷ مخونه .

2-tu—xo—lo,suli

۳- ايراني ژبې ۹۵ مخ ، همدارنګه مقدماتی فيلالوژي ۱۶۰-۱۶۱ مخونه .

۱- د کوشانی او یفتلي شاهانو په سکواو تاپو باندې افسا نې ،
۲- د کتیبو هغه ټوټې چه په (۱۹۱٦) کښې ۱ ، ستین دچینی تور کستان په لویلان کښې موندلی دی .
۳- هغه درې ورې کتیبې چه د فرانسوي لرغون پیژندونکی هیئت له خوا دلرغونی باختر په خاوره کښې په (۱۹۵۴) کښې موند ل شوې (یعنې د سره کوتل کتیبې) .
۴- د یفتلی کتیبو ټوټې چه په تورفان کښې الماني لرغون پیژندونکی هیئت له خوا موندل شوې اودو . هانس له خوا خپرې شوي دي .
۵- هغه دوه کتیبې چه د افغانستان په اورزگان کښې په (۱۹۵۳) کال کښې موندل شوی او د ۱.د.ه. بیوار له خوا په لندن کښې په (۱۹۵۴) کال کښې خپرې شوي، دغه کتیبې په میلا دي (۵۰۰) کال کښې لیکل شوي دي .
٦- په یوه قبر کښې د خوم د کتیبې ټوټه چه په دو شنبه (۱۹۵۱) کال کښې موندل شوې او په لوسړی یادو یمه میلادي پیړ ی کښې لیکل شو ې .
۷- د سوغدي باد شاه دیواشتیچ په بوه سند باندې لیکنه چه د اتمې میلادي پیړی په سر کښې لیکل شوې .
د دغو ټولو اسنادو له هغو کلمو څخه چه لوستل شوي دي دا ثا بتیږي چه د دغو ټولو اسنادو ژ به د باختري (ساك ـ تخاري) ژ بو،د بالیکتو نه دي. د سا کی تخاري ژ بو د محققینو په جمله کښې د نارو یژی محقق ستین کونو (۱) آثار د یادو نې و ړدي (۲) .
تخاریان چه د امو د منځنی جریان په سیمه کښې د گریکو باختر د باد شاهی په گاو نډې سیمه کښې میشته شول په چینا ئی ماخذو نو کښې

---

۱ - S. sten konow

۲- مقد ماتی فیلا لوژي ۲۰۷-۲۱۰ مخونه .

د(يوې چژي- ue chzhi) په نامه يادېدل . (لکه چه ترسخه وويل شول دغو قبايلو يوه برخه هماغلته په چيني تورکستان کښې پاتې شوه. دا رغون پېژندونکو له خواچه په چيني ختيځ تورکستان کښې دنولسمې په پای او دشلمې په سر کښې پلټنې شوې هغوي د تکله مکان - takla Makan) دلويې دښتې د شمال ختيځ په حوزو کښې د ميلادي لومړيو پنځه سوه کلو نوپه جريان کښې دد اسې قبايلو له خوا نيول شئ چه ژبه يې اينډو اروپايي ژبوته نژدې وه . (۱)

ددغو قبايلوله پاره لوسړی دوه اصطلاح گانې وضع شوې:

**تخار، الف**:(چه په تورفان او کره شار کښې اوسېدل)

**تخار،ب**: (چه دچيني تورکسان په کرشار او په کوچی کښې اوسېدل ) . مگر ددغه گروپ ژبو ته د(تخاري) نوم ورکول درست نه وو. ددغه نوم په ځای په (۱۹۲۵) کال کښې دا کاد يمسين ولاد يمير خوف له خوا (کوچانی کره شاری) نوم ورکړ شو. په دغه گروپ دليکلو کتيبو تاريخ د(۵-۸) پېړيوتر منځه دی. دادا ينډو اروپائی ژبو خاص گروپ وچه اوس له منځنه تللې دی(۲)

دساکی ژبې ديوې کتيبې يوه ټوټه چه په ميلادی (۷-۸) پېړی کښې ليکل شوی ديوه جنگيالی (کهوچا) نومی او لس خبرورکوي چه خوتن يې پرېښود ،دځينو محققينو(۳) په عقيده امکان لري چه( کهوچا) د( کوشان) سره نژديوالی ولري. تخاريان چه کله له خپل اصلي ټاټوبی نه جنوب ته لاړل دساکو سره گډ شول او يوه لويه اتحاديه يې جوړه کړه.

---

۱- د پاکستان اولسونه ۸۴-۸۹ مخونه

۲ - « « « ۵۴-۵۸ مخونه .

۳- داعقيده دو . س . ره بييف دسياتو فسکی ده . همدغه کتاب ۸۶ مخ .

دو.ب .هیننګ په عقیده کله چه دوی په باختریا نوبری و موند تخاریانو د هغو ژبه خپله کړه .دا نظریه ډیرو پوهانو او مؤرخینو تائید کړې چه د تخاریانو (او کوشانیانو) دو ، اکمنوژ به باختری او دخوتن او مرال باشی د کتیبو دژبی او دسا ګود دیالیکتو نوسره نژدې خپلوي لری.

چینی زایر (سیویان څزیان چه تخمیناً په میلادی (٦٣٠) کال کښی تخارستان تـه راغلی ود تخاري ژ بی په باب داسی خبرور کـوی: «د تخارستان ژبه او لیک د نورو بادشاهیو سره توپیرلري. لیک یی افقي دی، د کیڼی خوانه ښی خواته لیکل کیږی او دا دبیاتو حجم یی له سوغدی څخه همزیات دي» دغه چینیزیراد همدغه تیپ الفبأ او لیکدود یادونه په باسیانو ، کا پیسا ، شوغنان او چترال کښی کوی. په دی کښې پوهان شک نه لري چه همدغه لیک دود په کوشانی دوره کښې مروج و. او حتی له همدغه لیک څخه په اوومه میلادي پیړی (او غالباً له هغې وروسته) هم استفاده کیدله (۱).

**یفتلیان :**

دهیو نیتو یفتلیانو دتوکم په باب موضوع پوره روښانه نه ده د ځینو محققینو په عقیده یفتلیان د تورکی توکم څخه دی .

دجرمنی پـوهـ ف. التهیم وایی : چـه یفتلیا ن او کید اریـان یوشی دي چه دمعاصر افغانستان په شمال کښی یی د څلورمی میلادي پیړی په دریمه نیمایی کښی دولت جوړ کړی و. دده په عقیده (کید یر) یا (کیدار) دلوید یځ معنا ور کوی ، نوکیداریان تورکی ژبی ګونیان دي چه د باختری هیون - (Hyon) قبایلو د اتحاد یی مشرتوب یی په غاړه و.

دس.پ. تولسوف په عقیده یفتلیان دبومی باختریانو (لوی سالک) (مساګیت) او تورکی ګون د ګډون په اثر تشکیل شوی دی. د-پ ګیرشمن په عقیده هیون چه داتحاد یی مشرتوب یی په غاړه لاره د کوشانیانو سره دتوکم له مخی خپلوان و و.

---

(۱) -ایرانیژبی ۹۵ مخ .

ف. ماك گاورین ،س . کنوو ، ك. اینوکی(۱) او ځینې نور پوهان عقیده لري چه یفتلیان د باختری قبایلود اتحادیې نوم دی. ددغی موضوع داثبات له پاره دوی ځینې شواهد راوړي چه ثابتوی دیفتلیانو ژبه آریایي باختري وه .

په وروستیو وختو کښې دغی نظریې دزیاتو محققینو دتأیید ملاتړ حاصل کړی دی. دغه اتحادیه دڅلورمی پیړۍ په لومړی نیمایی کښې جوړه شوې وه چه دکوشانیانو د امپراتورۍ سقوط او ددغی اتحادیی جوړولو ددغی سیمی د باختري قبایلو په قلمرو کښې کوم بدلون رانه وست او هماغه باختري قبایل وو چه خپل مملکت یې اداره کاوه.(۲).

## د باختری ژبو څانګی :

باختري ژبی (اودیالیکتونه) چه د پښتیک ژبو(۳) په نامه هم ځینو محققینو یاد کړي د دشت لوت او دشت کویرلوید یځ ته د معاصر افغانستان په سیمه او هغه ته ورخیرمه د منځنی اسیا په نورو بر خو کښې تاریخی لرغونی موقعیت لري او ځینې یې لکه (ساکی) له همدغه ځا یه لیرو سیمو ته خپري شوې دي.

دغه ژبی په خپل وار په دوو څانګو ویشل شوې دي :

۱- جنوبی څانګه .

۲- شمالی څانګه.

دجنوبیي باختري ژبو په څانګه کښې باختری، ساکی، پښتو، پامیري مونجانی، اورمړي او پراچی ژبې شاملې دي همدغه د افغانستان معاصره سیمه (باختریا) او هغې ته ورخیرمه ددغو ژبو اصلی ټاټوبی دی .

---

I-F. Mak gavren —S. Konow —K. Enoki

۲ - دپاکستان اولسونه ۸۹-۹۱ مخونه.

۳-دهند ، نیپال ، سیلون... ژبې ددوریانکوف مقاله وګوری .

او په دی باب د ( پاکستان اولسونه ) ۶۱ - ۶۲ مخونه.

له دغه ځایه بیا چینی تورکستان ته هم خپرې شوي چه هلته او دلته په لرغونو عصرونو (قبل المیلاد دویمه پیړۍ کښې) ساکی-تخاري ژبې او دیالیکتونه خپاره شول .

ژوندۍ ژبې دهمدغو ساکو - تخاري ژبو اود یا لیکتونو بقایا او پاتې شونی دي (۱).

په منځنیو پیړیو (له څلورمې ق .م نه تر میلاد دي اتمې ، نهمې ) کښې دلته ، باختري ساکو-تخاري او یفتلي ژبې خپرې وې چه له هغو څخه یوازې دساکی (خوتني) ژبې کتیبې په تورفان او دباختري ژبې کتیبې د بغلان په سره کوتل کښې موندل شوې دي.

دباختري شمالي ژبو گروپ له سوغدي،خوارزمي، سکیفي، الاني، او سیتي او یغنوبي څخه عبارت دي چه دغوژ بوته سکیفي ځانگه هم ویل کیږي. له دغوژ بوڅخه اوس یوازې یغنوبي او سیتي ژبې ژوندۍ دي.

دباختري جنوبي او شمالي ځانگو تر منځه دویش یولړخصوصیات شته چه یوله هغوڅخه دادی چه په شمالي گروپ کښې داسم دجمع نخښه (ت) (ته) (۲) ده مثلاً سوغدي:(ورترت= ورونه)،(پریشتیت=پرښتې).
یگنوبي:( غرت = غرونه ) ، ( ژو توت = زامن ) .
اوسیتي:(سرته = سرونه ) ، ( دورته = ډبرې ) .
په خوارزمي کښې دغه د(ت) غږ په (ځ) اوښتی دی.
خوارزمي:(نیغوسیځ = نغوړ ونکی ) اوریک (وروځې) (۳) .
دلته لومړی باختري جنوبي ژبې وړاندې کیږي .

---

۱-(مقدماتی فیلالوژي) ۳۴۶ - ۳۴۷ مخونه همدارنگه (ایراني ژبې) ۱۷۵ - ۱۷۶ مخونه . داورمړی او پراچی موضوع لا بشپړه نه ده روښانه شوې خود همدغې خاوری لرغوني ژبې دي.

۲- t, ta

3 Wr,trt, pryshtyt- zhutot, sar-ta, dur-ta-nighusic,awric.

(باختر) یا (باختریا) دافغانستان دیوی لرغونی سیمی نوم دی چه دامو په پاسنی او منځنی جریان کښی واقع د شمال له خوا دغیسار ترخو کی او دجنوب له خوا دهندوکش پوری غزیدلی ده ، چه د ننني تخارستان، کندز ، بغلان ، بلخ او مینوور شیرمه سیمو سره سمون خوری . ددغی سیمی مرکز دافغانستان لرغونی تاریخی ښار بلخ و ،چه د باختر، با کتریا، باختریش ، بخدای او با لهیک ذیس په بیلو بیلو نومونو په اسلامی او داسلامی دوری تر مخه یونانیانو، عربو، هند یانو او پارسیانو یاد کړی دی .

ددغی لرغونی سیمی نومونونه هم په اویستا او د زړی پارسی په لیکنو او دلرغونو یونانی جغرافیه پوهانو په آثارو کښی قید دی .

له دغو زړو لیکنو څخه ښرگندهوه چه د دغی تاریخی سیمی او سیدونکی آریایان دی مگرد اسی تاریخی لیکلی موادنه وو چه ددغو خلکو ژ به تری په ښرگند ډول معلومه شی چه په آریایی ژبو کښی کوم موقعیت لری .

په دغه سیمه کښی په قبل المیلاد دویمه پیړی کښی ساک ـ تخاری قبایل میشته شول چه یوه برخه یی خاصه د تخار (تخارستان) په نامه یاده شوه .

څلور پنځه پیړۍ وروسته دغې سیمې ته دهیونیت (یفتلیانو) بل گروپ راغی . دسا ک ،تخاري توکم څخه څوشاهـي کورني منځ ته راغلي چه یوه ډیره مشهوره یې د کوشانیانو کورنۍ ده . د کوشانیانو په عصر کښې دبوسي ژبو دلیک له پاره یوناني الفباء ومنله شوه .چه په یوناني الفباء د کوشاني او یفتلي شاهانو دعصر ډیری سکې ، توتې او نور لیکلي آثار موندل شوي چه اوس هغې ته (تخاري لیک) اصطلاحاً ویل کیږي . مگر دالیکلي مواد دومره زیات نه وو چه دهغوله مخې ددغو لیکل شویو آثارو ژبه (یا ژبې) وټاکل شي .

کله چه (١٩٥١ع) کال کښې د فرانسوي لرغون پیژندونکي هیئت له خوا په اتفاقي ډول دسره کوتل کتیبه وموندل شوه . محققین په دې قانع شول چه دایوه باختري ژبه ده چه د پیرسیک گروپ سره هیڅ ډول نسبي خپلوی او نژدیوالی نه لـري .

ټول ختیځ پیژندونکي په دې متفق دي چه ددغو کتیبوژبه دافغانستان بومي ژبه ده او په بشپړ لوست یې کـه څه هم تراوسه نه دی بریالی شوي خو په مقدماتي ډول یې هغه دافغانستان یوه داسي لهجه بللې چه دژبنیو موادو په لحاظ له یوې خوا دپښتو او مونجاني (ایدگا) اوله بلې خوا دسوغدي ، خوارزمي ، اوپارتیاني ترمنځه واقع ده .

هینینگ یې د ( باختري ژبې ) او ماریک ( د کتیبې لومړی مفسر اوخپرونکی) یې دالبیروني (یولسمه پیړۍ) او چیني سیاح (هیوان ځانگ) (اوومه پیړۍ) په استناد د (ایتوتخاري حقیقي تخاري) په نامه یادوي (١) .

---

١ ـ دماریک مطلب د (ایتیوتخاري = حقیقي تخاري) نه هغه تخاري

الف او تخاري به نه دي چه ویونکي یې دچیني تورکستان نه راغلي دي او دساکو تخار په نامه یادیږي اودچین په [تور کستان] (کوچې) او (کره شار) کښې یې کتیبې موندل شوي دي ، بلکې دماریک مطلب دتخاري نه یو باختري (شرقي آریایي) دیالیکت دی چه په همدغه سیمه کښې لرغوني موجود و . په دې باب (ایراني ژبې) داو رانسکي تألیف (٢٢ او ٩٧) مخونـه وگوریء.

هینینگ او ماریک په دې متفق دي چه داد باختریو لرغونی دیالیکت دی چه کوشانیانو پرې خبرې کولې او د کتیبو د لیکلو تاریخ میلادي ویمه پیړۍ گڼي.

یو لړ نور ختیځ پیژندونکي هم د دغې کتیبې په لوست او تحلیل کار کوي، خو د هغوی د کار نتیجه متاسفانه لا تر او سه لاس ته نه ده راغلې مثلاً جرمني او اتریشي نامتو پوهان هیلیموت هومباخ او رابرت گیوبیل په دې باب لیکي: «د فیلالوژیکي شواهدو سیستماتیک چوکاټ یوازینی میتود دی چه د هغه په واسطه د سره کوتل د کتیبو اکثری پوښتنې په علمي صورت حل کیدای شي».

د بغلان د کتیبې لومړۍ نسخه - د کابل په موزیم کښې

له مونږ سره د منځنۍ اسيا تولې يونانې کتيبې د شواهدو په حيث شته خوځينې يې لانه دي خپرې شوې . مونږ فکر کوو چه دغه کتيبې که څه هم مشکلې دي خو مونږ يې په حل کولو بريالي شوي يو . دغه کتاب چه مونږ يې چمتو کوو داسې تول شواهد لکه سکې ، تاپې، متنونه او کتيبې به ولرې دااسناد په هماغه ژبه ليکل شوې چه د سره کوتل کتيبې پرې ليکل شوې دي ... (۱) .

دغه ژبه چه په هرڼا سه چا بللې خو بيا يې هم هغه يوه باختری ژبه بللې نه بله .

تر کومه حده چه ما د کتيبې لوست او تحليل ته پا ملرنه کړې ده، دې نتيجې ته رسيدلى يم چه کتيبه په پښتو ليکل شوې ده يوازې دو مره توپير شته چه د دغودو وزرو کلونو په جريان کښې لکه چه په ژبو کښې طبيعي قانون دى څه لغات يې له لاسه ور کړی او لږ څه نورې اوښتنې ور کښې منځ ته راغلې دي . دا اوښتنې او تغيرونه له هغو لږ دي کوم چه د فارسې او سا سا نې پهلوی تر منځه موجود دي .

## د کتيبې الفباء :

د کتيبې دليک الفباء يو نا نې ده يونانې الفباء د پيکتو گرافيک (تصويرى) او ايډيو گرافيک (په نښو ليکک) نه وروسته د لرغونې مصرى ، اسورى ، زړې هندي ، عبرانې او فينيکي پسې په فونو گرافيک ليک کښې وروستى مرحله ده چه لرغونو يونانيانو پرانيستلې ده . لرغونې يونان دغه الفباء له فينيکيانو څخه اخيستې او دخپلې ژبې دغږونو دغوښتنې سره سم يې په هغې کښې يو لړ تغيرونه راوستل : مثلاً غږيز توری فينيکانو ويل خو ليکل يې نه ، دهغو دپاره يونانيانو خاص تورى وټاکل يونانې الفباء ورو په ورود لاتينې ، سلاو يا نې او نورو اروپايي ژبو دالفباء موږ شوه .

د مقدونې سکندر د تهاجم نه وروسته داسې شرايط منځ ته راغلل چه

---

۱ ـ دختيځ پيژندونکو کانگرس (۱۹۶۴) کال نوی ډيلی .

دهخا منشیا نو د دولت دقلمرو په ځینو سیمو کښې یونانی کلتور او لیک ومنل شول.
لومړیو پارتیانی شاهانو (فیلیلین) د(میلادی لومړی ترنیمایی)خپلی سکی په یونانی الفباء ضرب کړې.
ددریمی میلادی پیړی دساسانی شاهانو څخه داسی کتیبی شته چه په آرمی لیک دپهلوی دلیکنوسره متوازی یونانی ترجمی په یونانی الفباء ور کښی موجودې دی.
دیونانی الفباء دترویج نه سیمه (ددریمی نیمایی نه دقبل المیلا د دویمی نیمایی پورې) په ګریکو باختری دوره کښی د باختر سیمه شوه.
په باختر کښی دیونانی فاتحاتو پاتی شونی نظامی قوه دومره زیاته نه وه، نویونانی ژبی په باختری ژبې (ژبو) دومره اغیزه ونه کړای شوه مګر دبومی ژبود پاره یی الفباء ومنله شوه، انکشاف ور کړ شو، د سیمی دژبو دخاصو غږونو دپاره ور کښی خاص توري ورو په ورو جوړ شول چه دغی عنعنی دګریکو باختر ددولت له سقوط وروسته هم دوام و کړ.
دکوشانی امپراتوری او له هغی وروسته دیفتلی شاهانو په دورونو کښی همدغه الفباء مروجه وه. دکوشانی او یفتلی شاهانو په سکو او لیکلو اسنادو دیونانی الفباء دتوریو دتاریخی سیر څیړنه محقق ته داعقیده ور کوی چه دافغانستان په معاصره خاوره کښی وخت په وخت دیونانی الفباء په تدریجی پراختیا او عمومیت باورولری.
چینی زایر هیوان څنګ Hiuen Tsiang د میلا دی اوومی پیړی په لومړی نیمایی کښی دافغانستان معاصرې خاورې ته دوه ځله په(٦٣٠-٦٤٤ )راغلی ؤ ددغی سیمی دژبو، ادبیاتو او الفباء په باب دا سی روایت کوی:
دتخارستان لیک دسوغد دلیک سره ییخی توپیرلری او(٢٥)توری لری.دغه لیک افقی له کینی خوانبی خواته لیکل کیږی.
دغه زایر دهمدغه ډول الفباء یادونه علاوه پرتخارستان په بامیانو،

کاپیسا ، شوغنان او چترال کښې هم کوی. په دغه لیک یو لړ لیکلی اسناد دافغانستان په مرکزي، جنوبي، او ختیځو برخو کښې هم موندل شوی. که څه هم ددغه چینی زایرله روایته معلومیږي چه د دغو سیمو خلکو د یونانی الفباء په توریو کښې یوازې یوتوری اضافه کړی چه هغه د(ش P) توری دی ځکه چه دغه زایرد (۲۵) توریو روایت کوی حال دا چه په یونانی الفباء کښې اصلاً (۲۴)توری دی مگر دوروستیو لیکلو اسنادو دلوست او تحلیل نه معلومیږي چه باختریانو به دځینوغږونوله پاره ځینی توری سره مرکب کړی وی، مثلاً (غ) دیونانی (گ) په تکرار یا بالعکس(دبغلان په کلمه کښې).دپښتود (ښ) له پاره ورته د ( XP) مرکب توری اوداسی نور.

په باختر کښې لومړی یونانی لیک دخپل اصل په شان لیکل کیده، خوتر څوچه وربا ندی وخت تیریده. خپله بڼه یې وروپه ورو اړوله او مات لیک (۱) منځ ته راته چه د خپل اصل (پخوانی لیک) سره یې ورته والی له منځه ته او سر بیره پردې د بومی ژبو دغږونوله پاره ور کښې خاص توری جوړ شول لکه: دروزگان او توچی په کتیبو کښې چه لیدل کیږي او حتی داسی هم لیدل کیږي چه له شی نه کینې خواته کتیبې لیکل شوی دی(۲).

دغه وخت چه د باختر په خاوره کښې یونانی لیک عام ؤ، د معاصر افغانستان په شمال (سوغد) کښې سوغدی لیک (دپهلوی یوډول)او په لویدیځ (معاصرایران) کی پهلوی لیک مروج ؤ.په لویدیځ کښې لومړی خروشتی او وروسی د پنځمې میلادی له پیله برهمنی لیک مروج ؤ.

محققین یقین لری چه دا لساما نی (میلادی دولسمه پیړی)په دغه روایت کښې به یونانی الفباء مطلب وی چه وایی چه دعربو دفتوحاتو په دوره

---

1—Cursive

۲– وروستی مطلب په(تاریخ نوشته های کهن افغانستان) مولف پوهاند حبیبی ۱۵–۱۶ مخونه و گوریء.

کښې په باشګير د (معاصر فيض آباد) او قوبادیان (جنوبي تاجکستان) کښې خاصه الفباء موجوده وه (چه په هغې کتابونه ليکل کيدل)(١).
له دغو تولو تاريخي اسنادو څخه داسې معلوميږي چه يوناني الفباء هم د پښتو او هم د نورو باختري ژبوله پاره د اسلام تر پيله موجوده وه چه بيا د عربي الفباء په اثر له منځه لاړه.
دغه چينې زاير د دغې سيمې داد بياتو په باب هم روايت کوي چه داد بي (ليکلو) آثار و حجم يې لوی او له سوغدی څخه زيات دی. دده د روايت له مخې د باختر (تخارستان) ژبه د نورو باچا هيو د ژبې سره زيات توپير لري مګر د باميانو د ژبې سره يې توپير بيخي لږ دی.
همدارنګه د شوغوني (پاميري) ژبو سره هم دغه باختري ژبه توپير لري اما چترال (شانګ مي) ژبه د باختري نه بيخي لرې وه.
د لته يوناني الفباء د لاتيني ترانسکريپسيون او په تخميني ډول د عربي الفباء په اساس د پښتو د توريو سره ور اندې کيږي:

| گڼه | يوناني الفبا | لاتيني | پښتو | گڼه | يوناني الفبا | لاتيني | پښتو |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| 1 | A | A·Ă | آ، ا | 13 | Γ | g | ګ |
| 2 | b | B | ب | 14 | ΓΓ | g | ګ |
| 3 | Π | P | پ | 15 | Λ | L | ل |
| 4 | Φ | F | ف | 16 | M | M. | م |
| 5 | T | T | ت | 17 | N | N | ن |
| 6 | X | X·Ẋ | خ، ښ | 18 | Ш | W | و |
| 7 | [illegible] | D | د | 19 | O | O | و |
| 8 | ϸ | R | ر | 20 | Υ | H | ه |
| 9 | Z | Z·J | ج، ز، ځ | 21 | E | E | ې |
| 10 | C | S·Ċ·C | س، ج، ځ | 22 | h | Ě | ی |
| 11 | Þ | Š | ش | 23 | I | I | ۍ |
| 12 | K | K | ک | | | | |

١ـ د مقدماتي فيلالوژی (١٦٠-١٦١) مخونه، همدارنګه ايراني ژبې ٩٥ مخ څخه پورتني مطالب اخيستل شوي دي.

دلته دسره کوتل د کتیبې دیوی زیاتی برخې لوست او تحلیل و ړاندی کیږی او و به لیدل شی چه داژبه د پښتو سره دو مره نژدیوالی لری لکه د مور او لور ترمنځه :

دسره کوتل کتیبې لومړی جمله :

تشریح :

۱- ( Eido ) - آیده-دا ، دغه) داپه دویم حالت کښې دا شاری ضمیر لرغونی فورمه ده .

دغه ضمیر که څه هم په اینډو یورو پی ژبو کښې ژوره ریښه لری مګر په زیاتو باختری او دهغو په جمله کښې نسبت نورو ته په پښتو کښې ژوندی او ډیره عامه ریښه لری لکه (دا ، دغه دغسی ، دي ، دې ، دوی) او نور .

دلته یې د مقایسې د پاره لومړی په ځینو باختری او بیا په اینډو یورو پی ژبو کښې و ړاندی کوم :

شوغنانی ( ud, yud د متوسط پاره اشاره)

روشانی Ad-Ed متوسط Ud-Ida دلرې دپاره

| | | |
|---|---|---|
| بارتنگی | od | ad, ud |
| سریکولی | du, duk | ewd |
| یازگولیامی | day dim دقریب دپاره( اذ=جمع) | |
| مونجانی | day, daf (متوسط جمع) | |
| اشکاشمی | id, don, (دقریب دپاره) | |
| سوغدی | yd, ed | |
| پارتیانی | yd, ed | |
| اوستی | adom (دوی)جمع. | |

دا کلمه په دی معنا په پیرسیکوژبو کښی د (د) له غږه بې برخی ده :

زړه پارسی - ایته

پهلوی- این En

پارسی- این

تالیشی I

په اینډویوروپی ژبو کښی دپښتو ددغه اشاری ضمیر لټو نه او مطالعه ژبپوهنی ته اجازه ورکوی چه دا ضمیرپه دوه توکوو ویشی :

( الفې —e )ب ( دا لوسړی توکی تقریباً په ټولو اینډویوروپی ژبو کښی داشاری دپاره موجوددی : په سلا ویانی ژبو کښی د( e ) په بڼه لکه په زړه سلاویانی کښی( ese )داسی، زړه روسی ـe-ce (دا) نوی ر و سی ( eta ـ دا) سانسکریت ( a—sau ـ هلته) (a-das هغه) a—sya ـ هسی ( لا تینی ( e-quidom) ، کرتی( Li—dai)زړه جرمنی ( oda-I—do.

دغه اشاري ضمیر ددویم توکی جوړښت نسبت ټولواینډویوروپی ژبوته (لکه چه په مقایسه کښی وړاندې شوه )په باختری ژبو کښی عام دی. ددغه اشاری ضمیر(ارکیتیپ لومړی بڼه)په اینډ ویوروپی ژبو

کښې د(ی-E) په‌غبرګتثبیت شوی‌ده. پښتو کښې دخپلواك متصل غایب ضمیر (یی) په فورمه دغه ضمیر ډیر عام دی لکه په دی جمله کښې :
(زه یی وینم ) (۱)
په‌پاس ډول سود پښتود اشاری ضمیر لرغونی ریښه راوسپړله چه دکوشانیانوله وخته یې‌تراوسه خپل لومړی‌توکی‌له‌لاسه‌ور کړی‌دی.
دغه اشاری ضمیر دیونانی الفبا په(O) ختمیږی‌چه کله دمعاصری پښتود مجهول‌واواوکله دزوره‌کی سره (لکه چه په الفبا کښې ورته اشاره وشوه) مقابله خوری .
دلته په دویم حالت کښې واقع دی . دمعاصر فونیتیک‌په‌حکم دغه(O) دزورکی غبرګافاده‌کوی‌لکه‌په معاصر اشاری ضمیر(ده ـ دغه) دویم حالت کښې مثلاً : (ده وویل) (زمونږ په‌ګرا مری اصطلاح کښې‌اوس داضمیر دشخصی په‌نامه یادیږی) .
۲ ـ ملیزه (ما لیزه ) Malizoدا دا شاری (ییده) ضمیرمشار الیه دی . دمقا یسوی ژبپوهنې دامکا ناتو سره‌سم ددغې کلمې تحلیل‌ته

---

۱ـ په‌دی باب له‌لاندې منـابعو استفاده شوی‌ده :
الف :( دروسی ژ بی‌ایتمولوژیك قاموس) دویم‌توك مؤلف ا، ګ، پری ابریژنسکی‌مسکو ۱۹۵۹ کال ۱۲۶۵-۱۲۶۶ مخونه .
ب :( پا میری ژ بی)مولفت. ن‌پخا لینه‌د شوروی دعلومود اکاډمی خپرونه مسکو ۱۹۶۹ کال .
ج :( دیازګولیامی اوشوغنانی ژبود ګروپ‌ترمنځه‌دخپلوی‌را بطه) مولفه و. س سوکولوفه دشوروی دعلومو دا کاډمی‌خپرونه لیننګراد ۱۹۶۷ کال .
د: (او سیتی‌تاریخی‌ـ ایتمولوژیك قاموس) لومړی‌توك مؤلف و.ی ابایف دشوروی دعلومو دا کاډمی خپرونه مسکو ۱۹۵۸ کال .

له دوو لارو وړاندې کېدای شو . په اشاری ضمیر سره به مطلب دغه حصار او کلاوې چه کتیبې پکښې سوندل شوی دی (ختیځ پیژندونکی هم دغسې خیال کوی) او یا به د بغلان سیمه‌وی چه په کتیبه کښې یې هم نوم یادشوی دی . په لومړی صورت کښې دې کلمې ته د پښتو د (ملل ـ پریملل) سره او په‌دویم صورت کښې د (مال) سره‌ربط ور کوو په‌لومړی صورت کښې د کلمې تحلیل داسې دی :

(ملیزه) نګه پښتو کلمه او له‌دوو توکو (مل+یزه ،یځه) جوړه‌ده چه د مسکن او استوګنځی معنا ور کوی . د سکونت، او سیدلو ، میشته کیدلو په معنا د (ملل ، پریملل) او د سکونت ور کولو په معنا (ملول) کلمې او س په پښتو کښې ژوندی نه‌دی . خو د پښتو په کلاسیک ادب کښې په همدغو معنا او زیاتی استعمال شوی چه‌دلته یې څو مثالونه راوړو :

ملل ـ دخوشحال په‌اشعارو کښې :

دخوشحال خاطر په‌مثل کاروان سرای‌دی
اند یښنې پری کار وانونه ملې ، لیږدی
کله دی دزړونو ستادمخ په‌لور روانی
واړه ملک بوستان دی په‌هرځای یې ملوه
بنه‌مخ مثال‌دګل‌شو زړه زما لکه‌بلبل شو
شیدا بلبله هرچیرته چه‌ګل‌وی هوری ملی

همدارنګه د پریملل فعل :

بنه بنا دی به‌یې دغم په غولی پر یملی
کل اشیا به‌وی دده په ذوق ر قاص
(انصاری)
په هر ملک چه‌زمری پریملی نوریې خپل کا
په جـوار یـې روبا کـله ږدی قـدم
(ګګیانی)

د صورت له کـوره کـله بیـگانه شم
د معـنو په سـینه پـریملم یـگانـه شم
(نیرنګ‌عشق ۲۱۰ مخ)

که نظر دې د محبوب په جمال پریملې
په دیدن به ځینې کـوښې نه پائـیږې
(انصاري)

دغه فعل په‌همدغه معنې پښتانیو ډیرو شاعرانو استعمال کړی چه معنا یې (سیشته کیدل ، قرار کیدل ، او سیدل) دی . په (ځملاستل ـ څه‌دی‌سلی ، څه‌به‌سلم ، سلاست) کښې همدغه ریښه ژوندۍ ده .

د کلمې دویم توکی (یزه ، یځه) دی چه‌په معاصره پښتو کښې د د(یز ، یځ) په‌بڼه‌ژوندی ور وستاړی او دنسبت اوځای په‌معنا لری لکه (اړ خیز) او (دریځ) دار روستاړی په پامیری ژبو کښې هم‌په لاندې ډول موجود دی :

یازگولیامې (-ایچ) شوغنانی (-ایځ) سریکولی (- ییځ) واخانی (ایچ) (۱) دپیرسیکو ژبو له‌جملې نه په‌تالیشی ژبه کښې د (ایز) په بڼه زما په‌نظر راغی .د(ملیزه ـ ملیځه) د کلمې معنا استو ګنځی دی چه‌د کلااو حصار په‌صورت جوړ شوی‌دی .

د مالیزه تحلیل دورشو اوځړ ځای په‌معنا په‌دویم صورت کښې په‌دی ډول دی :

مال : زموږ په‌ژبه کښې دوه‌معناوی لری : یوه‌د ملکیت او شته په معنا چه‌دا یوه عربی کلمه ده . دویمه دځاروی (غوا، سیږو او

---

۱ ـ په‌دې باب له (پامیری ژبی‌مؤلف پخالینه) او (شوغنانی‌ژبو د ګروپ سره د یاز ګو لیامې دځپلوی رابطه ـ مؤلفه سوکـو لوفه) استفاده شوې ده .

نورو) په معنا . همدغه په دویمه معنا دمالیزه کلمه دلته ز مو ږ د خیړنې مورد ده چه په اینډو یوروپی ژ بو کښې ژوره ریښه لری اود (یز- یخ) د وروستاړی سره دخړخای او ورشو معنا ور کوی .

په دویمه معناد (مال) د کلمې ریښه په اینډویوروپی ژ بو کښې دلږ څه او ښتنوسره دڅاروی ، واړه مال او بوله معناوې ږ ر کوي .

پښتو (مال) فارسی (مال) ارمیانی (مال= میږه، پسه) زړه یونانی (ملیون - Melon واړه څاروی ) لرغونی ایرلینډ ی (میل - mil واړه څاروی) . تقریباً په ټولو سلاویانی ژ بو کښې دغه کلمه اوله دغې ریښې جوړشوی کلمې د (واړه ، اولږ) معنا ور کوی چه محققین یې له همدغې ریښې بولی . همدارنګه په زیاتو جرمنی ژ بو کښې همدغه کلمه د (واړه) په معناده چه د (س) غږ په سر کښې لری : لرغونی پاسنی جرمنی (سمال - Smal وړوکی) انګریزی (سمال ـ SMAL وړوکی) ، همدارنګه دلاتینی (مالوس - malus بوله -بیړا) ته هم د اینډو یو روپی ژبی دمقایسی ژ بپوهان د (مال=څاروی) دکلمې سره رابطه ور کوی (۱) .

او په دې صورت (ما+یخه) دمالخای ،ورشو، خړخای په معناده.

۳-(مو- mo) دادجمع متکلم اضافی نا حپلواك منفصل ضمیردی چه د(ملیزه ، مالیزه) مضاف الیه واقع شوی . اوس هم په پښتو کښې د جمع داضافی مفهوم دافادې ژوندی وسیله ده لکه: (کورمو، زړه مو) د مفرد متکلم دپاره د(من) په بڼه دا ضمیر لرغونی اینډو یورو پی ریښه لری چه جمع یې هم له همدغې ریښې ده.

سانسکریت (می- me) لرغونی پاسنی جرمنی(می- (ن) - men) ارمیانی (ایم im ) لاتینی(میوس- meus) پروسی(مویس- mais)

---

۱ - دروسی ژبې ایتمو لو ژیك قاموس اوسړی ټوك ۵۰۵ - ۵۰۶ مخونه د (مال) کلمه و ګوری .

زړه یونانی (یموس- emos )او په سلاویانی ژبو کښی د (موی moy) په بڼه.

د مقایسوی ژبپوهنی محققین د دغه اضافی ضمیر لومړی ریښه (میس- mes ستاسو، ستا) او (موس mos زموږ، زما) بولی (۱).

۴- کنیشکه: داخاص تاریخی نوم او د راتلو نکی فعل (واننده) د پاره صریحی مفعول واقع شوی دی. د کتیبی په دې جمله کښی دا نوم (په الفباء کښې دروړاندې شوی فارمول سره سم) په زور کی ختم شوی دی. په دې باب به حکم له وخته پخوا وی که ووایو چه دوخت په تیریدو د مجهول (واو) غږ په معاصره پښتو کښی په (زور) یا (الف) او بدلیږی او که په لرغونی پښتو کښی د اویستا او نور لرغونو اینډو یوروپی ژبو په شان د صریحی مفعول - accusatibe د پاره د غسی خاص حالت موجودؤ. د کتیبی بشپړ اوژور تحلیل همدارنګه د کوشانیانو د دورې د نورو کتیبو موندل به په دې باب سرسته راسره و کړی.

۵- واننده: دافعل د (انندل) د مطلق فعل صیغه ده چه د اطلاق معنا یی په (و) سره افاده شوی ده. (انندل) د مصدر په صورت د پښتوقاموسونو نه دی راوړی خو (انند) یی د (مسرت) (شادمانی) (بی غمی) (خوشالی) (شکر) په معنا ذکر کړی دی. د پښتو په ادب کښی دایوه ژوندی کلمه ده، خوشال خټک وایی:

هوښیارانو سره ډیرې اندیښنی وي - چه ملنګ د مصلی هغه انند کا. څه به غم د مال، د ملک د دین او دل کړم - چه دا ستا له غمه روغ کرخم انند دی.

عبد القادر خټک وایی:

مونږ ته څه ناحق عالم وایی پندو نه
په خپل عقل هر سړی کا انندو نه

---

۱- د روسی ژبی ایتمولوژیک قاموس دویم ټوک ۶۴۵ مخ.

دپښتو د (ننداره) او (ننډره = دواده دښانک زوم‌ته دسوغات په معنا) کلمی له هغی ریښی‌جوړې شوی‌ښکاری. په سانسکریت کښی د (انند) کلمه دخوښی او سسرت په معنا یوه‌له هغو کلمو څخه‌ده چه‌د نوو هندی ژبو په‌ادبیاتو کښی‌راژوندی شوې .

(وانده) مطلق فعل دی چه‌دغه داطلاق دمعنا افاده‌یی په‌(و) سره شوې ده . ددغی معنا دافادې دپاره دپښتو په گرامر کښی (و) سیستماتیک او قانونی آدات‌دی . بی‌ځایه نه‌گڼم چه‌په‌دې باب لږڅه مفصله رڼا واچوم :

دمطلق او استمراری فعل کتیگوری په‌ارغونو اینډویوروپی ژبو کښی موجوده وه .

خو په‌دغه کتیگوری ویش په‌بیلو بیلو فعلی ذریعو کیده . په‌یولږ ژبو کښی داکتیگوری دوخت په‌تیریدو له‌منځه لاړه او په‌نورو ژبو کښی داوظیفه فعلی اداتوته وسپارل‌شوه چه‌پښتو هم له‌دغی‌جملی‌ده .

دالږی ژبی که‌دغه فعلی‌آدات ونه‌لری استمراری معنالری اود ادات‌سره مطلقه.دغه‌ژبی له‌پښتو او سیتی ، سلاویانی ، لاتینی،جرمنی ، کلتی او بالتیکی ژبونه عبارت‌دی خودغه فعلی‌ادات په‌ټولو کښی یو شان نه‌استعمالیږی. البته‌په‌پښتو او سلاویانی‌ژبو کښی دیوه‌گرامری سیستم حیثیت‌لری . دغه‌فعلی ادات داطلاق دمعنا دافادې دپاره په پښتو کښی (و) په اوسیتی کښی (فه ـ fa ) او په سلاویانی کښی (پو ـ po ) او بالتیکی‌ژبو کښی (په ـ pa ) په‌سوغدی کښی (په ـ pa تخاری الف او تخاری ب کښی د (په ـ pa ) او (پ ـ P) په‌بڼه وجودلری (۱) په‌جرمنی ژبو کښی دغه ادات که‌څه‌هم سیستماتیک



---

۱ ـ په‌باختری کښی‌هم ، کټ‌مټ دپښتو په‌شان (و) دی لکه‌په (وکید ، وخوت) کښی .

حیثیت نه لري بیا هم مثلاً په (کوتی) کښي لیدل کیږي . په لاتیني کښې دا آدات چه د(و ی ـ ve ) بڼه لري د اطلاق د معنا ، دا فادې سره تړینگه رابطه نه ساتي . په اویستا او زړه پارسي کښې د مطلق او استمراري په کټیگوری ویش اصلاً هماغه دفعل په اساس کیده . سربیره پردی یو لړ . زیات ادات موجود وو چه د مکان ، زمان او نورو له لحاظه یې دعمل د معنا له تیا کالو عـلاوه ضمناً د مطلق او استمراری معنا هم افاده کوله .

دژبپوهانو ترمنځه په دی باب ژور اختلاف موجود دی چه آیا په زړه پارسي او اویستا کښې د مطلق افاده دفعل په اساس کیده او که دآدات په ذریعه . دلته د دغه اختلاف تفصیل راوړل موضوع او ږدوی . اما په پښتو کښې دا کټیگوری په سیستماتیک ډول د فعلي ادات ( و ) په ذریعه کیږی . (۱) .

مشهور ژبپوه ، و . ای . ابایف په دی کښې شکمن دی چه (و) د پښتو په گرامر کښې د اطلاق د معنا دافادی دپاره سیستماتیک خدمتی ادات دی . دی لیکی چه په پښتو کښې نه یوازی (و) د اطلاق د معنا افاده کوی بلکه یولړ نور آدات هم شته لکه (کښې ـ کښیوتل) (پری ـ پریوتل) (راـ راوستل) (ننه ، ننه وتل) او نور چه اصلاً دفعل د معنا دیوی برخی (مثلاً د سمت دښودلو) د معنا تعیین کوی او د اطلاق د معنا افاده یې ضمنی ده . له دغه ځایه عقیده ښکاره کوی چه په پښتو کښې د اطلاق دپاره (و) سیستماتیک ادات نه دی . بې ځایه نه گڼم که دا بایف په ځواب کښې څه ولیکم . پښتو کښې فعل په دوه ډوله دی . ۱ ـ بسیط ۲ ـ مرکب .

---

۱ـ په دی باب دزیاتو معلوماتو دپاره لاندی منبع ته مراجعه وکړی ء (داینډو یوروپی ژبپوهنی پرابلمونه ) نومی کتاب دشوروی دعلومو داکاډمی خپرونه مسکو ۱۹۶۳ کال دو . ای . ابایف مقاله ۹۰ـ۹۹ مخونه .

د بسیط فعل د مطلق او استمراری کتیگوری په سیستماتیک ډول یوازی او یوازی د(و)پوری ربط لری .

کوم چه مرکب فعلونه دی چه شمیر یی په پښتو کښی نسبت بسیطوته ډیر لږدی په هغوی کښی دغه کتیگوری دخچ دځای پوری تعلق لری . یعنی که خچ د مرکب فعل په لومړي توکی واردشی فعل مطلق او که په دویم توکی واردشی فعل استمراری دی .

لکه (پوری وتل ، پرې وتل ، کښیوتل ، پاځیدل او نور (را ، در ، ور) له دغی قاعدی وتلی دی (لکه را ــ راتلل ، راکول)· یوازی په (راوستل) کښی دمطلق په صورت کښی باید (و) موجود وای .له پاسنی قاعدی ډیر لږ استثناآت شته دی چه زمونږ دپاسنی گرامری قاعدی مانع نه شی کیدای لکه د (کول او شول ) کومکی فعلونو په ذریعه داسم ذات څخه دعمل دمعنا جوړول مثلاً (ماروغ کړ ، ماروغاوه) او (ژمی شو ، ژمی کیده).

په هرحال دپښتو د بسیطوفعلونو داطلاق دمعنا دافادی دپاره (و) سیستماتیک گرامری آدات دی چه په (واننده) کښی د(انندل) فعل یی مطلق کړی دی او په دی کتیبه کښی دهمدغه غرض دپاره څوځایه راغلی دی ، لکه (وکیده) (وخوت) او نور .

واننده متعدی فعل دی مفعول یی کنیشکا دی او څرنگه چه کنیشکا مفرد مذکر غایب دی او په پښتو کښی فعل دمفعول تابع دی . څکه نو فعل په زوره کی سره ختم شوی دی .همدغه گرامری قاعده په پښتو کی کتیبه ته ژوندی ده(لکه ما مکتوب ولیکه).

یوبل شی ته چه دلته باید اشاره وشی هغه داچه په کتیبه کښی د کلمو په منځ کښی د(ای —i) غږاوس غالباً دمعاصرې پښتو دزوره کی سره سمون خوری (لکه واننده ،وکیرد ، نیست).

(په او به نیست وخوت) کښی چه اوس (واننده ،وکړ ، نست)ویل کیږي.

له وخته به تر مخه وی که په دی باب په قطعی ډول څه وړاندی کړو چه دیونانی الفباء (ی —i) په داسی موارد و کښی دزوره کی د افادی لهپاره استخدام شوی وه او که داغریز بدلون په پښتو کښی د وخت په مرور سره راغلی دی.

دپاسنی جملی معنا داسی ده:

«دغه استوګنځی (حصار یاور شو) مو کنیشکا خوشال، مسرور کړ».

د کتیبی دژبی ګرامر په تړوله معنا دپښتو دننی ګرامری اصل سره هیڅ توپیر نه لری:

داشاری اضافی او فعلی ترکیب کومه بڼه او کیفیت چه مونږ په معاصره پښتو کښی ګورو د کتیبی په دغه جمله او همداسی نورو کښی هماغه شان لیدل کیږی.

ګرامری خپلوی دژبو تر منځه دخپلوی اساس او لومړی شرط دی. که مونږ داسی جمله واورو چه (احمد فوق العاده متفکر موثرحسین الخلق شخصیت دی) حکم کوو چه داجمله پښتو ده، که څه هم دلغت له مخه د پښتو یوازی دارتباطی حکم نښه (دی) ور کښی لیدل کیږی نوره له سره ترآخره عربی ده او نوری ژبی هم په دی قیاس.

بله جمله:



تشر یح :

۱-( بغه لا گ -بغلان).د بغلان دغه لرغونی نوم لکه چه لیدل کیږی له دووتوکو (بغه=لاگ)نه مرکب دی دغه دواړه توکی په پښتو کښې لرغونی ریښې لری چه دلته یی وړاندی کوو:

الف :(بغه) د(لوی، خدای، خاوند او پاچا )په معنا په پښتو او نورو آریایی لرغونو ژبو کښې ثابته ریښه لري:

(بغه.بغ .بگه.بگ)د پښتو او نورو آریایی ژبو په خاصونومونو کښې(لکه.بگرام،بغرا، بغداد همد (گ)او هم د(غ)په غږوجود لری . د پښتو(باگه -فخراوویاړ )دهمدغی ریښې پوری اړه لری .

عبدا لعظیم را نیزی وایی :

چه حاصل راته دولت دعاشقی شو راښاییږی اوس که کړم وزباندی باگی

دا کلمه په اویستا کښې ( بغه= خاوند ، خدای) په زړه هندی کښې بها گهه -نیکمرغ ،خاوندپه زړه پارسی کښې(بگه-خدای).

په سلاویانی تقریباً ټولو ژبو کښې دا کلمه د(بوگ bogخدای ، بلا ای) په بڼه موجوده ده.دقایسوی قاموسونو ددغی کلمی لومړی معنا (سپارونکی ،برخه،بلا ای )ښودلی ده چه د(خدای،ښښتن ،لوی)معنا یی وروسته پیدا کړې ده.(۱)

ب.د بغلان د کلمی دویم توکی(لگ،لاگ. Lagge )دی-دغه ریښه

---

(۱)دروسی ژبی ایتمو لوژیک قاموس د شانسکی تا لیف د مسکو د پو هنتون چاپ همدارنگه ( دروسی ایتمو لوژ یک قا موس ) مو لف پرې ابریژ ینسکی د بوگ کلمه .

په اینډو یو روپي ژبو کښې د(لږ ، ټوټه ، سپک و ړو کې) په معنا مو ندلی شو:

پښتو (لږ ـ کم) (۱) او سیتي (لک،لخ = ټوټه، پارچه) زړه ایرلنډی (لوگو ـ Lu gu لږ، خراب ) زړه یونانی (لخیه ـ Laxea لږ، کمکی).
په سلاویانی تقریباً ټولو ژبو کښې د(ایگ ـ leg ) ریښه د(سپک او اسان) معناورکوي. په ځینو سلاویانی ژبو کښې د(ل) دغږ په ځای د (ژ) غږ موجود دی لکه په پولنډی کښې(لژیه ـ Lzhea سپک،اسان)چه دغږ له مخې (لږ) ته ډیر ورته دی .

مقا یسوی قاموسونو ددغې کلمې لومړی اینډو یـو روپي بـنـه ( archetype ) لیگهه ـ legh د ( لږټوټه ، سپک او اسان) په معنا ښودلې ده (۲)

دلرغونی آریایي (گ) دغږ ځیړنه مونږ ته دا اجازه راکوي چه دهغه مخرج په باختری ژبو کښې د(غ) (گ)او (ژ) ترمنځه غیر ثابت وټاکو ځکه چه دا غږ په زیاتو مواردو کښې نه یوازې د پښتو د لوبدیځ او ختیځ په لهجو کښې په تقریباً (گ ـ ننگرهاری لهجه) او (ژـ کندهاری لهجه) کښې تغیرخوری بلکې په ځینو نورو باختری مثلاً پامیری ژبو کښې هم دغسې او ښتنې په نظر راځي مثلاً :

اویستا (گنتومه ـ غنم) شوغنانی (ژیندم) اشکاشمې (غندوم) واخانی (ژدیم، مونجانی، غودوم) پښتو(غنم). پښتو (خوږ ـ خوندور) شوغنانی (خیغ) روشانی (خوغ) سریکولی (خیگ) . پښتو (غوا،غوی)

---

۱ ـ د ډار مستتر د(لږ) مقایسه دسانسکریت د(لغو) سره کړی د پښتو څیړنی دډار مستتر تالیف د کابل چاپ ۳۳ مخ .

۲ ـ په دې باب (دروسی ژبې د ایتمو لوژیـک قاموس) دپـرې: ابریژپنسکی تالیف ۳۸ ـ ۳۸۱ مخونه وگورۍ .

او سیتی (غوگ) شوغنانی (ژوو) روشانی (ژوو) یازګولیالی (غیو) واخانی (غیو) اشکاشمی (غو) بارنګی (ژاو) سربکولی (ژیو) مونجانی (غوا) .

داسی ژبنتی ډیری کلمی پیدا کولای شو چه د لرغونی آریایی (ګ) غږ په باختری ژبو کښی د (ګ، ژ، غ) تر منځه سره اوړی را اوړی چه مخرج یی زما په عقیده اصلاً د مرکزی پښتو د (ږ) غږ ته نژدی دی .

بی ځایه نه ګنم چه په اینډو یوروپی ژبو کښی د (ګ — g) د غږ په بابت د یوه نامتو ژبپوه و . ای . ابایف د نظریی یوه برخه وړاندی کړم (۱) .

«...... د سلاویانی ژبو په یوه خاص ګروپ کښی ګټ مټ لکه د آریایی ژبو په یوه خاص ګروپ کښی د اینډو یوروپی د (ګ - ګهه gh—g) غږ د (غ) په غږ اوښتی دی .

په لرغونی آریایی کښی ګټ مټ لکه په لرغونی سلاویانی کښی د اینډو یوروپی د (ګ ـ ګه g—gh) غږ د (ګ) د غږ سره سمون ګاوه خو بیا په نوو او ختیځو ایرانی (باختری) ژبو : سکیفی ـ سرماتی ، خوارزمی ، سوغدی ، پښتو او پامیری ژبو کښی دغه د (ګ) غږ د (غ) غږ ته واوښت دغه غږیزه اوښتنه ډیره لرغونی ده او په هر صورت په قبل المیلاد دور کښی واقع شوی ده د (ګ، غ) تر منځه دغه بدلون په باختری ژبو کښی یو فونیتیکی خصوصیت دی او هغه وخت منځ ته راغلی دی چه دوی سره په نژدی ګاونډیتوب کښی واقع وی او یوه محدوده سیمه یی نیولی وه .....»

د ابایف نظریه که څه هم زما د مطلب بشپړ ملاتړ نه کوی خو بیا هم دیوی نظریی په حیث وړاندی شوه .

پاسنی پلټنه او په ریښه کښی بدلون دا امکان را کوی چه د باختری

---

۱ ـ د ( اینډو یوروپی ژبپوهنی پرابلمونه ) د شوروی د علومو د اکاډمی خپرونه مسکو ۱۹۶۴ کال ـ ۱۱۵ ـ ۱۱۷ مخونه .

د(لگځ، لاک) ـ په(بغه لگك) کښې ، کلمې سره د پښتو (لږ) داوسیتي لګك (په زوره کی) او (لوخ — lux) تهرابطه ورکړو چه معنایی (توته ، برخه اویوه حصه) ده اوپه‌دی ترتیب د(بغه لگك) معنا(خدای یا پاچایی توته‌ځمکه اوسیمه) ده . داچه د (بغه لگك) نه کله او څنګه (بغلان) جوړ شوی‌دی په‌دې‌باب دمستشرقینو کومه نظریه زما له نظره نسه‌ده تیره شوې .

له پاسني ریښې نه‌جوړې شوی کلمې په‌سانسکریت کښې د(ک) یا (ژ) غږ نه‌لری :

په‌سانسکریت کښې (لو — lu) او (لاو —lau) د (توتې کولو، غوڅولو اوپرې کولو) معناوې ورکوی . په‌پښتو کښې (لو ـ دفصل اووښو ریبل) هم‌له‌دغی ریښې ښکاری .

همدارنګه په‌سانسکریت کښې له دغې ریښې نورې جوړې شوې (لو اکه ـ Lavaka = لوګری ، ریبونکی ) همدارنګه دغوڅولویوه آله (لور) له‌دغې ریښې‌دی . په‌اوسیتی کښې ددې ریښې لرغونی بڼه (لاو ـ Lau ) ښودل شوی‌ده چه‌پاسنې معنا ورکوی . (۱) .

۲ ـ (چه ـ ci ) وصلی بیانی خدمتی کلمه‌ده چه‌دفارسی د (که) سره سمون خوری .

دغه‌د(چ) او(ك) دغږ مقابله په‌باختری اوپیرسیکوژبو کښې زیات سوارد لری.دلته یی‌په پښتو اوفارسی کښې‌څومثالونه وړاندی کوم.
پښتو ـ چاړه‌ـچرګه‌ـ چا (څوك) (۲) ٠ چه .

---

۱ ـ په‌دی باب (دا وسیتي ژ بی‌په‌باب یادونه) مؤلف فرانسوی ختیځ پیژندونکی « بینو ینیست په روسی ترجمه مسکو ۱۹۶۵ کال ۴۴ مخ .

۲ـ په‌پاميری‌ژبو کښې‌په‌لومړی حالت(څوك) کښې‌د (ك) او په دوهم حالت (چا) کښې د (چ ) (چای،چوی)په‌غږ داضمیرمند اول‌دی بڼه لری .

فارسی ـ کارد ـ کرك ـ کی ـ که . په سلاو یانی ژبو کښې د پښتو دغه وصلیه بیانی کلمه د (چتو ـ ctho) په بڼه موجوده ده چه معاصر تلفظ یی (شتو) دی .

۳ـ دی :( doi) نگه پښتو کلمه ده چه په حالیه اسمی جملو کښې خبرواقع کیږی اوله مبتدأ سره په ټولو گرامری اړخونو (مفرد ، جمع ، مذکر ، مؤنث) کښې سمون (دی ، ده ، دي) لری .

په دغه متن کښې هم ځکه چه (بغه لگګ ـ بغلان) مفرد مذکر دی نو (دی) هم ور سره مطابقت لری .

۴ـ (بغه) : د (اوی ـ غټ او عظیم) په معنا دی (د بغلان د کلمی لومړی توکی و گوری ۰.) دلته د راتلونکی (شاو ـ شاه) او د پښتو د گرامری غوښتنی سره سم پر موصوف مقدم دی .

۵ـ (شاو ـ شاه) : د کتیبی په لومړی نسخه کښې (شاو) او په دویمه کښې (شاه) دی (۱) .

که څه هم دا کلمه او س د (شاه) په شکل لیکل کیږی خو له یوی خوا دا کلمه په خپله ریښه کښې د (ه) غږ نه لری او له بلی خوا د کتیبی په لومړی نسخه کښې (شاو) د کلمی د جوړښت په لحاظ پښتوته نژدی دی ځکه چه د (الف) نه وروسته د (و) غږ د نوم د جوړولو د پاره په پښتو کښې ژوندی وروستاړی دی :( کړاو ، چلاو «چلیدل» جړاو ، خرخلاو ، پړاو او نور) .

د (شاو ـ شاه) د کلمی ریښه که راوسپړو د نورو ټولو آریایی ژبو په نسبت په پښتو کښې ډیری نیلی او اشتقاقونه لری .

په لرغونو آریایی ژبو کښې د (خش ـ ښن) له ریښې جوړی شوی کلمی د (ښه ـ د بد مقابل) (ښی ـ د کیڼ مقابل) دوا کمنی او چلولو معنا وی ورکوی (۲) .

---

۱ـ مادر زبان دری ۵۰ـ ۵۱ مخونو په حواله .

۲ـ (ایرانی ژبی) داورانسکی تالیف ۳۰ او ۵۸ مخونه .

او یستا (خشه- xsha) اوزړه پارسي (خشي xshay) زړه هندي (کشي) په پورتني معنا .

له همدغې ريښې داويستا او زړې پارسي (خشاذره) دزړې هندي (کشاتره، هيواد، مملکت) دفارسي (شهر) اودپښتو (ښار) هم جوړ شوي دي.

همدارنګه دغه ريښه (ښ) په غېږ په پښتو کښې دیوزیات شمیر کلمو په سر کښې د (مختاړي prefix) په حیث په نظرراځي لکه: (ښاغلی-ښه ، اغلی) (ښاپيری، ښه پيری،) ، (ښا يسته-ښه ايسيد و نکی) همدارنګه د (ش) په غېږ :

(شازلمی، شا کاسه او داسې نور) ، دګرامرله نظره دلته (شاو-شاه) د (بغه) موصوف دی .

په کتيبه کښې توصيفي ترکيب کټ مټ د پښتو د معاصر توصيفي ترکيب په شان دی چه صفت له موصوفه ترمخه وی. د پیرسیکوژبو په خلاف دا ګرامري قاعده په ټولو باختري ژبو کښې لکه پښتو، سوغدي ،ساکي، اوسيتي ،خوارزمي او پامیري ژبو کښې جاري ده او داهم يوله هغو تيپيکو ګرامري اختلافونو څخه دی چه آريايي ژبې په دوه ګرو په (باختري او پيرسيکو) ويشي (۱) . دغه (بغه شاو) دراتلونکي (کنيشکی) دپاره دپاسني، ګرامري اصل سره سم مجموعي صفت واقع شوی دی .

۶- کنيشکي: داپه دويم حالت کښې د کنيشکاخاص نوم دی چه دراتلونکي کومکي فعل (کيرد- کړ) فاعل دی. په کتيبه کښې د پښتو دموجوده ګرامري سيستم سره فعل د صريحي مفعول تابع دی نه دفاعل . له دغه ځايه په لومړي جمله (دغه ملځی، مالځی مو کنيشکه خوشحاله کړ) کښې (کنيشکا) په لومړي حالت کښې واقع دی چه صريحي مفعول دی او په دغه جمله کښې په دويم حالت کښې واقع دی چه فاعل دی .

د ګرامر دغه سيستم چه په جمله کښې متعدي ماضي فعل

---

۱- په دې باب دزياتو معلوماتو د پاره ايراني ژبې مولف اورانسکي ۱۸۰-۱۸۱ مخونو ته مراجعه وکړی .

صریحی مفعول تابع وی نه د فاعل . په بل عبارت په هغه صورت کښې چې فعل په دوه بیلو بیلو زمانو کښې د فاعل دوه بنې غواړی دژ بپوهنې په اصطلاح (ایرگاتیف ( ergative ) سیستم ویل کیږی. دغه سیستم د پښتو، زړی پارسی په شمول داویستا او سانسکریت په استثنا په زیاتو آریایی (قفقازی، کامچاتی، دلاتینی امریکا د اینډیانو په ژبو کښې شته دی چه زیات تفصیل به یې هم وروسته راشی .

۷- (نامه برغه - نوم بری ، نوم اوړی) :دامرکبه کلمه ده چه د توصیفی ترکیب (نامه + برغه) په لاره جوړه شوې ده او دراتلونکی کومکی فعل (کیرد - کړ ) د پاره صریحی مفعول واقع شوی دی .داسی توصیفی ترکیبونه په پښتو کښې ډیر دی لکه: (سرلوړی، سرتور، پښی ابل، زړه خوړین) هیننگ هم دا کلمه له پاسنیو دروتو کومرکبه بللی او د(مسمی) معنا یی تر ې اخیستی ده (۱)

ددغی کلمی دواړه توکی نه یوازې په پښتو بلکی په اینډو یوروپی ژبو کښې ژورې ریښی لری.

**الف**: (نامه په زوره کی): پښتو (نوم، نامه) فارسی (نام) په سانسکریت اویستا اوزړه پارسی کښې (نامه، نامن ) لاتینی (نومین - nomen) په کوتی، زړه جرمنی او ارغونی ساکسونی کښی (نامو- namo )په تقریباً ټولو اینډو یوروپی ژبو کښی له دغی ریښی جوړې شوې کلمی موندلی شو (۲).

**ب**: د کلمی دویم توکی (برغه ، برکه ) دی .ددی کلمی رابطه د فارسی د( بردن) د پښتو د(وړل) له ریښی سره نه شو ورکولای ځکه چه د کتیبی ژبه لکه چه په تیرو مقالو کښی وښول شوه د پیرسیک ژبوله گ. و په

۱-مادر زبان دری ۱۵مخ.

۲-(دروسی ژبی ایتمولوژیک قاموس) د پرې ابریژینسکی تالیف د (ایمیه) کلمی ته د زیات تفصیل د پاره مراجعه وکړی .

نه بلکې د باختري ژبو له گروپه ده. په باختري ژبو کښې د فارسي د (بردن) رېښه يوه له هغو ټيپيکو کلمو څخه ده چه د (ب) د غږ په مقابل کښې ئې باختري ژبې د (برادر) د کلمې په شان د(و) غږلري (۱).

د دغې کلمې ايتمولوژيک تحقيق موږته دا امکان را کوی چه د دغې کلمې د خپلوۍ رابطه د پښتو د (بر، برې، بريالی) سره ولټوو:

مقايسوی ايتمولوژيکو قاموسولو د دغې کلمې ( ار خيټيپ – archetype ) لـو ړ ی بـڼه (بـير گهه ـ Bhergh ـختل ، هسکيدل بودلی او په نوروژ بو کښې بې داسې مقايسه وړاندې کړې ده: پښتو (برز ـ Barz ) فـارسي (بـلند) ، اويستا ( بـرز) دب په زوره کې، کو ر دی او تاليشي ( برز Barz )سـوغـدی بـرز، بـرزك ، او سيتی (برز ـ Barz )بلوچی (بورز Burz بورز گـ burz, Burzag )پارتيانی (بوزرـ Burz ) په نو رو ايندو يو روپی ژبو کښې هم له دغې رېښې جوړې شوې ژوندی کلمې ډيرې دی:

جرمنی (بير گـ ـغر) ارميانی (بيرج ـ Berj لوړ هسك )کيلټـی (بيرگ ـ Birg berg غـر ) ايرلنډی (برې ـ Bri غر) په سلاويانی ژبو کښې دا رېښه د (بيرگ، بيريگ ساحل ،غر ) په معنا موجوده ده (۲).

د دغې کلمې ارخيټيپ او پاسنۍ مقايسه موږ ته دا اجازه را کوی

۱-(ايرانی ژبې) داورانسکي تاليف (۱۸۰-۱۸۱) مخونه .

۲-په دې باب د(او سيتي تاريخي ايتمولوژيك قاموس) مولف ابايف د(برز-برزند) کلمې او همدارنگه (د روسي ژبې ايتيمولوژيك قاموس) د شانسکي تاليف د(بيريگ) کلمه و گورئ.

د پارسي ( د براز نده)(برين) او له دغې رېښې نورې کلمې د باختري ژبو نه غالباً اخستل شوې چه بيله پلټنه غواړي.

ددغه(برغه، برگه) دخپلوی رابط دپښتو د(بر= پاس، هسکٔ) سره‌ولټوو او حکم وکړو چه ددوه زره کاله په‌عمر کښې‌یې وروستی‌غږ (غه، گه) له لاسه‌ورکړی‌دی. داسی‌تاریخی ایتمو لو ژیک تخفیفونه دنړی په‌هره لرغونی ژبه‌کښې‌زښت ډیردی.

۸-(کیرد - کړ): داد(کړل) له مصدره دماضی متعدی مفرد مذ کر صیغه ده‌چه دکوشکی‌فعل‌وظیفه‌اجراکوی. فاعل‌یی(کنیشکی- کنیشکا) په‌دوهم‌حالت کښې او صریحی مفعول یی (نامه‌برغه-نوم‌بری او مسمی) په‌لومړی حالت کښې دی: داټول بیادنیمگړی‌جملی‌په‌حیث‌د(چه)و صلی بیان‌په مرسته د(بغه‌لگٔ-بغلان) دپاره خبرواقع شوی دی.

دغه جملی د ستیل stylistec له مخی په پښتو کښې ژوندی مثالونه‌لری چه‌دیوه‌خاص‌معنوی‌تاکید‌دافادی‌دپاره اسعتمالیږی‌مثلاً:

(احمد چه‌دی‌دمحمودوروردی)، (کابل‌چه‌دی‌دافغانستان‌مرکزدی) (زلمی چه‌دی‌ما خوشاله کړ) که دپښتو دمعاصرو او لرغونو ستیلونو په باب پلټنه وشی داسی مثالونه‌به‌ښایی‌ډیرومونډل شی.

د(کړل)فعل‌په‌آریایی‌ژبوکښې ثابته‌ریښه‌لری. ددغه فعل‌آریایی ریښه(کړ- کر - Kar—Kr) ده‌چه په ځینو مو ارد کښې یی (ړ،ر) لویدلی (لکه په‌پښتو کښې(کول، کیدل) په خوارزمی کښې (که) په (مه که Ma Hka = مه کوه) او په ځینو کښې یی د(ن) غږ په ریښه پوري نښتی دی‌لکه دفارسی‌په (کند) کښې.

داریښه په‌لاندې ډول په‌آریایی ژبو کښې موجوده وه: پښتو (کړل - کول) فارسی (کردن - کند) کوردي (کیرین) بلوچی (کنگ- Kanag ) پارتیانی (کن - Kan) په پامیري ژبو کښې د (کن- Kan کون- kun کن په‌زوره کی)په‌سوغدی کښې( Kwn) چه‌دپښتو د(کول) سره‌ډیرنژدې ښکاري‌او (کرت) او یستا (کرنو)

د(ك) او (ر) په زور ره کې زړه پارسی (کرته Karata) او (کونو Kunu) زړه هندي (کړنو Kuna) کړته Krta او داسې نور(۱).

په پښتو کښې ددغه فعل لوی خصوصیت دادی: کله چه د کومکی فعل په حیث استعمال لیږی لکه: (زلمی کور جوړ کړ) په داسې صورتونو کښې لکه چه څر گندده خپله د(کړ) فعل د اطلاق معنا افاده کوي او د(و) ادات ته ضرورت نشته او د استمرار په صورت کښې دغه کومکی فعل له منځه ځی لکه (زلمی کور جوړاوه.) او که په جمله کښې د کومکی فعل وظیفه نه اجرا کوي په هغه صورت کښې دنورو افعالو په شان د اطلاق او استمرار گرامري قاعده پرې جاري کیږي لکه: (زلمی خبره وکړه) او (زلمی خبره کړه، کوله).

دلته د (کیرد- کړ) د فونیتیکی او بڼې په باب غواړم څه وړاندې کړم: لکه چه د مقالې په دویمه برخه کښې ور ته اشاره وشوه دیوناني الفبا (یې- ) د کتیبې په زیاتو برخو کښې د پښتو د موجوده زوره کی سره سمون لری لکه چه: (وانیند- واننده، نیست، نست په او به نیست وخوت) کښې. همدارنگه (کیرد- کړ) او نورو کښې. په پښتو کښې ز بڼې ډیرې ژوندی کلمې شته چه هم د (ی) او هم دزوره کی په غږ افاده کیږي لکه (اخیستل اخستل، ځینې، ځنی، نیسل، نسل نیشته، نشته) او نور.

د(رد) او (-ړ) داو بڼې په باب دا امکان نونه موجود دی:

د لرغونی آریایی بلکې اینډو یوروپی (رد- رت) دغږ په مقابل کښې معاصره پښتو د (ړ) غږ لري مثلاً په لاندې مقایسه کښې:

---

۱- د(اوسیتی ژبې تاریخی ایتمولوژیک قاموس) دابایف تالیف ۵۷۹ - ۵۸۰ مخونه.

پښتو (زړه) او اوستا (زرده‌د (ر) او (ز) په‌زوره کې) سانسکریت (هرده)، په‌تقریباً ټولوسلاویانی ژبو کښې دا کلمه د (سیر د- څه- Serd—ce زړه) په بڼه موجو ده ده لیتوانی سزیر دیس- Szirdis زړه) لاتیشی (سیر دس Sirds) لاتینی (- Cordis زړه) ارمیانی (سیرت-زړه) او په‌دغه شان‌د اینډو یوروپی ژبو په‌ټولو گروپونو کښې داریښه‌د(زړه) په‌معنا موجوده ده.(۱).

دویم مثال: پښتو (چاړه) (زړه روسی (کورد - Kord یوډول چاړه) زړه‌سلاویانی (کورده Korda) سانسکریت کرتی (Karti چاکو-چاړه) کرتري Kartari ښکاری چاړه، لیتوانی (کیرتی Kirta) او اوستا (کرېنه - Kareta) فارسی (کارد) او سیتی (کهارد) چاکو توره).

د دغې کلمې اینډو یوروپی اسو مړی بڼه ار خیتیپ ښوول شوې ده‌چه د پریکولو او غوځولو معنا ورکوي (۲).

دریم مثال: (گړ، گړی) د کلاو حصار په‌معنا. دا کلمه تقریباً په‌ټولو اینډو یوروپی ژبو کښې‌د (-رد) په‌غبرونو ثابته ریښه لري. پښتو(گړی، گړ، انگړ) په‌سلاویانی ټولوژبو کښې‌د(گراد، هراد، گوراد grad, hrad, gorad) د(ښار او میني) په‌معنا دا کلمه موجوده ده. لیتوانی(گرداس- gardas شپول، منډو) پروسی(گردیس- gardis دیوال)

---

۱- د روسی ژبې ایتمولوژیک قاموس د پریو ابر یژینسکی تالیف د(سیرد څه) کلمه.

۲- همدغه قاموس د(کراتیک کلمه).

کوتـی (گـر د س ـ gards کـو ر ، محله) لر غو نـی سا کسو نی (گر ادـ grad منلهو ، استو گنځی) انګله ـسا کسونی (گیا ر د geard محله، منلهو) او په‌دغه ډول ټولو اینلهو یورو پی گرو پونو کښی داریښه په همدغو معناو موجو ده (۱) .

په‌دغه‌ډول مونږډیر مثالونه پیدا کولای شوچه‌داینلهو یو رو پی د(رد،رت) دغږو نوپه مقابل کښی په‌پښتو کښی د(ړ)غږ موجود وي . له‌دغه ځایه‌مونږ دوه امکانونه په نظر کښی‌نیولی شو :

لومړی‌داچه دغه‌او ښتنه وروسته‌منځته راغلی‌ده‌اودوه زره کاله پخوا دا او ښتنه نه وه .

دویم‌داچه څه‌رنګه چه‌په یونانی الفباء کښی‌د (ړ) دپاره خاص توری نه‌ؤ . نوله دې کبله ددغې لرغونی مقایسې په رڼا کې د (رد) توری د (ړ) دغږ په‌مقابل کې وضع شوی ؤ .

### ایرګاتیف سیستم :

لکه‌چه‌ترمخه ورته اشاره‌و شوه (کنیشکا) په‌لومړی جمله کښی‌په لومړی‌حالت کښی‌دی ځکه چه‌د (واننده) فعل دپاره صریحی مفعول واقع شوی‌دی . په‌دغه دویمه جمله کښی (کنیشکی) په دویم حالت کښی‌دی ځکه‌چه‌د (کیرد ـ کړ) کومکی‌فعل دپاره‌فاعل‌واقع شوی‌دی اودپښتوپه ګرامری غوښتنه دماضی‌متعدي فاعل‌په دویم‌حالت کښی واقع کیږی . اوصریحی مفعول یی په‌لومړي حالت کښی . دفعل دغه ګرامري سیستم‌ته چه فاعل یی‌په دویم حالت واقع کیږی دژبپو هنی په اصطلاح (ایر ګاتـیف ) سیستم ویـل کـیږي ، هـی ځایه نه ګـنم

---

۱ـ همدغه‌قاموس د (کور د کامه)۱۸۶-۱۸۷ مخونه .

چه ددغه گرامري سیستم په باب لږ څه مفصله رڼا واچوم (۱) .

ایرگاتیف سیستم یا جوړښت په آریایي لرغونو منځنیو او یولږ معاصرو ژبو کښې خاص اهمیت لري . کله چه دزړې پارسي مواد مطالعه کوو دمتعدي ماضي فعل په هغه صورت کښې ایدل کیږي چه فاعل په دویم حالت کښې یعنې دمفعول په حالت کښې ذکر کیږي . ددې په ځای چه دمتعدي ماضي فاعل په لومړي حالت کښې یعنې د (ادم ـ زه) په بڼه ذکر شي هغه دمفعول (منا mana من ـ ما) په بڼه ذکر کیږي . لکه پهدې جمله کښې ( ایمه، تیه(منا) کرتم ـ ima tya mana kartam داهماغه دی (چه) ما و کړ) .

دغه سیستم په منځني پارسي ، سوغدي ، پښتو، دبلوچي په ځواساسي لهجو کوردي په زیاتو لهجو ، دتالیشي په زیاتو لهجو ، په مونجاني او ورمړي، پراچي، یگنوبي او په ځینو پامیري ژبو کښې موجود دی او په دغو آریایي ژبو کښې نشته :

فارسي (دري) اوسیتي ، تاتي ، مازندراني ، ییدگا، مونجاني ، دکوردي په لاکسي لهجه دبلوچي په یوه لهجه او په یو شمیر پامیري ژبو کښې .

په کومو ژبو کښې چه ایرگاتیف سیستم موجود دی هغه یوشان نه بلکې په ډول ډول تیپونودی : آریایي دغه ژبې دلرغونو ژبو (سیندو) زیږنده ده . دمیراثي تغیر سره سم دغه سیستم په دوی کښې هم په بیل بیل ډول دی .

---

۱ ـ پهدې باب زیاته استفاده له (دهندوایراني ژبوپه موادو کښې دایرگاتیف سیستم اساسي پراباهونه) نومي رسالې ، دوف : ل ـ ا ـ پیریکو دشوروي علومو دا کاډمي خپرونه مسکو ـ ۱۹۶۸ کال نه شوې ده .

ددغه سیستم کوم عمومي صفتونه چه پهدوی کښېدی اوهمددوی ترمنځه دنژدې کولوتکي ګڼل کیږی هغه دادی :
۱ ـ ایرګاتیف سیستم ددې ټولو ژبو دمتعدی فعل په ماضي هغه فورمه جوړدی چه پهلرغوني مفعولی اساس بناء وی .
۲ ـ صریحی مفعول دګرامری فاعل په بڼه یعنی په دویم حالت کښې ذکر کیږی .
۳ ـ فاعل دګرامری مفعول یعنی په دویم حالت کښې ذکر کیږی (له ډیرو لږو ژبو پرته چه غالباً حالت نه لری) .
۴ ـ دفعل وصلی ضمیرونه دصریحی مفعول سره سمون خوری نه دفاعل سره . ژبپوهان داسې عقیده وړاندې کوی چه دمتعدی ماضي صیغی اصلاً مفعوای لرغونی صفتونه دی مثلاً په داسې جملو کښې لکه (ما احمد لیدلی دی) اصلاً (احمد) مبتداء (لیدلی) مفعولی صفت خبر، (دی) د حکمی ارتباط کلمه (ما) آله اوذریعه ده . یعنی(احمد زما په ذریعه لیدل شوی دی) . دزمانی په تیریدو دجملی مفهوم داسې او بښتی چه د منطق په لحاظ (ما) فاعل (احمد) صریحی مفعول اولیدل فعل شوی دی اما دګرامری تطبیق په لحاظ (احمد) فاعل دی لهدغه ځایه دغه سیستم ته خوك اکټیف اوخوك پاسیف وایی .
دایرګاتیف سیستم ډیرواضح نیپونه دختیځو آریایی ژبو په لړ کښې پښتواودلویدیځو په لړ کښېد کوردی، کورمانجی لهجه او بلوچی ژبه دی:
ددغه سیستم په باب دپښتو کوردی او بلوچی لاندې مثالونهوګوریء :
په پښتو کښې: (دهزه و لیدم په کور دی کښې ( اوی ازدیتم) یعنی (دهزه و لیدم) په بلوچی کښې پاسنی جمله په کټ مټ پاسنی صورت نه جوړیږي چه فعل دخپلو وصلی ضمیرو نو په لحاظ د مفعول سره سمون وخوري .
بلکې په داسې مواردو کښې فعل بیطرفه (نیترال) وضع غوره کوي چه

نه‌د فاعل او نه د مفعول سره سمون خوري ، بلکې دغایب مفرد په بڼه ذکر کیږي لکه :

(پادشاهه منارا کوشتک، پاچازه ووژلم) دلته فاعل (پادشاهه) په دویم حالت کښې دی او مفعول (منارا) په‌لومړي حالت کښې او فعل (کوشتک) دغایب مفرد مطلق فعل په صیغه چه د ماضي صفت سره سمون خوري. په بلوچي کښې دغایبي جمع په‌صورت کښې د صریحې مفعول سره دوصلي‌ضمیرونو سمون واضح دي. مثلاً من پرو شتکت‌ما-(هغه) مات کړ) داپه‌هغه صورت کښې چه‌صریحې مفعول‌مفردوي او که‌جمع وی هغه به داسې‌وي‌د من پرو شتکنت‌ما هغوي‌مات کړل) .

د کوردی او بلوچي په خینو دیالیکتونو کښې ایرگاتیف سیستم اشته. خود پښتو په‌ټولو دیالیکتونو کښې‌دغه‌لرغونی آریایی‌سیستم ښېخې واضح دی. همدارنګه په‌بلوچي کښې‌چې‌د جنس (تذکیراوتانیث) تمیز له‌منځه تللی دی او په کوردی کښې یوازې په نومونو کښې‌پاتې دی د ایرگاتیف سیستم‌بشپړ انعکاس‌ور کښې نه‌شی کیدلای. داسیستم په پښتو کښې نظرټولو ژبوته‌څرګند اوله‌هره اړخه‌واضح دي. او په دغه صورت په آریایي ژبو کښې دایرگاتیف سیستم‌پوشان نه‌یلکې لرا او ډیر توپیرسره لري‌چه‌نسبت ټولوته‌یې څرګند تیپ‌یی یوازې پښتو ده .

د بغلان‌د کتیبې ګرامري تحلیل‌مونږ ته‌یقین‌راکوي‌چه‌د ګرامرد نورو خواوو په شان‌دایرگاتیف سیستم‌په معاصره پښتواوزړې پښتو (باختری) کښې‌له‌هره لحاظ‌یوشان دی او د بغلان کتیبه‌په‌زړه پښتولیکل شوې‌ده.

## توصیفي او اضافي ترکیب :

یوه‌بله ګرامری موضوع چه په کتیبه کښې په عام او په‌دغه پراګراف کښې په‌خاص ډول باید ورته پاملرنه وشی، هغه دتوصیفي (همدارنګه) اضافي ترکیب څه رنګوالی دی .

مونږ چه دآریایي ژبو ویش په باختري اوپیرسیکو(یاختیځ) گروپونو کوو په ویش کښې له تاریخي موادو علاوه دپر ژبنې سواد په نظر کېږې نیسو.یوله دغوژبنیو سواد وځخه دتوصیفي (همدارنگه داضافي) ترکیب څه رنگوالي دی. باید وویل شي چه دآریایي ژبوپوهان عقیده لري چه داسمي او ښتنواوتغیرونو په باب باختري ژبودارغوني آریایي( اسمي خصوصیات - flexio) نسبت پیر سیکو ژبو ته زښت ډیر په ځان کېږې ساتلې دی . دغه لویه گرامري خاصه نه یوا زې په منځنیو آریایي ژبو کښې موجوده و. بلکې په معاصر و ژبو کښې هم موجود ده (۱) . په دغه لړ کښې ټولې باختري ژبې گرامري یو لو ی خصوصیت د ا اري چه په توصیفي او اضافي ترکیب کښې صفت او مضاف الیه په موصوف او مضاف مقدم وی . اما دپیر سیکو ژبو اکثریت بالعکس دی .یعنې صفت له موصوفه او مضاف الیه له مضافه و روسته راځي او دا ضافت مخصوصه نښه و رسره موجوده وی . د پیرسیکوژبو په جمله کښې په بلو څي،تا لیشي او دکاسپین دغاړې په دیالیکتونو کښې دتوصیفي او اضافي ترکیب څرنگوالي دباختري په شان دی،په پار تیا نې کښې دواړه تیپونه متداول و و .

---

۱- (ایراني ژبې) داورانسکي تالیف ۶۳ او ۱۸۰ مخونه.

دادی په باختری او پیرسیکو ژبو کښی دتوصیفی او اضافي تر کیب ځوشالونه:

## باختری ګروپ :

پښتو- پوه سلګری - دزلمی قلم ،باختری (زړه پښتو) - بغه شاه (لوی شاه ) ،خوارزمی-
خو بام دوغد -(ښه لورمی) ،سوغدی - (پریه مث - pryh math) ګرانه مور) .
اوستی -ماد- mu mad زمامور ' یګنوبی شووغرshuo garتورغر-بادوان ی آواز
(دبا دوان غږ) .شوغنا نی - مو خا لک mu xalak زماماما . روشانی . موډ-
زمامور' بارتنګی. مون ورچ (زماآس). اودا سی په نورو باختری ژبو کښی.

## پیرسیک ګروپ :

منځنی پارسی - کو نیشن خویش (خپل اقدام).

معاصر فارسي (دری) مادرمن (زمامور).

کوردی (هسپی من) (زماآس) .

تاتی -دادای من (زماکا).

بختیاری-چشمی باز (دباز ستر ګه) .

او د اسی په نورو ژبو کښی (۱).

څومره چه دبغلان کتیبه دزیات تحلیل لاندی نیسو هماغومره د اډ ه ګیږو چه دغه کتیبه په یوه داسی ژبه لیکل شوی ده چه دنورو تولو باختری ژبو په نسبت دپښتو سره دلرغونی خپلوی رابطه لری (۲).



---

۱- په دی باب دزیات تفصیل دپاره (ایرانی ژبی) او رانسکی ۶۳-۱۸۰ مخو نو ته مراجعه وکړی.

۲- دسره کوتل د کتیبی دورپسی څو نورو پراګرافو نولوشت اوتحلیل دکابل مجبی د(۹ ۳ ۱ ۳) کال په (۲، ۳) او (۴) ګڼو کښی و ګوری.

## د ساکو لنډه پیژندنه :

دساکي قبایلو یلو اصلي ټاټوبي لرغونې افغانستان(د هندوکش څواوشا) دی. ددغو قبایلو یو لوی ګروپ دمیلادنه ترمخه دزروکلونو په خوا اوشا کښې له خپل اصلي ټاټوبي افغانستان نه د شمال خواته ولېږدېده او توری بحیرې له غاړو څخه دچین ترسرحدونو خپاره شول . مګر بله څانګه یې د مرکزي آریا یانو (یعنې باختریانو ، پارتیانو ، سوغدیانو ، خوارزمیانواو نورو ) تر څنګه په خپل اصلي ټاټوبي کښې پاتې شوه . له دغه ځایه ده چه ساکي قبایل ددوو زرو کلونو په جریان کښې یعنې دقبل المیلاد زرو څخه ترمیلادي زرو کلونو پورې په یوه بیخي پراخه سیمه کښې اوسیدل.

په تاریخي بیلو بیلو روایتي مأخذونو کښې دغه باختري قبایل په دول

دول نو سونو بلل شوی دی. دزړی پا رسی په کتیبو کښی د (سا که- saka)
د زړی یو نانی په اسنادو کښی د (سکیف) ،په چینا یی اسنادو کښی د(سك-د«س»په
زوره کی ،( سه د(س) په زوره کی)، سای - sai) ا ودزړی هندی په اسنادو کښی
د(شا که) په نامه یاد شوی دی.(۱)

مګر په پاس نومونو یاد شوی ساك یوخی وسیع مفهوم لري چه په زمانه او
سیمه کښی د کومی خاصی قبیلی نوم نه دی . له دغه ځایه ده چه په علمی حلقو
کښی(سکیف) او (ساك) دوه نومو نه سنځ ته راغلی دی . کوم چه دمیلا دڼه
زرکاله پخوادخپل تاتو بی نه لیږیدلی اودتوری بحیری له غاړو دچین ترسرحدونو
میشته شوی وو، د زړی یو نانی په اسناد و کښی د سا تل شوی(سکیف) په
نامه اوپه یول ډورو تاریخی اسنا د و کښی د (سیت) په نا مه مره یا دیږی .

دسا کو یو لږ په منځنی اسیا او په چینی تور کستان کی هم میشته وو خو د هغوی
دژبی او دیا لیکتونو په باب د هغه لږ شمیرخاصونومونوڅخه پرته چه دزړی پا رسی په
کتیبو اودلرغونی یونان د مؤرخینو سره ساتل شوی دی نو رکوم ژبنی ا سنا د
دعلم په لاس کښی نشته.

---

۱- په زړه پارسی کښی سا کی په داسی عبارتو یاد شوی دی:

1—Saka tigraxauda — تیره خولی ساك

2—Saka tyraiy para sugdam — دسوغدنه پوری ساك -

3—Saka haumavarga — دهوما(دخښاك ) جوړوونکی سا ك

4— Saka tyraiy paradraya — دسین پوری ساك .

په قبل الميلاد دو يمه پيړی کښې دسا کو يوې ډلی (دا سی ښکاري چه ددوی د خپلوانو تخار يانو يوې قبيلی ) په با ختر ، درنگيا ن (سيستان ) آ را خوز يا باندی خپل تسلط قايم کړ او له هغې وروسته يې دخپلی واکمنی لمن د هند شمال لو يديځ ته هم وروغزوله چيرته چه دسا کو ديوه ديالیکيت آثار په خروشتی او بر همنی ليك په ميلادی لومړ يو پيړ يو کښې ليکل شوی او هلته يې آثار پاتی دی.

کومو ساگو چه د هيلمند وادی اود هامون وادی ته مخه وکړه اوهلته سيشته شول دغه سيمه ددوی په نامه (ساکستان ) و بلل شوه چه نن د(سيستان) په نامه ياديږی . دساك دتوکم نوم دچينی تورکستان په يولړ اسناد وکښی هم ليد ل کيږی . د ( تاريم ) دسيند دشمال او د( قشقار ) دلو يد يځ په لو يه سيمه کښی دسا کو تار يخی موجوديت له چينی تار يخی منا بعو څخه هم تائيد يږی (۱).

تار يخی باوری اسناد دهند په وادی کښی هم ځای په ځای دسا کومو جوديت ښئی . تار يخی اسناد په دی شا هدی ور کوی چه دخپل اصلی ټاټو بی ( معا صر افغانستان ) نه دسند وادی ته دسا کی قبا يلو مهاجرت په ميلادی لو مړ يو زرو کلو نو کښی شوی دی .

ديو لړ محققينو په عقيده د آر يا يی او هندو آر يا يی ژ بواوديالیکتو نود و يونکو قبا يلوترمنځه طبيعی پولی او بريدو نه دقبل الميلادز رو کلو نو په دويمه نيما يی کښی دسليمان دغرونو څو کی وی جنو بی لو يد يځ بر يد يی د(خاب) سيندتشکيل کړی ؤ ، چه دمعاصری کراچی جنوب ته تقر يباً په پنځوس کيلو متری کښی پـه

---

۱ - ( ايرانی ژ بی ) اورانسکی ۹۰-۹۱ مخونه.

بحر العرب کښې تو ئیږ ی .

د د غو بر ید و نه د هند پخوا د با ختری او د هغو په لړ کښې دسا کی قبـا یلـو نـفـو ذ قبل ا لمـیـلا د ز ر و کـلو نـو پـه نیـما یـی ( احتمالاً په لوسړی نیما یی) کښې شروع شوی دی (۱) .

## ساك په پامیر کښې :

په ارکیالوژیکو پلټنو کښې لاس ته راغلی اسناد په دی شاهدی ورکوی چه ساك په دپامیر سیمو ته په قبل المیلاد اووه شپږمه ، کښې کو چیدل اوله هغه ځایه به یی دهند شمالی بر یدونو ته نفوذ کاوه (۲). هلته په وروستیو وختو کښې ددوی په موجودیت باندی دلرغونو مؤرخینو روایات شاهدی ورکوی .

په ختیځ پامیر کښې دقبل المیلاد پنځمی څلورمی پیړی سر بوط دسا کو په هدیرو کښې موندل شوی هندی آلات اوشیان دد ې شاهد دی چه حتی لاډیر پخوا دهند دوادی داوسیدونکو اودباختری قبایلو اودهغو په جمله کښې د..ا کو تر منځه نیغ تما سونه موجودوو .

دقبل المیلاد دزروکلو نو په نیمایی کښې دپامیر اوهغه په و رخیر مه سیمو اوسیدونکو یوه باختری (مرکزی آر یایی ) دیوه کلتور لرونکی واحده تولنه جو ړه کړه . داسی تصور کیږی چه ددغو سا کو یووالی بهد هغه سا کوسره سم ؤ کوم چه ددارا په نقش رستم کښې د ( سا که ها و ما ورگه -Saka-Haumavarga)

---

(۱) ـ په دی باب د ( پا کستان اولسو نه) نومی کتاب ۱٦ مخ وکو ر ی.

(۲) ـ په دی باب ( په ختیځ پا میر کښې ا رکیا لو ژ یك کشفیا ت )د ب.الف لیتو نیسکی تالیف ته مراجعه وکړی.

( ۱ ) او په‌نورو کتیبو کښی په‌داسی نورو نوسو نو یادشوی‌دی‌او کوم‌چه هیرودوت د ( اموركی سكیفیانو ) په‌نامه یادکړی او استوګنځی یی ورته دسکیفی قبا یلو جنوب ختیځوسیموکښی ښوولی دی . دلته هیرودوت زیاتوی‌چه سکیفیا نو په ساك ( داموركی سكیفیا نو ) په‌خاص نامه یادول . دسترابون دروایت له مخی ساك د هغو وګړو نوم و، چه‌د سکیف په‌بیخی ختیځ کښی واقع وو .

دمؤرخینو په خیال د ( ساك ـ هاومو رګه ) په‌اتحادیه‌کښی پرته‌له‌باختری قبایلو هغه غیرباختری بومی قبایل‌هم داخل وو کوم چه‌د جنوبی پامیر او د هندوکش دختیځی خواپه سیمو کښی دساکوله راتګه پخوادلته اوسیدل . په‌دغه‌موضوع انترو پولوژیك اوارکیالوژیك مواد شاهدی‌ورکوی او هم یی دلرغونو مؤرخینو په‌آثاروکښی څرك لیدل کیږی (۲) . د ساکو د هیوا د داوسید ونکو قبایلو په لړ کښی بطلیموس نومی‌مؤرخ د ( بیلت ـ Bilt )نومی قبیلی نوم هم اخلی د ( بیلت ) نوم‌د( بالستان ) دنوم سره ربط لری چه داوسیدو نکو اکثریت‌یی داردیان دی او وروسته یی د ساکو ژبه او کلتور منلی‌اوساك شوی دی .

دقبل‌المیلا د زروکلونو دساکو دژبی په‌باب اوس دعلم په‌لاس‌کښی کوم

---

۱ ـ د کلمه د تحلیل له مخه یی معنا ( له هوما څخه دڅښا ك جوړو ونکی ساك) ده.دا کلمه دوه‌توکی‌لری : ( هاومه ـ هوما ورګه‌ـوریت )«اورانسکی».

۲ ـ په دی باب دمثال لپاره د ۱.م ساندیشم ( دپامیر او دپامیر دورڅیرمه‌خوا اوتاریخی جغرافیوبنه ) نومی اثر ۷۱ ـ ۲ ـ ۷ مخونه وګوریء .

مهم اسناد نشته . یوازې څه قبایلي او جغرافیوي خاص نوسونه له هغه وختهٔا ثې دي چه هغه هم دهغو ډیرو وروستیو روایاتو، سکو او متنو نو په ذریعه توضیح شوي، چه په خر وشتي او براهمني لیك لیکل شوي دي .

دد غو تولو اسناد وڅخه دانتیجه لاس ته راځي چه ددغو ساکو ژ په دباختری (دمرکزی آریایانو) دژبو له ډلي څخه وه . (۱)

دقبل المیلاد دو یمې په نیما یي او قبل المیلاد دلومړي په سرکښي ساکود هند دلمي قار ی په شمال لوید یځ یرغل وکړ اوهغه سیمې یې دخپل لاس لاندي کړي.

دغه یرغل دهغو تار یخي لو یو پیښو نتیجه وه کوم چه په مرکز ی آسیا کښې دقبل المیلاددو یمې په نیما یي کښې مهم رول ولو با وه .

اکه چه تر مخه وړاندې شوه د قبل المیلاد زرو کلو نو په نیمایي کښې دساکې قبا یلو د ( مس سا کیت - Massakit = لو ی سا ک ) (۲) په ګډون لو یه اتحادیه جوړه شوې وه. دوی دجنوب خواته نفوذ وکړ اودپار تیانا اودګریکو باختر ترقلمرو نو پورې یې دوا کمنی نیلي وغزولي، دجنوب خواته ددغویر غلونو عاسل غالباً دهغو ترکانو (ګون)فشار و، کوم چه دقبل المیلاد زرو کلونو په لومړي

---

۱ - په د ی با ب دپا کستان اولسونه نو می کتاب ۲ ۶ -۵ ۶ مخونه وګوری.

۲ - د کلمې تحلیل داسې کیږي: ( مس = مشر، لوی = سا ک - قوم دی او « ت » په شمالي باختری ژ بو کښي دجمع علامه ده ) دیو لړ «شوروی» محققینو په عقیده « مس سا کیت » اوساک له یوه توکمه نه وو .

ئیمایی کښې په هغوساکی او سس ساکی قبایلوسخت یرغلونه کول چه د (سیان شان) په ختیځو اوشمالی سیمو کښې د کوچیانو په توګه میشته وو. (۳)

جنوبی ساکو چه پارتیا ته سخته ساتی ورکړه دایران ختیځو سیمو ته هم ورننو تل همدارنګه یې درنګیان (معاصر سیستان) او معاصر افغانستان جنوب بلو یدیځی سیمی ونیولی. دغه ځای ددوی (ساکستان) په نامه یادشوچه اوس دسیستان په نامه یادیږی.

تخار یانو د کونفید راسیون له خوا چه دګریکو - باختر دولت ته ما تی ورکړه شوه اوهلته دتخار یانو واکمنی قایمه شوه دغه ځای دتخار یانو (یعنی تخارستان) په نامه یادشو.

دتخارستان په شمالی هغو سیمو کښې چه د کاشیک او زرآفشان له سیندونو خړو بیدل د تخاری مشرانو په واکمنیو واړه واړه دولتونه جوړشول. هلته دتخار یانودفشا ر له امله د پامیراو (تیان شان) ساګ دپامیر په سختو لارو د کابل وادی اودهند پاسنیو سیمو ته تیر شول او یولړ نوی ځمکی ئی ونیوی اویو څه شمیر یې په خپلو واکو بیو کښې پاتی شول.

---

۳ - په دی باب دن. یا. بیروچین تالیف چه نوم ئی« په لر غونو زمانو کښې د منځنی آسیاداوسیدونکو راټول شوی مشاهدات» د و یم توك ۱۷۳-۱۷۹-۱۸۳ مخونه وګوریء.

دغه خپرید ل دد ېسبب شول چه د ساکي قبايلو يوه ځا نګه له بلې څخه ليرې پر يوځي اوقومي روابط يې سره وشکيږې، دېرې ځانګې يې د ځايي وګړو سره ګډې وړې شي او خپل ځانګړيتوب او کلتو ر له لاسه ور کړې .

دساکودواکمنی سرکزدغه وخت يعنی دقبل الميلادلوسړي پيړې په نيمايي کی کندا هارا شو چه ختيځ مرکز يې تا کسيلا وګرځيد .دغه وخت دساکو پا چا ماويس ؤ چه د پنجاب په زياته برخه يې هم خپل تسلط قايم کړی ؤ .

په قبل الميلا د لوسړې پيړ ی کښې د پارتيانو دفشار له امله د سا کستا ن (سيستان ) واکمنو د افغانستان دجنوب او بلوچستان د شما ل له لارې د ختيځ خواته د هند دمنځني جريان په لور هڅه و کړه او بيا د هند په لا ند ينی بر خه کوجرات کتهيا وار اود هند نوروشمالي اولويديځو سيمو ته و رسيد ل .

## ساکې، خو تنی ژ به او په باختري (مرکز آر يايي) کښې د هغې موقعيت

پکتيايانو (پښتنو) چه په قبل الميلاد شپږمه او پنځمه پيړې کښې د هيرودوت او هيکاتي درواياتو له مخې په ګندهارا کښې لوی دولت جو ړ کړی ؤ، د دغه دولت سرحدې پولې دساکو او پاميريانو دسيمو پورې غز يدلې و ی .(۱) د لر غو نو ليکلو

---

۱- (د ا فغا نستا ن تا ريخ )لو مړ ی ټو ك ۶۷-۶۸ مخو نه همد ا رنګه (د پا کستان اولسونه ) ۶۱-۶۲ مخو نه وګو رئ .

اسناد وله مخې په آراخوزیا (۱) کښې په قبل المیلا د څلورمه‌او دریمه پیړۍ کښې یوه باختري (مرکزي آریا یي) ژبه مروجه وه‌چه داو پستاسره یې نژدې خپلوي لرله . یو لړ د یالیکتونه‌لکه‌باختري، درنګیاني‌اونور هم‌دلته موجودو و (۲) .

د مؤرخینو اوژبپوهانو په‌عقیده‌هم‌دغه‌د یالیکتونه او توکمونه د معاصرې پښتو نخواد ژبو اوتوکمونو منبع ګرځېدلې دي .دد غو ژبو او لهجو په لړ کښې دتار یخي‌فونیتیک اوعلامولهمخې‌مؤرخین اوژبپوهان‌حکم کوي‌چه باختري‌له‌یوې خوادسوغدي، خوارزمي‌اوپارتیاني‌اوله‌بلې‌خوادمعاصرې‌پښتوترمنځ‌موقعیت لاره (۳)

---

۱ –«آراکوزیا» یا«آرا خوزیا» دارغونې افغانستان‌هغه‌سیمه‌وه‌چه د هیلمند دمرستیالانو خصوصاً دارغنداوله‌سینده خړوبېده .دسکند رپه وخت کښې ددغې سیمې اوسیندونکو ځان د( پختون ) په نامه یا د کړې دي.دد غې سیمې مرکز د کندهار ښار دی‌چه‌یونانی‌سکندرجوړکړی‌دی. په‌دې‌باب‌دنجیب‌الله‌تالیف‌د کابل چاپ «۹۸» او«۱۰۶» مخونه وګوریء .

۲– دبیرشتم تالیف «تاریخی-ارکیالوژیک یاد داشتونه» ۸۸ ۲–۳۱۷ مخونه‌وګوریء .

۳ –یاد ونه- دمحققینو داحکم زما په خیال تر زیاتې اندازې دسره‌کوتل د کتیبې په‌لوست او تحلیل بنادی،ددغې کتیبې‌د یو مهم پراګراف‌لوست او تحلیل د کابل مجلې د«۱۳۴۹» کال په‌دویمه‌، دریمه‌اوڅلورمه ګڼو کښې وړاندې شواو دا وښوول‌شوه‌چه‌سره کوتل کتیبه په پښتو‌لیکل‌شوې ده«لیکونکی».

## ساکی اتلان :

کله چه سونږ دمعاصر افغانستان لرغونیتاریخ مطالعه کوو- دیو لړ ساکی اتلانو «هیرویانو» له نامه سره هم اشنا کیږو. یوله دغوا تلا نو څخه افسا نوي هیرووساکیملکه «زرینه» ده چهدقبل المیلاد د او و می په پای کښی اودشپږمی پهلومړی نیمائی کښیئی دلرغونی افغانستان پهخاوره کښی دساکی کو چیا نو یوه لویهاتحادیه جوړه کړه اوبیا یې د «پا رتها»له لاری دا یرا نیا نو «ماد یانو» پهضد یرغلونه شروع کړل.ددغو کوچیانو په مقابل کښیددفاع لهپارهپهمرغاو، باختر او سوغد کښیتاریخی لوی دیوالونه دتاریخی اسنادو په لحا ظ ښه شاهد دی (۱) .

دساکی اتلانو اودهغو پهلړ کښی دساکی ملکی زرینی یادونه دلرغو نوسؤر خینو په آثارو کښی زښته دیرهلیدله کیږي.دهیرود وت د روا یت له مخی دسا کو او ایرانیانوپه لومړی جگړه کښی ایرانیانوپه ساکوچل و کړاو د وی ته یی ما تی ورکړه اودساکو سرلښکردزرینی زوی «سپارگاپیس »یی اسیر کړ . زرینی لهپارسیا نو څخهغوښتنهوکړه چه ددیزوی بیرته ورخوشی کړی او په هغه صو رت کښی به ورسره سوله وکړی -اود پارسیانو واکمن«کوریش » تهیی ولیکل :

«که ته دا کارونه کړی دسا کو په خد ای «لمر» سوگند خو رم چه زه به ساتنده پهوینوماته کړم که څه هم تهٔ سوړیی !»

---

۱- «د افغا نستا ن تاریخ » لومړیټو ك «۲ ۵-۳ ۵ »مخونه وگوریء .

ساکو په پارسیانو له بله هره وخته سخت یر غل وکړ . کورېش په دغه جگړه کښې ووژل شو . زرینې د وګړوله وینو یوژ ی ډك کړدمړوپه لړ کښې یې د وریش سر یوموند دهغه سر یې دوینو په ژی کښې واچاوه اوپه سلنه ویې ورته وویل : که څه هم په جګړه کښې ماپرتابری وموند خوتالو یه خوا شینی زما په ... ه چه دزوی نه دی محرومه کړم خو زه تا په وینو د اسی مړ وم لکه چه ... رته ویلی وو » (۱) هیرودوت په خپل تاریخ کښې دساکوافسانوی پید ایښت په دی ډول څرګندوی: ساکی «سیتی »وایی چه «ددوی دهیواد په وچ ډاك کښې د«ترګیتای -Targitai) په نامه لو سړی سړی پیدا شو پلا ریی آسمان او مو ریی دسین لوروه . دهغه دری زامن پیدا شول چه مشریی «لو را کز ا ی Loraksai اومنځنی یې(ار پوکزای Arpoksai) او کشریې( کو لکز ا ی Kolaksai )ؤ. ددوی په وخت کښې ددوی په زمکه طلایی شیان : ایو ه تسکو ره ا و کاسه له آسمانه راولویدل . دوی چه دغه شیان ولیدل مشرنی ورنژدی شو چه هغه را وا خلی خوطلایی شیان داورپه سره لمبه بدل شو هغه بیرته ورنه ستون شو منځنی چه ورنژدی شود هغه سره هم داپیښه تکرار شوه . کشرچه ورنژدی شو هغه دا شیان را و اخیستل مشران ورونه په دې معجزه پوه شول اوتوله پاچایی کشرته و رپر یښو دله . »

دسیسل اوسید ونکی(دیودر Diodor) قبل المیلادلو مړي پیړی» په لړ څه تو پیر سره هم دغه ا فسا نه ذ کر کړی ده .

دیودرد ساکی ملکی زرینی په باب هم روایت وړا ندی کړی دی او لیکی چه دساکی ښځی ډیری زړه وری دی، دوی په ټولو جګړو کښې دخپلو میړو نو سره ګډون

۱- دتاجیکی اولسی اشعارو تا ریخچه سوالف ای-س. براګینسکی ۱۲۹-۳۳ ۱ مخو نه.

کوی . مگر زرینه د ساکو دټولو ښځو په نسبت زیاته زړووره وه، هغی خپل اولس دگاونډیو توکمونو دغلامی نه خلاص کړ، ډیر ښارونه یی ودان کړل او دخپلو تبعه ؤ تکلیفونه یی کم کړل . ددی له مرگه وروسته ددی دیاد گارد نما ئخنی په غرض ساکو دهرم په شکل په د ی اوی قبر جوړ کړ چه ځلوینښت قدمه وه ساکو دخپلو قهرمانو اخلا فو په نسبت ددی زیاته نما ئخنه کوله (۱)

دساکی قهرمانو «اتلا نو» په نړ کښی یوبل چه په ټوله منځنی اسیا کښی شهرت لری مشهور اتل رستم دی .

په اویستا کښی درستم نوم نه دی ذ کر شوی-مستشر قین ( ۲) عقیده لری چه زردشتی دین روحانیونو ته درستم نوم او دهغه په باب ئکلونه ځرگندول خو له دی کبله چه هغه دزردشتی دین پیروونه ؤ او د محلی معبودانو عبادت یی کاوه زردشتی روحانیو نو دده نوم نه دی اخیستی ا وپه ساکی حماسو کښی د رستم په باب دقهرمانی قصی په اویستا کښی په بل ډول ښوول شوی دی .

په سوغدی حماسی متنونو کښی درستم یا دو نه څوځا یه راغلی ده .

درستم نوم په پارتیا نی قصیدو : « یادگار زریران » او «درخت اسوریك» کښی

---

۱-دزرینی په باب زیات معلومات «د تاجیکی اولسی ادب له تاریخه » س، براگینسکی ۱۲۹-۱۳۳ مخونه وگوریء.

۲ - لکه جرمنی عا لم ت. نیلدیك اوف. شپیگیل . د« تاجیکی او لسی اشعارو تاریخ » ۱۲۹ مخ په استناد .

هم را غلی دی. دمنځنی پارسی «ددری پارسی دمور» د میلا دی شپږمی ا تمی پیړی په آثاروشلا «شهرهای ایران» کښی رستم د(ر وستا تهم- Rostatham) په نامه دسیستان دوا کمن، دفراه او زابلستان دښارونو دجوړوونکی په صفت په یوزیات شمیر آفسانوی قصو کښی یاد شوی دی.

فردوسی په خپله شهنامه کښی رستم د یوه لوی اتل په صفت یادوی په یوځای کښی وایی:

کـه یك نیمه ا زعمر خو د کم کنم - جها نی پر ا ز نا م ر ستم کنم.

دسا کی اتل رستم نوم په ټوله منځنی ا سیا، افغانستان اوایران کښی دیوه نه ماتیدونکی پهلوان په حیث شهرت لری.

درستم په شان قصی دهغه دلمسی سهراب په باب چه په پامیر کښی زیږیدلی دی هم زیاد شهرت لری (۱).

## دپښتو او ساکی خپلوی:

دنړی مؤرخین اوژبپوهان دتاریخی اولینګو یستیکو اسنادو له مخی عقیده ښکاروی کوی چه معاصره پښتو اوساکی دیالیکتونو یوتربله سره نژدی خپلوی لرله.

دجنوب ختیځو باختر ی ژبود ژوند اورواج ساحه دمعاصر افغا نستان سیمه او خه یی دچینایی تر کستان پوری غزیدلی وه ددغه ځای تاریخی ژبی له باختری، سا کی هفتالی اونوروڅخه عبا رت دی د دغو ژ بو لیکلی ا سنا د یو ازی به با ختر ی (د سره کوتل کتیبه) اوپه ساکی، خوتنی کښی پاتی دی.

---

۱ - دپاسنی موضوع د تفصیل له پاره (دتاجیکی اولسی اشعاروتا ریخ) له (۹ ۲- نه تر ۱۲۶) مخونه پوری اثر ته مراجعه و کړیء.

همدغه ژبی دمعاصری پښتو، مونجانی اوپامیری ژبو سیندی دی(۱) د نړی دژبو محققین لیکی چه پښتو دمونجانی اونوروپامیری ژبوتر منځه موقعیت لری(۲). ناستو ژبپوه (ي.م.اور انسکی) عقیده لری چه د غه تو لی جنو بی با ختری ژ بی (پښتواوپامیری) دلرغونوسا کوتخاری ژبوپاتی شونی دی(۳) دناستو عالم مارگین ستترین په نظریه مرکزی آریایی هغه دیالیکتونه چه پښتو اوساکی-تخاری ورنه راوتلی دی که څه هم سره ډیر نژدی وو، خو بیاهم دوی دیوی ژبی زیږیده نه بلکی د هغو بیلو بیلو لرغو نو باختری دیالیکتو نو پاتی شونی دی کوم چه دمعاصر افغانستان په تاریخی خاوره اودمرکزی اسیا په جنوبی سیمو کښی دقبل المیلا ددریمی نه دمیلادی اووسی اواتمی پیړی پورې ژوندی وو (۴).

---

۱ - په دی باب دزیات تفصیل له پاره (ایر انی ژبی) او را نسکی تا لیف (۱۷۶-۱۷۵)مخونوته مر اجعه وکړیء.

۲ - په دی بابد(ي. زاروبین) (دمونجانی ژبی خصوصیت)نو می کتا ب (۱۲۹) مخ وگوریء.

۳ - ي .م. اورانسکی (دایرانی ژبپوهنی مقدمه)۳۴۶ مخ اود پاکستان اولسونه ۳۳۱ مخ.

3—Morgeenstriene, Report on linguistic mission to Afghan istan PP. 38—39.

په هرصورت ټول تاريخي اسناد د پښتواوسا كی د خپلوي شاهد دی، زما په خيال معاصره پښتو دتاريخي پكتيانو، دسا كواوباختريانو(دسره كوټل د ژبې)مخلوطه ژوندی مجموعه ده.

دلته ددې خبرې يادونه هم په زړه پوری دهچه په قبل الميلا دشپږمه څلورمه پيړی كښی د پښتنو د(پروپا ميساد- Paropamisad) (۱)اوگندااها را لويد يځی سيمې دسا كود نړی سره گډی پولی لرلی اوامكان لری چه دغه وخت يا له دغه وخته ترمخه هم ساكو دغوسيمو ته لاره موندلی وه (۲).

په دی باب په قبل الميلاد پنځمه او څلورمه پيړی كښی دسا كی دژ بی د (كنت- ښار ، كلی)نوم دافغانستان او هغه ته دورڅيرمه سيمو په نوموكښی هم په زړه پوری دی. لكه په (كندبش- كوندوس) تا شكند، يار كنداو په نورو كې (۳) او همدارنگه د پښتو (كندی - قريه، ناحيه ).

---

۱- «پر و پا ميساد» يا «پروپا ميزاد» دلرغونی افغانستان هغه سيمه وه چه يوه مهمه دره يی «كوفن» معاصر «كابل» وه داسيمه «كابل» اودهغه خوااوشا په تاريخي داسی موقعيت كښی واقع وه چه دشمال په خوا ورته يوه لويه لاره دباختر، جنوب ته يې د كندهار اوختيځ ته يی د هندلويی لاری غز يدلی وی ددغی سيمی دهغه وخت مشهور ښارونه «ارتوسپان- د كابل معاصر ښار» «كارتانا» «ستروزيا» او «كادروسی» وو «آريانا افغانستان» دښاغلی نجيب الله تاليف «۱۰۸»مخ وگوریء.

۲- دف .تو ماس «ساكستان» نومی اثر.

۳- دافغانستان تاريخ لومړی توك ۲۹ مخ دمثال لپاره وگوریء.

## ساکي ژبه :

پهمعاصري ژبپوهنې کښې چه کله (دساکي ژبې) نوم اخستل کيږي مرادورنه هغه باختري (مرکزي آريايي) ژبه ده چه متنونه اولیکلي مواد يې په هندي بر اهمنې ليك ليکل شوي اودشلمي پيړۍ په پيل کښې پهخوتن اودچينايي تورکستان پهنورو برخو کښې سوندل شوي دي .

ددغو متنونو او کتيبو دليکلو نيټه د پنځمې ميلادي نهدلسمې ميلادي پورې تاکل شوې ده . ددغو متنونو زياته برخه ( پهنظم اونثر) دهغوبودايي آثارو ژباړونه ده، چهدسانسکريت نه ترجمه شوي دي. دغه متنونه کلهد (ساکي، خوتني) او کله يوازې په [ خوتني ] سره يادېږي پهدغوسوندلشو واسنادو کښې دغهژبهد (هوتنه Hvatanau. Hvāmna) خوتنې په نامه ياديږي، همدارنگهدخوتنې ژبې خپلوان دیا ليکتونه پهچينايي تورکستان کښې خوتن ته پهورنژدې (مورشوك) او (شوم توك) نومي سيمو کښې خپاره وو چه دهغوی په موجوديت په دغو سيمو کښې سوندلشوي کتيبې شاهدي ورکوي. ترديچهدغسې ديا ليکتونه لا پهيوه ولسمه عيسوي پيړۍ کښې هم په کاشقار کښې ژوندی وو .

---

م - « دافغانستان تاريخ » لومړی توك ۹٦ مخ دمثال له پاره وگورئ .

دچینایی تورکستان په دهغو کښی موندل شوي کتیبی په دی شاهدی ور کوی چه په لویدیځ (باختر ،ماوراءالنهراوسیستان) باندی دسا کوتخاریانو ـ له مکررو یرغلونو وروسته باختری(سر کزی آریایی) ژبه دلوسرپو زر واو وروستیو زرو میلادی کلونو تر منځه موجوده وه .

په معاصر وخت کښی د خو تنی کتیبو په لوست کښی محققین د وه ژ بی یادژبی دوه مرحلی تیا کی :

الف : زړه خوتنی – Older Kho Tanes

ب : نوی خو تنی – Loter Khotanes

لرغونی سا کی یی دفعل اواسم په فر یکاتیف سیستم Inflexional (د ا د ا تو له سرستی پر ته دمعانیو په افاده) بدای و ه اسم یی اووه گراسری حا لتونه لرل چه په بودایی خینو متنو نو کښی هم داسی لیدل کیږی .

و روستنی خوتنی نسبت لرغونی خوتنی ته دفونیتیک په پر اختیا دشمیر «مفرد تثنیه ا و جمع» په اختصار اودادا تو په سرسته دگر امری حالتونو په افاده بیلیږی .

دفونیتیك په لحاظ خوتنی دلرغونی آر یایی نه ډیر ه په ځنګ شوی ده.دسا کو نورو «توسشو ک »دیالیکتونو ترز یاتی اندازی پوری دفونیتیك په لحاظ خپل لرغونی خصو صیات په ځان کښی سا تلی د ی .

په دی لحاظ چه دخوتنی متنونه دسانسکریت نه د بو د ا یی متنو نو تر جمه د ه په خو تنی کښی که څه هم هندی لغا ت «بودایی اصطلا حات» زښت ډیردی مگر

بیا هم دلغاتو اصلی ذخیره یی آریایی (۱) ریښه لری لکه :

خو تنی (اسه - Assa) پښتو « اس» زره پارسی « اسه او یستا «اسپه» خوتنی «ازوپښتو «زه»اویستا «ازم» زره پاریسی «ادم» .

خوتنی غره- Ggrara (۲) او یستا گیری - gairi سو غدی «غر» پښتو«غر» خوتنی( پوره- Pura زوی) اویستا (پو تره) زره پا رسی(پو تره)پارتیانی( پوهر) دا کلمه دپښتو په(تربور، بوره) کښی ریښه لري.

خوتنی(شو)اویستا(خشب)زره پارسی(خشب)پښتو(شپه).

خوتنی(څرمن- Tcarman) اویستا(چرمن)زره پارسی (چرمن)پښتو(څرمن)او داسی نور.د فعل دتصریف له مخی هم خوتنی دباختری مرکزی آریا یی ژبو سره نژدی خپلوی لری،دلته دمثال په ډول د خوتنی د(پولس — Puls — پوښتنه)تصریف د حال په زمانه کښی وړاندې کوو:

دمفرد حال صیغی:

مفرد متکلم- پولسیمه Pulsima پوښتم

مفرد مخاطب - پولسی Pulsi پوښتی.

مفرد غایب- پولسته Pulsta پوښتی.

---

۱ - کله چه مونږ د«آریایی» کلمه استعمالو ومطلب موورنه هند وآریایی نه بلکی مطلب مو پیرسیك اوباختری «مرکزی آ ر یا یی» دی چه کله کله په مشهو رغلط ډول د «ایرانی» په نامه یادیږی .

۲ - د «گ» تکرار غالباً د«غ» دغږ دافادی له پاره دی «لیکو نکی»

## دجمع دحال صيغې :

جمع متكلم پولسمه Pulsama پوښتو

جمع مخاطب پولسته Pulsta پوښتئ .

جمع غايب پولسوند Pulsinda پوښتي.

دلته دساكي د(توم شوك)ديوه متن ديوې توټې ترانسكريپسيون دترجمې او تحليل سره وړاندې كيږي:(۱)

aśu Dhermadāsi bārsā saranga
Cchami, dāsā śaranya cchami, sangā
Śaranya cchami, vitana dvitana krānāmi

## تحليل :

ازو(زه): د مفرد متكلم شخصي ضمير دی چه تفصيل يی څوكرښې ترمخه تيرشو.

(دهارما داسي): مفرد خاص نوم دی په لوسړی حالت كښې .

بارسه( بودا): خاص نوم دی په مجروری حالت كښې.دا سم اصل حالت بارسه ( بودا) او(زور) دمجروری حالت علامه ده.

ساراتيه(پټون، پناوړنه) : مفرد د خاص اسم دی په ظرفی حالت كښې. غالباً به دپښتو د(سوري) د كلمې سره دريښې لەمخې خپلوی ولري.

---

۱ ـ متن اوتحليل ئي له(ايرانی ژبی۹۳)مخ نه اخستل شوی.

ځی(ځم) دحال دفعل دمفرد متکلم صیغه ده چه د(تللو) معنا ورکوی. دفعل ریښه (ځه-تلل دي) دپښتو دحال صیغی(ځم،ځو،ځی او نو رې)هم ددغی ر ښښی سره خپلوی لري.

داریښه په او ر بړی کښی (ځ) په او سیتی کښی (ځـو) او په کو ر دی کښی (چون)ده.

دا ته (دود،قانون):اسم ذات دی دپښتو(دود)دمنځنی پار سی(داذ) دنـوې پارسی(داد)له همدغی ریښی سره خپلوي لري.دغه ریښه په لرغونی آریا یي کښی (دا- (dh) په زړه هندی کښی(دها- dha))د(جوړولو،رغولو) په معنا موجوده وه.

سنګا(تولنه):مفرد اسم ذات په دویم حـالت کښی.

ویتانه(دوه ځله،دوه واره) عدد دی.دویتانه (درې ځله، دری واره)عد ددی. اصل عددئی(درې)دی چه په اویستا کښی(ذرایه)او په پښتو کښی (درې) دي.

هوا ناسی(وایم): دحال له فعله دمفرد متکلم صیغه ده ریښه یی(هون-ویل) ده.

**ترجمه:**

زه (دهارماداسی)ځم دبوداپناه ته(بوداته پناه وړم)ځم دقانون پناه ته ځـم د تولنی پناه ته-دا دوه ځله درې ځله وایم.

یادونه:-ددغې مقالې په لیکلو کښې له راتلونکو ماخذونوڅخه زیاته استفاده شوې ده:

۱-(د افغانستا ن تار یخ)لومړی ټوک د و.م.مسو ن او و.ا لف رومودین تالیف د مسکو د(۱۹۶۴) کال چاپ .

۲- (ایرانی ژبې)دې.م. اورانسکی تالیف، دمسکو د۱۹۶۳ کال چاپ.

۳ - ( د پا کستان ا و لسو نه) دیو. وگانکوفسکی تالیف دمسکو د۱۹۶۴ کال چاپ .

۴-(دتاجیکی اولسی اشعا روله تاریخ څخه) مؤلف ي. س. براگینسکی مسکو د۱۹۵۶ کال خپرونه .

۵- دپښتو نخواه څو تاریخی نوسونو په تطبیق کښی دښاغلی نجیب الله داثرنه چه(آریانا-افغانستان)نو میږي هم لږه استفاده شوې ده .

۶- ایرانی مقدساتی ژ بپوهنه-اورانسکی.



# اویستایی ژبه

اویستا یوه له لرغونو آریایی ژبو څخه ده چه د پوهانو په عقیده دزاړه بلخ ژبه وه .ددغو پوهانو له جملې نه المانی ژبپوهان کلکه عقیده لري چه ددې ژبې ویونکي د لرغوني بلخ اوسیدونکي وواوله همدې کبله د(زاړه بلخ دژبې) په نامه هم یادیږي .

نامتو ختیځ پیژندونکي او ژبپوهان رسمیتېر کلکه عقیده لري چه(پښتو) یا (پختو) دلرغوني اویستا خورایو ژوندي او څرګند خلف الصدق دی. (۱)

که موږ ددا رسمیتېر ددې نظر یې سره موافق یوپیاڼه چه د اویستا او پښتو ترمنځه دخلف او سلف مناسبت دی نودا خو باید په جرئت ووایو چه دا دواړه ژبې لکه دوه زړې خویندې یو تر بله پوره ګرامري او فونیتیکي مناسبت لري چه وروسته به واضح شي.

---

(۱)تاریخ ادب ایران جلد اول دپرفیسر ادوارد برون تالیف دعلی پاشاصالح ترجمه. ۴-۵۴مخونه دتهران چاپ(۱۳۳۳ کال) وګوریء.

اویستاله یوې نیمی پیړی نه را په دې خوا نه یوازې دآریا ئی ژب پو ها ند

بلکې دا نډو یورو پی ژب پو هاً نو او محققینو د پلټنې او تحقیق سوردګرځیدلې ده.

اویستا د زردشتي دین مذهبی ژ به وه چه په هغی کی خو مذهبی متنونه

دمحققینو په لاس ورغلی دي. ددغه مذهب بقا یا داسلام په ذریعه له منځه لاړل

او دېره لږه اندا زه يې په ایر ان او هند کی اوس هم شته دي .

د او یستا لاسته راغلی متنونه له ۱۳-۱۴ پیړیو نه تـر مـخه نه دي(نسبتاً د

پخوانی متن تاریخ ئی ۱۲۷۸ عیسوي کال ته رسیږي) .

**دزردشت دین :**

(دزر دشت)،دکلمی په ایتما لوژیك تحلیل کی امکان لری چه د(زرد) کلمه( زوړ)

«اوشت» د «اوش» په معناوی چه د تولې کلمی معنا«زاړه اوښا ن لرونکی یادزړو

اوښانوڅښتن »ده(۱) زمابه خیال د «زرښت » د کلمی سره رابطه لري، لکه «پیر»

چه احتراماً دمذهبی مشرلقب دی. دلرغونی «رد»بدل په پښتو کی «ړ» دی .

دزردشت تاریخ دقبل المیلاد «۷» پیړ ی های اود «۶» پیړی لومړی نیمائی ته

رسیږی . باختر « بلخ »دزر دشت د دین دخپرولو او روزلو مر کز و. دطبیعی قوتو سره د

ارتبا طلرلو په ساحه کی زردشت خو معبو دان یا ارباب الانواع خلکو ته معرفی

---

۲-د افغانستان تاریخ لومړی توك «۲۵۲-۳ ۵»مخونه، مؤلفین ماسون او رومود ین.

کېږل لکه «میترا» دمیوورب النوع «اناهیته» دکروند وهالونکی اودا سی نور ددغو ارباب الانواعو په باره کی دسندرو مجموعه اویستا ده .

زردشت کوشش وکړ چه ددوالیزم او تنویث زړو مذهبی عقید و ته خاتمه ورکړی اوخلك ئی دخپل مذهب دمرکز «اهور» یا «اهورمزد (۱)» پالنی ته راوبلل.

هغه توانه چه دغه مذهب په کی‌وده کوله د قبیلو تر منځه اختلافونه او جنگونه ورکی موجودوو-تر تولو زیات دا اختلافونه دکلیو اوسید ونکو او هغو کوچیو قبایلو ترمنځه موجود وو چه دزردشت دد ین حما یه او پیر وی ئی کو له.

داقبا یل د افغانستان په غربی میمو کی اوسیدل اود آریا، باختریا، مارگیانا، خوارزم سوغد، پارتیا، آراخوزیاناونو رو په نامه ئی شهرت درلود .

کوچی قبایل چه د غرو په لمنو، دشتو او په آبادوهرځایو کی اوسیدل، د کلیو په اوسیدونکو به ئی حملی او یرغلونه کول او د هغوی ر سی اوکو رونه به ئی چور چپاو کول .

---

۱-دا هور » یا «اهورمزد» دزردشت دمذ هب مرکزدی. غالبه داده چه لومړی کلمه یعنی «اهور» د پښتو «اور» وی او دوهمه کلمه «اهورمزد » له دوو کلموڅخه مرکب‌نوم وي چه معنائی «محترم اور» . په پښتو کښی «مزدک» د «معبد » معنا ورکوی. په دی اساس د «اهو رمزد» معنا کیدای شی چه د« او رعبادت » شی څینو ژبپوهانو په هو بنیار بادار ترجمه کړی دی.

دقبل المیلا د «۷» پیړی په پای او د«٦» پیړی په سر کی دسا کو«سیستان»

د کو چیانو هغی اتحادیې خوراډیر اهمیت پیدا کړ چی د افسانو ی مشری زرینی نومی

ښځی په واسطه لوموړی تول کوچنی قبایل په خپل منځ کی سره یو او بیا د خپلو

کلیو داوسیدونکو سره متحد شول او بیاد «پارتیانو» په طرفداری د«مادی» نومی

قبیلی سره په جګړه بو خت شو ل

د کلیو اوښارونو اوسیدونکی یعنی سو غد یان ،مارګیا ن ا و با ختر یا ن دحملـه

کوونکو او یرغل کرودیرغلونو نه سخت په عذاب او نارام شول مجبورشول چه

له خپلو ښارونو اوهستوګنځایونو څخه کلاګا و پاخه دیوالونه تاو کا .

دمعاصرافغانستان د سیستان په نادعلی کی دلاسته راغلو لرغونوآثارو کشفیات

داویستاد پرولرغونو هغو توصیفاتو سره مطابقت لری چه دلر غو نو ښا هی حصا رو نو

په باب ئی په یا شته کی بیا ن راغلی د ی .

دنادعلی په کشف شووخرابو کی یوه ۳۱ متره لو یه غو نډی پر ته د ه

ددغی غونډی په سرد یوه داسی عظیم الشان حصار کنډری او بقایا موند ل شوی

چه خواوشاېی دخاسواوپخوخښتوهستوګنځا یونه واقع وو .

ددغه حصار نخښی اوتوصیفونه بیخی د هغو نخښواو توصیفو نو مصداق دی

چه دشاهي حصارونو په باب ئی د اویستا په یوولرغونی برخه یاشته کی ذکرراغلی دی.

داویستاپه دی‌لرغونو برخو کښی څو محله دیوی د اسی نو لنی یادونه کیږ ی چه‌له څلور و طبقو جوړ ه شوی و ه.

تر ټولو ټيټه طبقه دسر یانو او ټیټو خلکو و ه چه د نمنا –nmana(۱) په نامه‌یادیدله. ددی طبقی له پاسه ددوی‌دځښتن کورنی واقع وه‌چه دنمنا پای‌تیش namnapaitish په نامه یادیدله (۲) .

دحصار په چاپیر پیاده خانوکی ټیټه طبقه‌او په‌سنخ کی ئی‌د هغوی د رئیس کورنی یعنی منا پای‌تیش‌دیو ه واحد په حیث اوسیدل . داسی و احدپه‌اویستا کی د ویس –Vis په‌نامه‌یادیږی‌چه‌معنائی‌په‌خیل، ټپه او قبیله شوی‌ده(۳) . (دویس) مشر ي د«ویس پای تیش» په‌غاړه و ه .

دریمه طبقه په او یستا کی د زانتو –Zantu په نامه یاده‌شوی‌ده‌مگرپه‌گتی کی د ( ایر یه من – Airyaman) (۴)په نا مه ذکر شوی دەچه معنا ئی قا م یااولسوالی‌ده .

---

۱–دا کلمه دمعنا په‌شکل اوس هم په پښتو کی«منا»ژوندی‌اود کورهغی فرعی‌برخی‌ته و ائی چه‌په هغی کی دڅا رویوادوقه ساتل کیږی .

۲– په‌دې کلمه کی‌د «منا»اود « په»خدمتی‌توری ریښه واضحه ده.

۳– لیری په نه‌وی‌که دلوی‌میرویس بابا دنوم وروستی بر خه له همد غی ریښی و ی٬ یعنی د قبیلی سر.

۴– دلته د(ایره) کلمه د زردشت دمذهبی اصوا و په اسا س د احترام په‌توگه (قا) لپاره ئی بنائی‌نوم گرځیدلی وی.

خاوربه طبقه‌په او یستا کی د ( داهیو- Dahyu ) په‌نامه‌ذکر شوی‌چه‌معنائی هیواد اوسلکت‌دی. دهیوادمشر د (داهیواد پای تیش ) په‌لقب یادیده (۱).

## د او یستا تاریخ :

افسانوی‌او حماسی د‌استانونه‌اوسند ری‌په آر یائی‌قبایلو کی‌چه‌لا په‌یوه‌تاټو بي کښې اوسیدل موجود وو . بیادقبایلی‌مهاجر تو نوسره سم دغه‌سندری‌اود‌استانونه پراخ اومتنوع شوی، او په تدر یج سره‌ئی دمذهبی متنو نو اوعباد تی دعارنگ‌غوره کړی و . مثلاد ( و یدا )سند ر ی په هندي‌قبائلو کی لومړی‌روا یتاً او بیا کتابتاً له یوه‌نسل‌نه‌بل‌نسل ته نقل‌اومذهبی رنگ یی‌سو نډ لی‌دی .

دغسی مذ هبی‌سند ری‌او رو ایات غالباً‌هغو باختری قبایلو هم‌درلودل‌چه پخپل اصلی‌تاټو بي کښې‌پاتي پاتی دغرب خواته‌مهاجرتونه کړی‌وو ، مګر دز ردشت‌ددین ظهور په اوسه او شپږمه قبل المیلاد پیړی کی هغوی‌ته خاتمه‌ورکړی‌او‌په‌مقابل کی ئی د ( ګاتی ) دا سی نظمو نه جو ړشوي چه خلک د ( اهور مـوزد) یـا د ( اورمزد ) نومی‌خدای عبادت ته‌ر ابلل کیږی .

د زردشت دین‌له‌خپل تاټو بی په تدر یج‌سره دغر ب خو اته خپورشوا و د یر وروسته یې ( مادیا ) دمر کز په‌حیث و گر ځیده اودمذهب مشری د ماد یا یو ی قبیلی‌دمغانوپه غاړه شوه . د زردشت دمذهب دپراختیا سره سم په تد ر یج سره

---

۱- پورته مطالب (د افغا نستا ن تا ر یخ لو مړ ی ټوک ) ۵۲-۵۳ مخو نو څخه اخیستل شوی دي.

دزردشتي‌دین د ( مقدس کتاب ) قانون تکمیل‌اوجوړ شو، چه په‌هغه کی‌داحترام او اهمیت په‌لحاظ (گاتی ) غټ‌مقام لري‌چه‌ر وا یتاً له یوه نسل نه‌بل‌ته نقل شوی دی . څرنگه چه د او یستابرخی‌په‌بیلو بیلو زمانو اوسکانو کی منځ ته‌راغلی له یوه دیالیکته بل‌ته اوله یوې پیړی نه‌بلی ته روایتاً نقل‌شوی‌ـنو طبعاً څه نا څه بدلون او تغییر ورکی منځ‌ته راغلی دی، خصوصاً په هغو متنونو کښی چی څېله دمذهب مؤسس زردشت سره ربط نه‌لری . مگردغه‌بدلون دیوه‌دیا لیکت نمو نـه ګڼه نه‌گڼل کیږي چه‌بل دیالیکت ته‌دنقل په‌صورت کی خپل خصوصیات نشی ساتلای‌ـ بلکی په‌لږ ه یادیره‌اندازه‌هغه‌دبل‌دیا لیکت خصوصیات‌قبلوی . همدارنگه دکتیبو ژ به په‌تدریج سره‌دعامی افادی او محاوری نه لیری شوی او یو ا ز ی دمذهبی‌چارو داجراءدپاره استخدامیدله اوڅرنگه چه‌دمذهبی چارو اجراء د پاره همدا یوه‌ژ به وه‌نود وختو نو په تیریدو چه په‌وروستیو وختوکی‌دمؤلفینو له‌خو ا کوم نوی‌مذهبي متنو نه لیکل شوی،هغه همپه‌دغه ژ به‌وو .له‌دغه ځایه‌گرانه ده چه‌په‌دغه سره ژ به تر نور ولوسړی متنونه تشخیص‌شی .

د او یستامتنونه امکان لری دلومړی‌ځل‌دپاره سل‌کاله‌قبل‌المیلاددد(ارشکانو) په‌عصرکی دآرامی‌الفبا داساس په‌یوه ډول لیکل‌شوی چه‌په‌هغو کی دو ا ویل دپاره توری‌نه وو او دکانسو نتو دپاره هم یوه توری کو لای شول چه د ز یا تو غږونود پاره استخدام‌شی . په‌دغه‌اساس‌لیکل شوی متنونه زموږ لا س ته نه دی راغلی اوحتی ځینی‌پوهان له‌دغه‌حقیقته اصلاً منکر د ی.بی‌اختلافه ر اتلو نکی قا نونچه د (ساسانیانو) په‌و خت کی‌دځلورمی په‌آخریادشپږمی پیړ ی په‌منځکښی جوړه شوی‌ده . هغه‌په استثنا ئی دول شفاهتاًاو یادارشکانودمتن‌په‌ذر یعه‌دشفاهي

عنعنی داغیزی لاندی تر دغه وخته راارسیدلی ده .

د ( مقدسو متونو ) دپاره دپهلوی الفبا په اساس خاص توری په کار اچول شوی وو چه هر توری یی خپل تلفظ په بشپړه اندازه ادا کاوه . د دغو متنو مجموعه او یستانو میدله چه معنا یی ( اساس ) او ( بنسټ ) ده ، په زړه پارسی کی ورته ( اپستاک ) ویل کیده او دهغو ترجمه او تفسیر په پهلوی ژبه ( زند ـ Zand نومیږی چه معنا ئی « علم » او « پوهنه » ده ، اود پښتو د « پی + ژند » سره یی ریښه یوه ده . له دغه وخته وروسته داویستاد لیکنی دوهمه دوره شروع کیږی مگر په منځنی اسیا کی داسلام خپریدل اودعربی الفباء منځته را تلل یوه داسی ضربه وه چه د زردشت مذهب ، الفباء او هر څه ته ئی تقریباً خاتمه ورکړه ، د مذهب پیروان ضعیف او تار په تار شول ، ( مقدس متونه ) وروپه وروهیرشول ، یوازی تعبدی برخه یی پاتی شوه چه په عباداتو کی استعمالیدله . له همدی امله تراوسه راارسیدلی متنو نه دخپل لومړی حجم له دریمې څلورمې برخی نه زیات نه دی .

### داویستاترکیب :

اویستا چه تراوسه په کوم شکل او صورت ساتل شوی له رانلونکو برخو نه مرکبه ده :

« یاسنا » معنا ئی خضوع او قربانی ده اود زردشتی دین تعبدی متنو نه دی . دغه برخه خورالرغونی او په څو مهمو برخو لکه ( هوم یاشت ) ( گاتی ) اونورو مشتمله ده .

« ویسپرات » داد یاسنا تکمله ده . « ویدیوداد » یعنی « د دیوانو ضد قانون » « یاشتی » داد بیلو بیلو ارباب الانواع په باب سندری او ترانی دی چه نسبت نوروته پخوانی بڼه لری « خورتاك اپستاك » دا د اور ، نمر ، سپوږمی میترا اونوروته ددعا اوداسی نورو عبادت دی .

علاوه پردغو له اویستانه ځینی اخذشوی متونه په زړه پارسی کی هم موجود دی چه یوله هغو نه مشهور یی (نیرنګیستان) نومیږی .

## داویستا کتیبی :

دوه ډوله کتیبی ساتل شوی دی: یوډول ئی ساده او بل ډول یی د پهلوي د ترجمی اوتفسیر سره . دغه کتیبی په هند، لندن، کوپن هاګن، اکسفورد او ځینی قطعا ت یې دلیننګراد دسلتیکوف شید رین په کتابخانه کی موجودد ی. د کوپن ها ګن کتیبی د ټولو هیواد ودمحققینو له پاره داستفادی مورد ګرځیدلی دی

اویستایی ژبه (یااویستا) دیوی لرغونی آریایی ژبی نوم دی چه د(اویستامقدس) کتا ب ور پاندی لیکل شوی دی .

اویستایی ژبه دایوه اصطلاح ده چه په تاریخ اوژبپو هنه کښی استعما لیږی ځکه چه اویستا( کتاب) دخپل تالیف له مخی یوشی نه دی: دهغه بیلی بیلی برخی دبیلو بیلو مولفینو له خوا په بیلو بیلو وختونواو بیلوبیلو سیمو کښی تالیف شوی دی او ددغه تالیف ددغه ځرنګوالی له مخی دغسی بیلتون په ژبه کښی هم طبعاً منځ ته راغلی دی.

ددغه کتاب ډیری پخو انی برخی(چه دباختری ژبو خصوصیات یی لرل) لا په قبل المیلاد یوزر اوپنځه سوه کلونو کښی منځ ته راغلی وی چه په شفا هی ډول موجودی او دیو نسل نه بل نسل ته نقلیدلی. داویستا دلوړیو برخوتالیف دهخامنشیا نو له عصره ترمخه شوی دی- په دی باب علاوه پرنوروشواهدو یودا هم دی چه په اویستا کښی دپیسو ،سالیاتو ،دپوستی دلارو دسیستم ،ولا یتونو(ساتراب) اونورو د ا ني تشکیلاتو یا سوسویادونه هیڅ نه ده شوی چه د هخامنشیانو په عصر کښی موجودوو

بله داچه په اویستا کښې دمالدارو، کوچیانو ژونداود هغو دود اودستور ترسیم دی،حال دا چه په بلخ ،سارګیان، باختر او د د غو سیمو په ملحقاتو کښې وروستیو ارکیالو ژیکو پلټنو ثابته کړی ده چه د قبل المیلاد د زرو کلولو په دویمه، غلو رسه کښې په دغو سیمو کښې صنعت،له اوسپنې څخه استفاده ،تجارت اود ښاری ژوند شرایط موجود وو. حال دا چه په اویستا کښې دهغو هیڅ یادونه نه ده شوی(۱).

داویستا دلرغونی کتاب مذهبي نغمي اودمراسمو روایات غالباً په میلادی لوسړی پیړی کښې د زیاتو د یروتحریفاتو اواویشتنوسره دلوسړی محل لپاره لیکل شوی دی . لا په همدغه وخت کښې اویستائی ژبه عملاً مړه وه، یوا زی دمذهبی مراسموژبه وه زردشتي مذهب دهخامنشیا نو په وخت کښې رسمی مذهب وګر زید .

دسا سا نیانو په عصر(میلادی ۳-۷) پیړی کښې داویستاله جنسه یوکتاب جوړ شو چه دوخت دزردشتي مذهبي رسمي دین دونه ګڼل کیده چه هغه هم دعربو دفتوحاتو په اثر له منځه لاړ. دلرغوني اویستاییخې لپی بر خی دمحققینو لاس ته ورغلی چه دهغو دلیکلو تاریخ هم ډیر لرغو نی نه دی یعنی په(۱۳-۱۴) میلادی پیړیو کښې نیک شوی دی .(۲)

**د زده کړ ی آثار یخچه:** داویستایي مقدس کتاب په باب معلو مات دلر غو نو یونانیانو، اسوریانو ،ارمنیانو اودعربو په تالیفاتو کښې موجودوو. مګرلوسړی کتیبې

(۱) مقدماتی فیلا لوژی (۹۱-۹۲) مخونه .

(۲) مقد ماتی فیلا لو ژی(۲۴-۲۵ مخو نه )

چه داو یستا بیلی بیلی ټوټې پکښې لیکل شوې وې هغه یو ازې په (۱۷-۱۸) میلا دی پېړ یو کې پو ها نو ته څر ګند ې شوې .
مګر په هغو پوهان لانه پوهیدل. داتلسمی میلادي په دوهمه نیمایی کښې یو زلمی فرانسوی انکیتل د و پیرو ن (۱) هند ته مسا فرت و کړا و هلته یې د اویستا په څیړنه پیل و کړ.ده په هند کښې دزردشتي پیروانوسره نژدې او هلته یې دمقدسو متنونو(چه په اکسفو رد کښې ورسره اشناشوی و )دلوستلو راز کشف کړ او دغه متنو نه یې بیا په پاریس کښې په( ۱۷۷۱ )کال کښې چاپ کړ ل چه له دغې وروسته ورته دلوید یځوا وختیځو محققینو پاملرنه اوښتې ده.
څه رنګه چه دغه فرانسوی عا لم دژبپوهنې ضروری معلومات نه لرل. البته کاریې بشپړ نه و، له دغه خپله داو یستامتن اوپه منځنۍ پارسی دهغه ترجمه اوتفسیر (زند) هم ګډوډ شوي وو.
ددغه فرانسوی له خوا چه کله د او یستا متنو نه او تحلیل خپور شو-زیات شمیر پوهانو دمتنونو د اصالت او دتحلیل په سمو ن کښې شك دراود. کله چه تقریباً نیمه پېړۍ وروسته دسانسکریت پوهنې په ساحه کښې بر یالیتوبونه د پوهانو په برخه شول او داینډ واروپایی ژبو دمقایسوي تاریخي ګرامر ارخونه څر ګند شول د اویستاد متنونو په اصالت عقیده حاصله شوه.
دمقایسوی تاریخی ژبپوهنې بوه وسس دنه ر کی راسموس کریستیان رسك داویستا لرغونتیا اود سانسکریت سره دهغې خپلوی ثابته کړه (۲).
له دې وروسته نورو پوهانو دا ژبه ښه وڅېړ له لکه (ف. بوپ، راسك بورنوف) اونور.

1—Anquetel du perron (1731-1805).

۲-ایرانی مقدماتی فیلالوژي(۶۸-۷۷)مخونه.

د ۹ ۱ پیړی په منځکی داویستا په باب دوه ډلی منځ ته راځی:

۱ .-دشپیګل اویوستی ډله چه اویستا په عنعنوی ډول د منځنی پارسی او زردشتی ادب په رڼا کی څیړي .

۲ .-دوهمه ډله د(ر.روت) او نورو ده. دوی د تاریخی مقایسوي اساس او د ژبپوهنی د نورو اصولو په رڼا کی د اویستاخیړنه کوی او خصوصاًدلرغونی هندی کتیبودحقایقو سره دهغی مقا یسه کوي .

د ۹ ۱ پیړی په آخر کښی د او یستا په تکسو نو باندې په کار کولو کی د دوا ړو خوا وبرياليتو بونه ولیدل شول .د دوی په لړ کی د ګیلد نـیر، دارمستتر او ځینونو رونوسو نه د یاد ولو وړ دي .

په شلمه پیړی کښی د او یستا زده کړی ته دوام ورکول کیږی او په ډول ډول پرابلمونو یی کار کیږي چه د هغوی په جمله کی په جر منی کی ریخلت او نور، په فر انسه کی بېنوینیست او نور ، په انګلستان کی هینینګ ا ونو ر ، په سکاندو نیاویی هیوادو کی مارګنستیرین ، په شوروی اتحاد کی فریمن اوداسی نورپوهان په نورو هیوادو کی په او یستا کار کوي .

او یستاځرنګه چه اوس ژوندی ژبه نه ده، دهغی دوا قعی فونیتیکی او غږونو پیژندل البته اسان نه دي، بلکی دهغوي مبدأ یوازې الفباء او د کتیبو دژبو سره مقایسه ده .

منځنی فارسیك الفباء چه د(آرامی)الفباء په اسا س بناوه خا صیت یی داؤ چه ډیرلږ غږونه یی لرل: که له هغو معجمو(ټکی لرونکو) تورو تیر شو چه په اختیاري ډول استعمالیدل کتابی پهلوی الفباء چه ترمونږه را رسیدلې ده، یوازې(۱۶) توری یی لرل.

د او یستالیك چه د پهلوی په اساس جوړ شوی دغږیزود پاره یې(۱۴)او د بې غږو او نیم غږو دپاره یی(۳۵)توري لرل .

دلته پهلومړی تابلو کښی هغه الفباء چه اویستاپری لیکل شوې او په دوهمه تا بلو کښی دهغی ترانسکرپسیون چه په بین المللی صورت ورته غوره شوې وړاندې کیږي :

Таблица 1

Авестийский алфавит

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1. | 2. | 3. | 4. | 5. | 6. |
| 7. | 8. | 9. | 10. | 11. | 12. |
| 13. | 14. | 15. | 16. | 17. | 18. |
| 19. | 20. | 21. | 22. | 23. | 24. |
| 25. | 26. | 27. | 28. | 29. | 30. |
| 31. | 32. | 33. | 34. | 35. | 36. |
| 37. | 38. | 39. | 40. | 41. | 42. |
| 43. | 44. | 45. | 46. | 47. | 48. |

غربیز توری دتابلو په ترتیب په لاندې ډول دی :

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1. a | 2. ā | 3. ɩ | 4. ē | 5. ə | 6. ə |
| 7. o | 8. ō | 9. ā̊ | 10. ą | 11. i | 12. ī |
| 13. u | 14. ū | 15. k | 16. x | 17. g | 18. γ̇ |
| 19. č | 20. ǰ | 21. t | 22. ϑ | 23. d | 24. δ |
| 25. t̰ | 26. p | 27. f | 28. b | 29. w | 30 ṇ |
| 31. ŋ | 32. ŋ́ | 33. m | 34. n,m | 35. y | 36. y |
| 37. v | 38. v | 39. r | 40. s | 41. z | 42. š |
| 43. š | 44. š | 45. ž | 46. h | 47. ḣ | 48. x̌ |

| پښتو | | اویستا |
|---|---|---|
| اته(عدد) | Ashta | ۱-زور( a )= |
| واوره | وافره | ۲-الف( A ) |
| گیډه | گیثه (Gqitha) | ۳-مجهوله او ږده ي |
| (د مو نث عدد) | د وی duya | ۴ - مجهوله لنډه ( ې) (د وی) |
| جلی(جنی ،نجلی) | جنی | ۵- لنډ زور کی( ه ) |
| زه( سفردمتکلمفاعلیضمیر) | azem ازم | ٦ -اوږد زو رکی( ه ) |
| | | ۷- مجهو ل لنډ کی و ( O ) اوجو( لوسړی و او) زور، قوت |
| سکمل(اورانول ) | Skəndo سکندو | ۸- مجهول او ږد( O ) |
| | | ۹- شو نډ یز( ا لف) |
| | | ۱۰ - غنه یی الف |
| ژ وند | جیو | ۱۱- اوږده معروفه( ږ -ی) |

| | | |
|---|---|---|
| | اوستا | پښتو |
| ۱۲-لنډه کې معروفه( ی) | اوپری | پر(خدمتی کلمه ئکه پرمیز) |
| ۱۳-لنډه کې معروف(u - و) بانو Banu(رنا )دبلول، له ریښې نه | | |
| ۱۴ - اوږد معروف(u - و) | پوس | پسه |

**لنډه مقایسه :**

داویستا د کلمودهغه (الف - په مقابل کښې چه دتاً نیث له) پاره نه وی او د کلمې په آخر کښې راشی د پښتو زور کی وجود لری لکه:

| اویستا | زړه هندی | لاتینی | یونانی | |
|---|---|---|---|---|
| اشته Ashta | استه asta | اکتو oxto | اوختو octo | اته(اسم عدد) پښتو |
| زرده zərda | هرده hərda | کوردیس cordis | | زړه (قلب) |

کله د او یستا دلنډ (الف-) په مقابل کښې پښتو مجهو له (ې) لری:

| اویستا | زړه هندی | لاتینی | پښتو |
|---|---|---|---|
| وزیتی vazaiti | وهتی vahati | ویهیت vehit | ویسی(یوسی)(۱). |

کله کله دا ویستا دلنډ الف په مقابل کښې پښتوزور کی لری :

| او یستا | زړه هند ی | یونانی | لا تینی | پښتو |
|---|---|---|---|---|
| اوپری upari | اوپری upari | اوپیر uper | سوپیر و س snɹədns | پر |

او کله بالعکس یعنی د پښتو دلنډ(الف-)(زور) په مقابل کښې او یستا زور کی لری لکه:

---

(۱) په دې فعل کښې داویستاد (ز) دغږ په مقابل کښې د پښتو(س) غږ موجود دی . په پامیری ژبو کښې دافعل د پښتو په شان د(س) په غږ استعمالیږی.

| ا ویستا | زره هند ي | پښتو | فارسی |
|---|---|---|---|
| برزنت bərəJant | برهنت Brhant | بر | بلند |

**بی غږه توری:**

بی غږه-۳۵ توری دتابلوپه ترتیب:

| توری | په اویستا کښی | په پښتو کښی |
|---|---|---|
| ك ( k ) | کنه kana | کنل |
| خ-( x ) | خشوست | (خوشت لوند-مایع) |
| گ-( g ) | گریوه | گروه (گریوان) |
| غ-( hg ) | گري ( ۱ ) | غر |
| چ-ch | چتور Chator | څلور |
| ج- j | جفر | ژ و ر ( ز و ر- جو ر) |
| ت- ti | تنه tana | تن ،تنه |
| ث- th | ثرایه thrayah | دری(ا سم عد د) |
| د-d | دوه dva | دوه(اسم عدد ) |

ذ(د کلمی په منځ کښی (dh) پوخذه puxdha پنځم تر تیبی (اسم‌عد د)

---

(۱)دلته‌د (ایره ) کلمه‌د زردشت دمذهبی‌اصولو په‌اساس‌داحترام په توگه دقام لپاره ښائی نوم گرځیدلی وی .

۲-اعتذار - څرنګه چه زمونږ په مطبعه کښی داویستاله پاره دبین‌المللی -ترا نسکر یپسیون له پاره توری نشته زه دځینو غږونو له پاره دلا تینی په ا لفبا دانگلیسي په فورم کار اخلم .

(ت)داد ( ت ) فریکاتیف ور یا نت ( ډول ) د ی چه په غږ کښې (ث) او ( ذ ) ته نژ دې د ی .

| | | | |
|---|---|---|---|
| پ (p) | پس — pas | | پسه |
| ف — (F) | وافراه | | واوره |
| اودانګلیسی (w) | ګریو Garew | | نیو ل |
| ب — b | بغه | Bagha (۱) | خدای |
| ن — n | نافیه | nafya | ناوې،خپلوان |

( ګ ) داد ا ګ یو وریانت ( ډول ) دی چه مخرج یی غنه او سخت اد ا کیږي .

ګ — داهم د (ګ ) یو وریانت دی چه مخرج یی غنه یي اونرم ادا کیږي .

| | | | |
|---|---|---|---|
| م — m | مرغه | mərəgha | مرغه ( الوتو نکی ) |

---

۱ — په آر یایی ژبو کښې هغه کلمې چې ریښه یې لوړی د (ب)اوبیاد ( خ ) یا ( غ ) یا ( ګ ) له غږه مر کب وي معنا یې یاسعادت او نیکمرغی ده لکه بخت، باغ ، بګی، بګوان داویستا بغه ( خدای دسلاویاني ژبو بو ګ ـ Bog ( خدای ) بګاتی ( بډا ی ) او یا یې معنا د خوف اوډارده لکه همدغه داویستا ( بغه ) دسلا ویا نی ژبو ( بو ګ ـ Bog )او دپښتو (بګوه)دغه مطلب دروسی ژبی په ایتما لو ژ یك قا موس دسکو دپو هنتون ( ۱۹٦۵ ) په خپرو نه کښې لید لای شيء.

( ن م ) دخینو علا مو دبدلو ن له پاره :

ي — y ( لو یه (ي ) د کلمی په سر کښی )لکه ( yazataایزد)

ی — y وړه(ی) د کلمی په منځ کښی لکه (مشیه- mashya ( انسا ن ) مځ .

و — v (لوی( و )د کلمی په سر کښی)وره- varaوریدل،وربشت

و ( v ) (وړوکی ( و ) د کلمی په منځ کښی ) - tuvam ته (مخاطب مفرد).

| پښتو | | | اویستا | |
|---|---|---|---|---|
| روځ ،ورځ | Rochah | روچه | r | ر - |
| سپی | span | سپین | s | س — |
| زړه ( قلب) | Zrədəh | زرده | z | ز — |

ب - په تابلو کښی د ( ش ) (۳۲) (۳۳) او ( ۳۴ )توري په یوه‌لرغونی وخت کښی دخپل ایتما لو ژ یك اساس له مخی سره بیلیدل،مګر د لیك په عنعنه کښی یی دا امتیاز له لاسه و ر کړی ؤ .

امکان لري دپښتو د ( ش ) د ( ښ ) او ( خ ) په شان په و و ( مبحث یی ددي مقالی د همدي بر خی په پای کښی را ځی ) .

| پښتو | | او یستا | | |
|---|---|---|---|---|
| رنګون | zhnu | ژ نو | zh | ژ - |
| وچ | huc h- | هو چ | h | ه - |

ه ( دتا بلو ۳۷ توري ) د ( o ) نرم وريانت ( ډول دی ).

| | | |
|---|---|---|
| خو - xv | خوفنه - xvafna | خوب |

**لنډه فو نيتيکې مقا يسه :**

داو يستا د ( خش ) په مقابل کښې کله يوازې د ( خ ) غږ وجو د لري لکه : خشوست ( او يستا ) - خو شت ( پښتو ) او کله يوازی د( ش )غږلکه خشين ( ا و يستا ) - شپه ( پښتو ) يا لکه خشو يپته ( ا و يستا ) - شو د ه ( پښتو ) ( ۱ ) .

داويستا دف دغږ په مقابل کې پښتو دواوغږ لري:

| اويستا | پښتو |
|---|---|
| وافره | واوره |
| جفر | ژور |
| نا فيه | ناوې |
| تاف | تاو ( حرا رت ) |

داويستاد ( چ ) دغږ په مقا بل کښې په پښتو کښې د ( څ ) غږ لکه : پنچه ( او يستا ) پنځه ( پښتو ) رو چه ( او يستا ) ورځ ( پښتو ) اوکله د( چ ) غږ مقابل وي لکه هوچ ( او يستا ) و چ ( پښتو ) داو يستاد(ث) دغږپه مقابل کښې په پښتو کښې کله د ( ډ ) غږ مقا بله خو ري لکه :

---

۱ - په پاميږي اکثر وژبو کښې دا کلمه د ( شود ) په شکل اوپه تاليشي ژ به کښې د ( خښت ) په شکل موجودده .

| پښتو | | او یستا |
|---|---|---|
| ګیډه (۱) | gaitha — | ګیڎه ـ |
| هډه (۲) | hatha | هثه ـ |

او کله د ( د ) غږ سره مقابله خوري لکه :

| پښتو | | اویستا |
|---|---|---|
| ښوونه | shyauthna | شیو ثنه |

او کله یی هیڅ په مقابل کښې نه وي لکه :

| فارسی | پښتو | | اویستا |
|---|---|---|---|
| میهن | هستو ګنځی، مینه | maithna | میثنه |

۱ـ داو یستا ( ګیثه ) دشته وا لی او هستی معنا ورکوي، د ې کلمی په پښتو کښې د ( ګیډه ) او په فا رسی کښې د ( ګیتی ) په شکل ځان ساتلی دی.

۲ ـ داو یستا ( هثه ) په زړه هندي کښې د ( سد ه —sadha ) او کله ( سهه —saha ) ) په شکل مو جود ده . معنا یی اصل اسا س او حقیقت د ی دا کلمه په پښتو کښې هم د زړې هندی لهجه ( سده ) دخاصواسمو نوپه حیث مو جو ده ده او هم داو یستا په لهجه د پښتو په لاندې کلمو کښې دغه ریښه او معنا لیدل کیږ ي چه داصل اساس او حقیقت معنا لري . هډه ( دا نګلیسی ـ headسر او راس) بنا یی له دغی ریښې وي ، هډي ، هډې، هډ دیره ( هدیره ) هډوکی هډو ( دپښتو نستان په لهجه د ( اصلاً ) په معنا ) .

دمانې کلمه هم ښايي له دغې ريښې جوړه وي .

داو يستاد ( ثر—thr) په مقابل کښې په پښتو کښې کله(د—ر— r— d)
او کله يوازې د ( ر ) غږ وجود لري مګر په فارسي کښې د ( س ) غږ مثلاً:

| اويستا | زړه‌هندي | پښتو | فارسي | زړ مسلاويانې |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ثري | تري | درې | سه | تري |

**دوهم مثال:**

| اويستا | زړه‌فارسي | پښتو | فارسي |
| --- | --- | --- | --- |
| پوثره | پوچه | بور (لکه تر بور )او بوره) | پسر |

داويستاد ( و — او ( او — ) دغږونو په‌مقابل کښې په پښتو کښې د(غ)
او په فارسي کښې د ( ګ ) غږونه کله کله ليدل کيږي :

| اويستا | | پښتو | فارسي |
| --- | --- | --- | --- |
| اوش | ush | غوږ | ګوش |
| وره | vara | غوره | |
| ويل | vil | ګل ( جنډ ی ) | ګل |

مګر کله داو يستاد ( و — v) دغږ په مقابل کښې په پښتو هم د ( و )
غږ لري، مګر په فارسي کې يې په مقابل کښې د (ګ —g) غږ مقابله
خوري لکه :

| اويستا | | لاتيني | | پښتو | فارسي |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ولک — | vk | وکس | vox | ويل | ګفتن |

مگر په اکثرو صورتو کښې پښتوداو یستا په شان دځینو دیرو کلمو په سر کښې د ( و ) غږ ساتلی چه په فارسی کښې یې په مقابل کښې د ( ب ) غږ موجود دی لکه :

| او یستا | پښتو | فارسی |
| --- | --- | --- |
| و ره - wara | وریدل( ورښت ) | باریدن( بارش ) |
| وافره | واوره | برف |
| وایتی | و له | بید |
| وره شه (ځنګل) | ورشو - واښه | بیشه ( ۱ ) |
| و ا ین — wain | وینل ( لیدل ) | بیند |
| وا نګ | وو نګ(دخره وونګ ) | بانګ |

داو یستاد ( ز ) دغږ په مقابل کښې په هغو کلمو کښې چه په معاصره فارسی کښې یې د ( د ) غږ موجود دی پښتو هم داویستا په شان دغه لرغونی د( ز ) غږ ساتی.

| او یستا | زړه هندي | پښتو | فارسی | سلاو یانی |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| ازم | اهم | زه | من | آز |

---

۱ - دا کلمه په زړه هندي کښې ده(ور کشه vrksha) د( ونی)په معنااو په منځنی فارسی کښې دویشك - veshakپه تالیشی ژبه کښې د (ویشه — vesha) په شکل موجود ده .

| | | | |
|---|---|---|---|
| زمستر | داماد | زوم | زبات |
| زنتی | دانستن | پی زندل ( پیژندل ) | زنت(۱) |

داو یستاد ( ج ) دغږ په مقابل کښې پښتو کله د ( ج ) غږ مګر فارسی د ( ز ) غږ لري :

| | | | |
|---|---|---|---|
| او یستا | پښتو | فارسی | سلاویانی |
| جنسی | جلی(نجلی) | زن | ژینه- zhena |

او کله یې په مقابل کښې د ( ژ ) په ځینو لهجو کښې د ( ج ،ز )لکه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| او یستا | پښتو | فارسی | سلاویانی |
| جیو | ژوند | زیستن | ژیزن |
| جفر | ژور | | |

دپښتو په ډیرو کلمو کښې چه زور کې لیدل کیږي هغه په اویستا کې هم موجود ېږي . دلته یې مونږ د ( زړه ) کلمه مثال راوړو او ځه ر نګه چه دا کلمه په ډیر واندو یورو پی ژبو کښې یوه ریښه لري دلته یې په ځو ژ بو کښې دمقایسې په ډول وړاندی کوو :

---

۱ ـ د ( پیژ ند ل ) د کلمې تحلیل به وروسته را شي .

| پښتو | اویستا | لاتین | شوغنانی |
|---|---|---|---|
| زړه (۱) | زرده Zərəda | کور دیس ـ cordis | زورد ـ zord |
| روسي | چیشي | مجارستاني | سلوواکي |
| سیرد ـ څه | سرد ـ څه | سریو | سر ـ دڅه |
| بلغاري | پیر به خرواتي | البانی | پولنډي |
| سیرڅه | سرڅه | زمر ـ zemer | سیرـڅه |
| زره هندي | | انګلیسی | جرمني |
| هرده ـ hrda | | هرت heart | هیرز ـ herz |

داویستا د ( د ) دغږ په مقابل ګښې ګله ګله په پښتو ګښې د ( ل ) غږ او زیدل ګیږي :

| اویستا | زره هندي | پښتو |
|---|---|---|
| دسه dasa | دچه daca | لس |
| کده kada | کده kada | کله |
| یده yada | یده yada | هله، هاله (ظرف) |

د اویستا (ک)د غږ په مقابل ګښې په پښتو ګښې د(غ) غږ ګله ګله مقابله ځوري:

---

۱ ـ ( زړی) هم بنایي له دغی ریښی نه وي ،له دغی مقایسی معلومیږي چه د ( زړه ) کلمه په اندوریو روپي ژبو ګښې د ( زړ )،( ز رد) یا(سرد ) ( س، ر)اود( ه، ر )ریښی لري، دفارسي( ګرده ) هم غالباً له دغی ریښی ده .

| | | |
|---|---|---|
| ا و یستا | زړه هند ي | سلا ویا نی پښتو |
| ګري gara. | ګیري—giri | ګرمـ gari غـر |

**پښتو دوصل دکړی په حیث :**

د تایخ په استناد دآریایی قبایلومهاجرتونه دمعاصرافغانستان دباختر(بلخ)له خواوشانه د ختیځ اولویدیځ خواته شوی په دغه نسبت پښتودلرغونوهند یك اوفارسیك ژبودوصل دکړی په حیث پاتی شو ي، کله کله دتولو خصو صیتو نه په ځان کښې ساتی او کله د ختیځواو کله دلویدیځوچه دلته یی مثالونه ښودل کیږي. مثلاً داینډوآریایی(هنداوفارسیك) لرغونو ژ بو تر منځه د(س )او(ه) دغږ ونو ترمنځه اوښتنه یومشهورحقیقت دی.

دلرغونو فارسیك ژبو د (ه) دغږ په مقابل کښې په لرغو نو هند یك ژبو کښې د( س ) غږموجود دی . پښتو دوصل دکړی په حیث دغه دواړه غږونه په ځا ن کښې ژوندي ساتلی دي.

| | | |
|---|---|---|
| اویستا | زړ ه هندي | د پښتو |
| هو ه hva | سوه sva | هو یه ، هکی ـ سا |
| هذه | سده | هله ، هلې ـ سد ه |

ها (په غیرمستقیمو حالتو نو کښې )سه، سوها ـس (په سر کال کښې) لومړ ی جزءد(اشارې )دپاره

کله دهند یك ژبوفو نیتیکی خصوصیت په ځان کښې ساتی :

| | | |
|---|---|---|
| اویستا | زړه هند ي | پښتو |
| هخه ، | سکهه | سکه (لکه ـ سکه ورور) |

| | | |
|---|---|---|
| سچند ه | سکنده | سکنهل (۱) |
| بسته | بلهه | بله (د پرتاکه بله) |

او کله داویستا فونیتیکی خصوصیت د ( ز ـ س ) او ( ه ) په باب په ځان کښی ساتی:

| او یستا | زړه هندي | پښتو |
|---|---|---|
| وزیتی | وهیتی | ویسل، بوزل ( ویسه، بوزه) |
| ازم | اهم | زه (سفر دستکلم ) |
| زرده | هرده | زړه (قلب) |

او کله بالعکس یعنی داویستاد ( ه ) غږ د هندی د ( س ) د غږ په مقابل کښی ساتی لکه:

| اویستا | زړه هندي | پښتو |
|---|---|---|
| هوما | سوما | هومه ، اومه (دیوتی نوم دی ) |
| هچتی | سچتی | هخه کول ( تالاش کول ) |
| هم | سم | هم (دعطف آد ات لکه محمود هم راغی) |
| همو | سو | هو |

د پښتو ( هو) (د ایجابت د کلمی ) په باب با ید وو یل شی چه په لر غونو آریایی ژبو کښی دوه مقابل پریفکسو نه ( سختا ړی ) لیدل کیږی.

---

۱ ـ له دغی ریښی د جوړوشویو کلمو معنی په دریواړو ژبو کښی ( ماتول او خرابول ) ده .( سکنهل ) مثلاً د کالیو دجوړولو په غرض د ټوکر سکنهل، ورانول، سکنیه هم له دغی ریښی څخه ده او هغې الی ته وایي چه دیوال پرې سوری کوي .

۱ - د( دوش ) پریفکس چه د(بد، نامقبول اوسنفی)معناور کوي. د اپریفکس په اویستا کښې ( دوش) په زړ هندي کښې (دوس ـ dus) اوپه یو نانی کښې (دو ـ duo ) د ی .

د پښتو ( دښن ) یا( دښمن ) دفارسی ( دشنام ) داویسـ ا ( دوشتراو ه ) یعنی ( ددښمنی خبر ه ) دد غه پریفکس په سرسته جوړې شوې کلمې د ي .

۲ - د ( دوش) متقابل د(هو)پریفکس د ی چه معنا یې( ښه ،مقبول،مثبت)ده په لرغونوفارسیك ژبو کښې د( هو ــ hu) په زړه هندي کښې د(سو ـsu) اوپه یو نانی کښې د ایو ــ co په شکل وجودلري . غالباً د هو ما سوما، هوسید ل ـ هوساو داسې نورې کلمې ددغه پر یفکس پرمرسته جو ړې شوې دي چه د ښه و الی ا و ثبوت معناور کوي. د پښتو هو! همدغه دثبوت معناور کوي .

## په اویستا کښې د( خ )او(ش)دوه لهجې :

داویستا په ځینو کلمو کښې دوه ( کله خ او کله ش) لهجې لیدل کیږي مثلاً : هخه haxa او هشه hasha) په دوه لهجو یوه کلمه دملګری او اوسکه په معنا ده .

ددې کلمې په مقابل کښې دآریایي ژبود(س)او(ه) دمشهوز تبدیل سره سم په زړه هندی کښې د( سکهه ــ sakha) کلمه موجوده ده .

داویستادغه د( خ) او(ش)دوه لهجې په کندهاري اوننګرهاری لهجو پښتو د (ښ) دغږ په شا ن د ی :

د پښتو د( ښ) غږ که څه هم دعربی الفباء د(ش) او( خ ) ترمنځه دمخرج په لحاظ یودریم غږدی، مگر د کندهار په لهجه د( ش ) اودننگرهارپه لهجه د(خ) غږته مایل دی .

د«ش» او«خ » ترمنځه همداد(ښ) غږ په ځینو معاصرو آریایی ژبو مثلاً پامیري (رو شانی ،شو غنانی او اشکا شمی)ژبو کښی موجوددی .

دمثال په ډول : په شوغنانی ژبه کښی مونږ دري ډوله غږونه موو ..

۱ — دعربی الفباء د «خ» غږ چه مخرج یی وړه ژبگی اودتا لووروستی برخه ده لکه د (خیغ =خوږ) په کلمه کښی .

۲ —دعربی الفباء د«ش» غږ چه مخو یی سرا ودتالولوړی برخه ده لکه(روشت= سوررنگی)په کلمه کښی .

۳- د پښتو د «ښ» غږ چه مخرج یی دژبی منځ دتالوپه امتداد لکه: د(ووښ= واښه) او(واښ،واښی )په کلمو کښی .

په دې باب باید زیاته شی چه د «ش» او « خ» دغږونو همدا رنگه د«ګ» او«ژ» دغږونو یو تربله اوښتنه په نورو ژبو مثلاً په لرغونی سلا ویانی اولرغونی روسی ژبو کښی دخاصو گراسري اونورو شرایطو په صورت کښی عام اوسروج ووچه دهغو اثرونه په معاصر وسلاویا نی ژبو کښی لااوس ژوندی دی مثلاً شو شیت سوخیت (وچول ) سلیشت — سلیخت « اوریدل»اوشی «غوز ونه »-اوخه «غوز»

دانهو یورو پې ژبوتر منځه هم د(خ) او(ش) دغږ ونوبدلون لیدل کیږی ، مثلاً :
داویستااولرغونی یونانیترمنځ پهلاندې مقایسه کښې :

| اویستا | زړه هندی | لاتینی | زړه یونانی | پښتو |
| --- | --- | --- | --- | --- |
| اشته | استه | اکتو | اوختو | اته |

## مورفولوجی :

اسم :
پهاویستاکنیدلفظیعلامووبهاساس اسم کیدای شیچه په راتلونکودوولوویشل شی:
۱ـاسم ذات اواسم صفت ـ۲ـ ضمیر ، پرتهلهشخصی ضمایرو ۳ـشخصی ضمایر
۴ ـ اسمعدد .

## اسمذات او صفت :

اسم ذات اوصفت دتصریف پهاساس کوم توپیر نهلري .صفت پهخپل منځکښې
د جنس پهبیلو بیلو فورمو او دمقایسې پهدرجه سره بیلیږي .

## لفظی او ښځینې :

داویستا په اسم ذات اوصفت کښې پهراتلونکیدول لفظی اوښځینی لیدل کیږي.
د ریښیدجهز یه غږونوترمنځه بدلون مثلاً :
پدـپا د « پښه » دالفاو زور ترمنځه بد لون
(برزـ bərz برز barz) (بریالی ، (بر )دزورکی او زور ترمنځهبدلون

په ځینو کښې داډول بدلون نه راځي مثلاً :

| اویستا | زره هندي | پښتو |
| --- | --- | --- |
| خشپ | کشپ | شپه |
| زرده | هرده | زړه |

## داسم عام سوفیکسونه :

| اویستا | پښتو | زره هندي |
| --- | --- | --- |
| زور ـ A : پده ـ | Padaد پښې پل ( د «ل» او «د» په بدلون | پده |
| ي ـ i : ګري | غر ـ | ګیري |
| او ـu : تنو | تن | تنو |

## دمنځنی جنس داسم سوفیکسونه :

آس ـ As روچس Rauchas رڼا د ( روچه ـ Rauchah)

له کلمې نه چه معنایې ( ورځ ) ده .

ایش ـ Ish ( سناثلیش ( وسله ) دسناثه ( ضربه ) له کلمې ځخه .

من ـ Man لکه : د ( دا + من ) ( ژوندی ، مخلوق ) په کلمه کښې .

نه ـ Naلکه : د ( یاس + نه ) ( نمانځنه ) په کلمه کښې .

تره ـ Tra ( وس + تره ) ( وستره ) ( بستره ، پوښاك )

## دمذکر او منځنی جنس دعامیلنو او دصفت سوفیکسونه :

تر : دا ـ تر ( خالق پیدا کوونکی )

وان ( اون ـ Un ) رتا + وان ( ( زاهد ، متقی )

که ـ ka هوش + که ( وچ ، وچه )

یه ـ Ya کیث + یه ( دنیایی )

ره ـ Ra سوخ ـ ره ( سور )

ات ، نت ، انت : برزنت ( لوړ ، هسك )

وت ـ Vat ونت ـ امت ـ ونت Vant ( بدنی )

منت ـ Mant : خراتومنت ( هوښیار ـ دفارسی خردمند )

**دمؤنث داسم عام سوفیکسونه :**

تی ـ Ti ، تی ـ : رتي ( انعام ، پاداش ـ اجرور کول )

تات ـ Tat اسرتات ( بی‌سرگی ، نه سړینه )

په اویستا کی د ( الف ـ A ) سوفیکس په قیاسی ډول دهغو حقیقی مؤنثو کلمو دجوړولو له پاره استخدامیده چه په خپل مقابل کښی یی مذکر یا منځنی جنس درلود اوپه ( زور ـ a ) ختمیده لکه : اسپه ( آس ) او اسپا ( اسپه ) .

په صفت کی دمؤنثو صیغوله پاره ( که مذکریی هر ډول سوفیکس ولري ) د ( الف ـ a سوفیکس قیاسی دی لکه :

| مؤنث | مذکر |
| --- | --- |
| سورا ـ Sura ( غښتلی زوروره ) | سوره ـ Sura ( غښتلی ، زورور ) |
| اکا ـ Aka ( بده ، ناوړه ) | اکه ـ Aka ( بد ، ناوړ ) |

**داسم تصریف :**

او یستالکه نورې لرغونی اندویوروپی ژبی دری جنسه (مذکر، مؤنث اومنځنی)

لري د رې صیغې ( مفرد ' تثنیه او جمع ) او اته حالته لري. اته حالته په لاندې نوسونو یاد یږي چه دمثال سره وړاندې کیږي :

فاعلي حالت : جنیکه Janika نجلکی خچ په سوفیکس .

مفعولي حالت : جنیکم ـ Janikam

اضافي حالت : جنیکس ـ Janikas

مفعول له (dative) حالت : جنیکیات ـ Janikayat

مفعول عنه (Ablative) حالت : جنیکی ـ Janikai

دآلی حالت : جنیکه Janika

ظرفي حالت : جنیکی ـ Janikai

ندایي حالت : جنیکی ـ Janikai

**شخصي ضمیرونه :**

په اویستا کښې دمفرد متکلم فاعلي حالت له پاره د (ازم- Azam) په شکل ضمیر موجود دی چه په زړه فارسي کښې رادم ، زړه هند ی کښې راهم ، په کوردي ژبه کښې ( از ـ AZ) ( دالف په زور کی ) په پامیري ژبو کښې ( از ) په سلاویاني کښې ( از ) اوپه زړه روسي کښې ( یاز ) د ی . د نورو کلمو مثلاً د اشا رې ضمیرونو د هرتصریف اود ژبنی مقایسې نه پوهان داالهام اخلي چه په اویستا کې ددغه ضمیر ریښه ( از) دی او ( م ـ — m)لاحقه ده .

دمفرد مخاطب له پاره په فاعلي حالت کښې(تووم— Tuvam) ، دمتکلم جمع له پاره ( وایم — Vayam) اود جمع مخاطب له پاره ( یوشم— Yusham) دي.

## اسم عدد :

### ۱ ـ مقداری اسم‌عدد :

د اویستا سره د مقایسی په غرض دپښتو ( همدا رنګه د فارسی ) شمیر وړاندې کوو :

| اویستا | پښتو | فارسی |
|---|---|---|
| ایوه | یو ، یوه | یك |
| دوه | دوه ، دوې | دو |
| ثرې | درې | سه |
| چتور | څلور | چهار |
| پنچه | پنځه | پنج |
| خشوش | شپږ | شش |
| هپته | اوه | هفت |
| اشته | اته | هشت |
| نوه ـ Nava | نهه | نو |
| دسه | لس | ده |

دترکیبی اعدادو ترکیب په‌اویستاکې دپښتو په‌شان دی‌چه‌احاد پرعشراتو ترمخه دی لکه ( پنچه ـ چه ـ ویستی = پنځه‌ویشت )

### خدمتی کلمې:

دپښتو او اویستا خدمتی کلمې ډیر سره ورته او په انهو یورو پی ژبو کښې

لرغوني ريښه لري . دلته يې دمقايسې له پاره څوآدات ښودل کيږي :

| او یستا | زړه هندي | یوناني | پښتو | فارسي | مثال |
|---|---|---|---|---|---|
| اوپري ـ Upari | اوپري | اوپیر ـ Uper | پر | بر | (پرهیز) |
| پری Pari | پری | Peri | پېری، پوری‌سره | با | (د چا سره) |
| هده ـ Hada | پیري ـ | Peri | سهمه تر | تا | (تر کوره پوري) |
| هچه ـ Haca | . . | | اه ، د ـ | از ، | (له کوره) |
| اوپه ـ | اوپه | ایپو ـ Epo | په | در، از | (اه، څخه) |
| پتی ـ Pati | پوتی ـ | Poti | په ( ۱ ) | به | (په غره ختل) |
| پره ـ Para | پورس ـ puras | ـ پره Para | ، | پر | پرې |
| ابی ـ Ab | ابهي ـ Abhi | لاتین ( بیس ) | | بیا | باز (بیاراشه، بیاموند) |
| اوته | او | | و | | ( دعطف دپاره)( ۲ ) |

**قيد :**

په‌اويستا کښې ځينې قيدونه د پښتو دقيد ونو سره لفظي شبا هت لري او

---

۱ — دپښتو د ( په ) خدمتي توري په‌سلاوياني اوپاسيري ژبو کښې په همدغه فورم او معنا وجود لري دپښتو ځينې کلمې ددغه ادات په‌سرسته جوړې ښکاري لکه ( پا ـ ښيدل ) ( پې ـ ژندل ) .

۲ ـ دسره کوتل په کتيبه کې دعطف دپاره هم (Uta) کلمه‌ده .

اکثریې دفونیتیکي قانوني تغییر سره سم د پښتو د قید و نو سره تقریباً له یوه اصله اخیستل شوي ښکاري . مثلاً :

د ( د ـ ل ) دمشهور بدلون په رڼا کښې داویستا د قیدونـو اکثر یـت د ( ده ) اود پښتو د ( ـ له ) دسوفیکس په مرسته جوړیږي .

| اویستا | زړه هندي | پښتو | فارسی |
| --- | --- | --- | --- |
| کده ـ Kada: | کده | کله | کی چه وقت |
| ادا ـ Ada | ادا | هله | همان وقت |
| ایدا ـ Ida | ایها | دلی ، دلته | در ین جا |
| اوده ـ Avada | | هلته | درانجا |

دا و یستا بله سلسله قیدو نه د( ـ ذره ) ورو ستاړی په مرسته جو ړ یږي لکه ( هذ ره ) چه معنایې( هملته) د ه . (ذره) په‌قیدو نو کې د ځا ی مکا ن او ظرف معنا و ر کوي ـدار یښه په‌پښتو او حتی‌په‌ځینو نو رو هندیک ـ پار سیک ژ بو مثلاً تا لیشې ژ به کې د(ـ و را ) او (ـ ر ی) په شکل لیدل کیږ ي اود پښتوپه (چیرې،چیرته ـچه +ر) کې هم ژوندی ده ؛

| | پښتو | زره هندي | اوستا |
|---|---|---|---|
| (سوا لیه) | چیړې | کوتره | کوذره — Kudra |
| (چیر ته) نکره | چیرې | یاتره | یذره ـ Yadra |
| | دوړې | اتره | اذره — |
| | هوړې | ساتره | اوذره ـ Avadra |

## د متن ښکاره ندوی :

دغه متن د (هوم یاشته) یوه ټوټه ده چه د اوستا د (یاسنه) یوه ارغونی برخه گڼله کیږي. دامتن د پهلوی د ترجمې او تفسیر سره د کوپنهاگن د پوهنتون په کتابخانه کښې ساتل شوی دی.

دا متن په ۱۳۲۳ عیسوي کال کښې دسهروان او کی خوسرو نوسی نا قلینوله خوا نقل شوی او د اوستا یو مشهور او دنړیوالو داستفادې وړ متن گڼل کیږي، دلته اصل متن، د هغه ترانسکریپسیون، ترجمه او تشریح وړاندې کوو.

لومړی تابلو اصل متن :

دو همه تابلو دمتن ترانسکریپسیون :

ΘRĀ:AH HAΘYAM ṚTAVANAH
ĀFRĪVAČAHĀH ZAVANTI
GĀUŠ-ČA ASPAS-ČA HAUMAS-ČA
GAUŠ ZAUTARAM ZAVATI
UTA BUYĀH AFRAZANTIŠ
UTA DAUŠ-SRAVĀH HAČAMNAH
YAH MĀM HVĀSTAM NA-IT BAXŠAHAI
ĀT MĀM TUVAM FŠAUNAYAHAI
NARYĀH VĀ PUΘRAHYA VĀ
HUVAYĀH VĀ MARŠUYĀH
ASPAH BARTĀRAM ZAVATI
MĀ BUYĀH ARVATĀM YUXTĀ
MĀ ARVATĀM ABIŠASTĀ
MĀ ARVATĀM NIΘAXTĀ
YAH MĀM ZAVAR NA-IT ĪADYAHI
PARUMATI HANĪAMANAI
PARU-NARAYĀH KARŠUYĀH

## ترجمه :

درې هڼه و غوره
ښیرا کوي : غوی، اس
او هوما .غوی کاهن
ته ښیرا کوي:میراث
شي ( له اولاده‌سحر وم
شي ) دناوړ وکلمو
ملګری او سې ، ته
هغه څوک یې چې ما ته
خوږه وښه نه را کوې
او دښځی، زوی‌او د ځان
د کیډې د پاره می
تغذ یه کوې .
اس‌سپاره ته ښیرا کوي :
(بیادې چټك بو ل (اس)
و ملرې ، په چټك بو لو سپو ر سه‌شې،چټك بول دې په لاس در سه‌شه.ته
هغه څوك یې چه له خلکو نه په ډك هیوا د له ما نه د ز ور ښوول‌نه‌غوارې.

## تفصیل :

په متن کی لاندې تشریح شوې کلمې په بیلو بیلو احوالو کی ذکر دې چه دهغې په اثر بیلې بیلې لاحقې لرې . موږ یې د لته له احوالو صرف نظر کوو او د کلمو تشریح یې کوو :

دریه drayah درې (عدد)

هدیم Hadyam هلو،اساسی(دهلې،هلو کی ، هلی هلوله ریښې نه )

رتوانه Rtavanah (رتا ـ Rta) دښه ، غوره ،منظم او خیر په معنا دی

او (ـ وان ـ Van ـ) لکه په (کربوان ،باغوان ) کی سوفیکس دی . د پښتو (ار تینه)یعنی سیرمن ښایی له دغې ریښې وي (که له عربی ـ عوارت) څخه یې وانه خلو )

افری وچه ـ Afrivacha ښیرا کول ـ د کلمې ریښه(فری) په زړه هندی کی (پري) په پښتو کښې (پرې) دي ـ ددې کلمې دو همه برخه ( وچه) په لاتینی کی ( و کس ـ Vox ) په پښتو کښې (ویل )دي. دتولې کلمې (افري و چه ) معنا (پرې و یل ) ده چه تعبیر په ( ښیرا )ورنه شوی دی.

زوانتی Zav—a—nti (بولی) ددې کلمې ریښه ( زو ـ Zva ) په روسی کښې(زوت Zvat او په پښتو کښې کېدای شی)(زو ږ)وی،دلته یې معنا (بلل )ده .

گو ـ Gau غوي

چه ـ cha اتصالی داتحاد عطف د ی

اسپه : اس

هوما ـ Hauma د هومه بوټی . زړه هندی سوما ـ (دآریا یانو په عقیده مقدس بوټی) ریښه یې (هو ـ Hu) ده چه د (د وش) یعنې (بد ، نا وړه) مقابل د( ښه ، مقبول ) په معنادی . دپښتود ا یجاب کلمه (هو ! ) هم له دغه ځا یه ده .

زو تر ـ Zau, tar بلو نکی ، موذن . ریښه یې (زو ـ Zav) د ( بلنې ) په معنا او ( تر ـ Tar) داسم صفت د جوړ و لود پا ره سو فیکس دی.د کلمې معنا (منادي ،موذ ن او بلو نکی )ده.زوتی ـ Zavati (بو لی) د( زو ـ Zav) له ریښې .

او ته uta ـ او (دعطف ادات ) چه د سره کوتل په کښیبه کې هم په دغه ډول او معنی د ی

بو یه ـ Buyah دفارسی د( بو دن )او پښتو د (وول ) کومکی فعل یا د (با ید ه )نه ښیرا ، په صو رت د (بو یه) په شکل مستعمل د ی .

افر زنتي ـ A, fra, zan, ti,(بی‌اولا دي) په دې کلمه کی (آ ـ A) دنفې دپاره (فر ازن ) د فر زند په معنا او (تی ـ ti ) لا حقه ده دټولې کلمې معنا (بی‌اولادی) ده.

دو ش سر او ه daushsravah (ناوړه وینا ، ښکنځله)، (سرا وه)

د کلمی او خبرې پهمعنا او( د وش ـ Daush) په زړه هند ی کښی (دو س ـ Dus) پـه یـونـا نـی کـسی ( د و ـ Duo) د ا یـو مختاړی ( پر یفکس) د ی چهد (بد ) او(ناوړه ) معنا و رکوي .لکهدپښتو په (دښن،د ښمن ) او دفارسی په(دشنام )کی-په مقا بل کی یی د (هو) د (ښهاووړ ) پهمعنا پر یفکس سوجود دی .

هچا منه ـ Haca, Mnah (ملګر ی ، هغه من ) د کلمی ر یښه په اویستا کی (هک ـHk) په زړه هند ی کی ( سچتی ـ Sachate په لاتینی کی (سکو تیو ر ـ Sequitur)ده دسو فیکس په مرسته یی معنا دملګري ړده .

یه ـ yah (یی )نسبتی ضمیر د ی .

مام ـ Mamماته مفرد متکلم ضمیر دمفعول په حالت کی .

نا یت ـ Nait نه ، د نفی ا د ا ت .

هوستم ـ Hvastam ،دخاړو یو خو را که .

بخشهی ـ Baxshahai بخښی ! د (بخښل)له فعلهدمفر د مخاطب دحال صیغه

ا ت ـ at او .دعطف ادات دنوې جملی په پیل کی

توا م ـ Tuvam ـته .دمفرد مخاطب شخصی ضمیر .

فشا ونیاهی Fshaunayahai خړو ل ،مړو ل ، خړبول . د دې کلمی ر یښه ـ پسو ـ pash د پسه او څا روي په معنا، په زړه هندی کی

(پچو Pachu) کنی په لاتیی (پیکوس ـ Pecus) ده. (فشویه ـ Fshuva) له دغی ریښې دي چه د (څر و ل) او (حراست) معناو رکوي. دلږ ي او ښتنی په مرسته د پښتو (شپون) او (شپول) له د غی ر یښی نه په نظر ښکا ري.

نریه ـ Naryah نر ـ مذکر، په زړه هندی کی (نر ـ Nar) مذکر، نره ـ (Nara) مؤنث

و ا ـ (Va ـ یا) دعطف ادات دتر دید دپاره.

(پو ثره ـ Putra) اولاد. په زړه هندی کی پوتره ـ Putra (زوی ـ لور)

هوه ـ Hava خپل. اضافی ضمیر.

مرشویه Marshuyah ـ کیده نس (مرشو) او (مرشوي) دکیدې په معنا د (مړ ښت) (مړ یدل) د کامی سره یی قرا بت لیدل کیږي.

بر ترم ـ Bart aram و ړونکی ـ ریښه یی (بر ـ Bar) د (وړلو) په معنا او (تر ـ Tar) صفتی سوفیکس دی چه د تو لی کلمی معنا (وړونکی) ده.

مه ـ Ma: مه. د نهی آ د ا ت.

اروا تم ـ Arvatam: رسیدل. ریښه یی (ر ـ R) ده د حر کت په معنا.

په زړه فارسی کی (رسه ـ Rasa) په پښتو کی(رسیدل) او په نوې فارسی کی رسیدن‌و رنه جوړ شوی دی.( وات ـ vat )اویا( ونت ـ Vant) دصفت دجوړولولاحقی دي چه په پښتو کی دوهم شکل د (وند ـ wand) لکه(مړ وند ،غړوند +ي ،وندر ) په کلمو کی لیدل کیږي . دکلمی معنا (رسیدو نکی) ده مطلب ورنه (چابك آس) دی .

یوخته ـ Yuxta : مُغا ستل مُغلل. ددې کلمی ریښه(یوغ ـ Yug)ده . داویستا د(ی ـY) په‌مقابل کی چه دکلمی په سر کی‌وي په پښتو کی کله د (چ) او کله د ( ځ ـ ز )غږلیدل کیږي‌لکه داویستا د( یاتو ـ Yatu ـ یوخشته ) په مقابل کښی په‌پښتو کی( جاد و ،جو خت ) کلمی موجود ې دي‌ـ همدا رنګه دفارسی د ( یوغ ) د پښتو د ( مُغ ) غږ ونه مقابله خوري .مګر کله په پښتو کی د ( ي ـ ) غږ پاتی کیږي مګر په فارسی کی په‌(ج ) بدلیږي لکه :

او یستا ) ییش Yaish پښتو )ایشیدل ) فارسی ( جوشیدن) . همدا رنګه زړه فارسی( و و یه ـ uvya ، پښتو ( و ـ یا له ، اوفارسی ، جوي ، ابی سا د تر avi—sab-tar بیا سپیریدونکی.ریښه ( سد ـ Sad) ده چه په پښتو کی (ـ ست ) په ( نا ـ ست ـ ملا ـ ست ـ ) کی داویستا ( د ) په ( ت ) بدلیږي . ( tar ) صفتی لاحقه او ( ابی ـ abi ) د( بیا ) په‌معنا د ي .(نی دنګتر ـ Nidangtarسمول) ددې کلمی ریښه( دنګ lang ) ده چه د سمولو ،اصلاح کولو او نیغولو معنا ور کوي ،د پښتو په ( دنګ ،دنګر

ډا نګک ) کی دا ریښه او معنا لید ل کیږي .

زور - Zavar زور ، قـوت

جا دیه - Jadya - هیله - آرزو ، پو ښتنه کول

پرو - Paru - ډك ، پر یمان

هم جمنه - Ham, Jamana - ټولنه، انجمن. د ( انجمن ) کلمه ژبپوهان دا سی تحلیلوي :

( هم + چم + نه ) یعنی ( هم ) په زړه هندی کی (سم ) د ( یو ځای) په معنا . ( چم ) دچم ګاوندي په معنا او ( نه ) لکه په ( پو هنه، ټولنه ) کی لاحقه . په دې ملحوظ ددې کلمی ټول اجزاء په پښتو کی ژو ندي د ي .

پرونر یه - Parunarya له‌نرانوډ ك.

کرشویه - Karshuyah— هیواد کروند ه‌ریښه یې ( کرشی - Karshi) د ه چه د ( کرلو، کـر ښه و یستلو ) معنا و ر کـو ي ا وپه ز ړه هندی کی د ( کرستی - Krasti) په شکل د ( کر ني ) ا و ( یوې کو لو ) معنا ورکوي چه‌د (ر) په‌حذف د ( کښت او کشـت ) په شکلو نو اوړي ا و بالاخره دپښتواواویستا ددغی ( کرښې ) د کلمی نه د فارسی ( کشو ر جوړیږي . داو ،دپښتو او اویستا ګرامري او فونیتیکی خپلوي .

---

یادو نه : اویښتاپه ګر ا مر ي موأدو کې‌دن .س .سو کو لو فه له تا لیف ( اویستا ژبه )مسکو- ۱۹۶۱ کال خپروني نه‌استفاده شو ې

# اورسړ
# او
# اورسړې ژبه

دافغانستان اوپښتونستان په‌معاصره سیمه کښې چه‌داباسین پورې یې لمنې غزیدلې وې دقبل‌المیلاد ددریمې پېړۍ یونانی جغرافیه پوه ایراتوسفین په خپل وخت کښې‌دراتلونکو توکمو نو د استوګنې داسې یادونه کوي : «دهندوکش په جنوبي لمنوکښې پروپامیسا دیان ، ددوی جنوب ته آراخوزیان ، له هغوی څخه پسې لاجنوب ته (دمعاصر بلوچستان په‌خاوره کښې) ګیدروسیان ژوند کوي چه لمنې یې ترابا سینه (اندوس) پورې رسیدلې دي . د پاروپامیسادسره له لویدیځې خوا دآریا یانوپولې نښتې دي. اود آراخوزیا او ګیدروسیا پورې د درنګیا نا پولې نښتې دي .

په‌دغه هیواد کښې چه په‌ختیځ کښې یې اباسین، په شمال کښې‌یې هندوکش په‌جنوب کښې یې بحرالعراب او په لویدیځ کښې یې میدیا او پارس پراته دي همدغه توکمونه ژوند کوي اود (آریانا) په نامه یادیږي »

دآراخوز ی ، درنګیانې اوګیدروسی د دیالیکتونو (یاژبو) کوم آثار تر اوسه

لاس کښې نشته مګر دمحققینو په عقیده اورمړي او پراچې د همدغو آریایې ژبو له پاتې شونو څخه دي (۱).

دمیلادي لومړیو زرو کلونو پهلومړي نیمایې کښې د هندوکش او سلیمان غرونو ترمنځ‌اورمړي اوپراچې ژبې زیاتې مروجې وې کومې‌چه دمارګینسترین په قول دافغانستان دجنوب ختیځ (کابلستان) دلرغونوژ بوواقعي پاتې شوني‌دي(۲)

دپښتنو یوزیات شمیر قبایل دځینو په‌عقیده داورمړ له‌توکم څخه‌دي (۳).

په‌دې صورت کښې د (اورمړ) مفهوم‌له‌اورمړي ژبې دو بونکوڅخه دیرعام دی. هغه پښتانه قوونه چه ځان په‌ختته اورمړ بولي کیدای شي چه دوختونوپه تیریدو سره یې خپله ژبه اړولې اواوس‌داورمړي په‌ځای په‌ننګه پښتو خبرې کوي. دکانیګرام یوشمیر او رمړو دا کار یقیني کړی دی‌او اوس یې ژبه پښتو ده. دمارګینسترین په‌قول دبوتخاك اورمړو دنولسمې پیړۍ په سر کښې په اورمړي ژبه خبرې کولې. له دغه وخته وروسته یې ورو په ورو ځای پښتو نیو. د پیښور په نوښار کښې ځم‌اورمړو دخپلې ژبې په ځای پښتو منلې ده. همدارنګه دلوګر په‌برکي برك کښې‌چه‌دنولسمې پیړۍ په‌سر کښې تقریباً اتو زرو کورنیو په اورمړي‌خبرې کولې اوس یې ځای پښتونیولې او اورمړي له‌منځه لاړه.

---

۱- د (پاکستان اولسونه) (۵۹-۶۱) مخونه.

۲- مارګینسترن ،اینډو ایرانی ، سرحدي ژبې ، ۳۵مخ .

۳- دپاکستان ملتونه (۱۳۶-۱۳۷) مخونه.

په هرصورت دآریانادایرة المعارف په استناد اورمړ دپښتنو دیوې لویې قبیلې نوم دی چه د کسی دغره په لمنو کښې اوسیدل. ددوی اصلی ټاټوبی همدغه ځای دی. خودزمانی په تیریدو سره ځه یې په لوګر اوځه یې دآزاد پښتونستان دو زیرستان د کانیګرام په سیمو کښې اوسیږي.

دنواسمی پیړی په سر کښې دلوګر د اورمړبو د کورنیو شمر اته زره او په کانیګرام کښې د شلمی پیړی په پیل کښې ددوی د کورنیو شمیر له څلورو نه تر پنځه سوه پورې رسیده. ه.و. بیلیو د افغانستان د اورمړیو د کورنیو شمیر حتی لس زره ښوولی و (۱).

زمونږ ددایرة المعارف په استناد اورمړ دشرخبون په پنځو زامنو کښې کشرزوی دی(۲) اورمړي خپله نسبی سلسله شرخبون بن سړبن بن قیس عبدالرشید ته رسوی.

دخوکنو میاعمرصاحب داورمړ دشلو زامنو نومونه داسی یاد کړی دي:

منګوي، مستوی، منګور، شګوی، زیق، ستوي، جاوپان، دهري، کانی ګرام، حران، کولیخ، حضران، رنوك، دالچا، ملانی، سیدانی خان، دوه ستوی، سین، خلیل، او بو کښې.

ښایی د کانیګرام دغره نوم د همدغه کانیګرام له نامه څخه چه داورمړنیکه نهم زوی دی اخیستل شوی وی.

---

۱- مقدماتی فیلالو ژی (۳۳۹) مخ.

۲- آریانا دایرة المعارف د(اورمړ) کلمه وګوریء.

داورمړ دقبیلې دغه پنځه څانګې په کانیګرام کښې میشته دي .
(۱) خیګنی (۲) خرم جانی (۳) ملاتانی (۴) بیګنی او (۵) حرانی .

داورمړو په باره کښې لومړي یادونه دمغولی بابر په یاد داشتونو کښې ایدل کیږي . دي دپیلوپیلو تپو دنومونو دیادولو په لړ کښې د کابل په ولایت کښې داورمړو یادونه هم کوی . اود (برکی) په نامه یې یادوي ضمناً وایي چه دوی په یوه بله خاصه ژبه خبرې کوي (۱) .

ایلفنستون یکيچه دنولسمې پیړۍ په سر کښې اورمړی هم په لوګر او هم په بوتخاك کښې میشته وو . یوزبات شمیر یېدوزیرستان په کانیګرام کښې اوسی .

داورمړی پخوانی سیمه داوسنی په نسبت ډیره پراخه وه . دغه ژبه ډیروخت دهند وکش په لمنو (د باميانو او غوربند ترمنځه) اودهندوکش په شمال (کندوز) کښې ژووندۍ وه . دیولړ او رمړ یو به روایت دوی دا ند خوی نه څپاره شوي دي . داند خوی په جوب کښې اوس هم یوځای د (برکی) په نامه موجود دی (۲) .

داسې اسناد هم شته چه دمغوله سخی ویل کیږيچه او رمړي دکابل په خوشحالی سیمو کښې هم او سیدل او یو شمیر یې د پیښور په نوښاراو څه یې د پنجاب په بها و لپو ر کښې میشته وو.

---

۱– بابر نامه (۱۵۵) مخ .

۲– د پاکستا ن اولسو نه (۱۳۶ )مخ.

په غالب گومان دغه ټول او رمړي د نوکرد برکی برك نه خپاره شوي دي (۱)

د اورمړيو په باره کښې ختيځ پوهانو ډيرڅه ليکلي دي چه د هغو د اکثرو نظر يا ټولنله يز د جارج مارگين ستر ين د هغه کتاب په مقدمه کښې وړاندې شوي دي چه دا ورمړی او پراچی په باب ليکل‌شوی دی . دکتاب نوم (هند و ايرانی‌سرحدي‌ژبی) دي(۲) د ختيځ پيژند و نکو دنظر ياټوپه‌لړ کښې دا سې‌نظر يې هم شته‌چه دمنلو وړ نه ښکا ري اوخپله‌ښا غلی‌مارگين ستر ين يې ضعف ته گو ته نيسی .مگر لوستو نکو ته د ز يا تومعلو ما تو د و رکو لو په غرض دد غې مقدمې د متن‌دلنله يز تر جمه د لته وړاند ې کوم‌اوهغه‌داده :

۱- د او رمړي يابر کی ژ بې دلو مړ يو معلو ما توپه باب‌، مونږ د بابر د احسان ممنون يو .نو سوړې د پرا چی يا دو نه هم دلو مړي ځل د پاره کړې‌ده ليدن Leyden لو مړی ا ر و پا يی عالم و چه هغه په کا نيگرام کښې‌د( اورمړد Vurmud) دقوم دمو جودیت‌او دبر کی ژ بی‌څخه خبرو .الفنستو ن د کابل د سلطنت په باب دمعلو ما تو په کتاب کښې دا سی‌ليکی :

---

۱- مقد ما تی فيلا لو ژي (۳۳۹)مخ .

۲ – Indo—Iranian Fornt ier languages—Oslo—1929.

دا نګر يزی نه په پښتو ددغه کتاب د مقد مې د تر جمې کو لو له ا مله د دوکتور نور گل حمزا خيل د ز يار او سرستي مننه کوم(ليکو نکی) .

د تاجکانو دویمه برخه بروکیان (Burrukees) دي چه هغوی دلوګر او د بتخاك په یوه سیمه کښې او سیږي، دوی دغلجیا نوسره ګډژوند کوي، دوی له نورو تاجکانو څخه تو پیر لري ځکه چه دوی د خپلو مشرانو په مشری یو قوسمت جوړ کړی او دعسکر و په صفت یې خو رازیات شهرت پیدا کړی دی. دوی خپلې ځانګړې ځمکې او کلا ګانې لري حکومت ته ډیر عسکر ورکوي پښتنو ته په عاداتو کښې ورته او دنورو تاجکانو په نسبت ډیر سپیڅلي او درانه خلك دي.

اوسر دوی شمیرا ته زره کورنیو ته رسیږي. دپولورو ایا تو څخه داسې معلومیږي چه دوی د سلطان محمود په عصر کښې د یو ولسمې پیړی په سر کښې او سنیو سیمو ته راغلي دي . ددو ی اصلی تا تو بی معلوم نه دی. د وی وا ئی چه د عربو څخه را غلی دي لا کن نو ر خلك وائی چه دوی له (کو ر دا نو ) څخه را غلی دي .

بر نس Burrnes وا ئی هغه بر کی یا کا نه ګرامی ژبه چه دلوګرخلك یې وا یی د فا رسی خوا ته میلان لري سره ددې دوی ادعا کوي چه له عربستان څخه را غلی دي او داهم وا یی چه دوی د سلطا ن محمود په ذ ریعه او سنیو سیمو ته را و ستل شوي د ي.

۲- دلیچ -Leech په حواله نوسوری قوم په دوه برخو و یشل شوی دی. یعنې

د(را جا ن) بر کیان چه د لو گر په ولایت کښې او سیږ ي چه د هغو ژ به فا رسی ده. اما برك Barak بر کیان په برکي ژبه گړ یږي چه ددوی د هستو گنې ځای هم د ز و مو ړی سیمی شاو خوا کښې د ی. ددوی یوه بر خه دو زیر ستان په کانیگرام کښې او سیږي او ددې ځای او د برك بر کیا ن په برکی خبر ې کوي.

۳- بیلیو -Bellew دیو ه روا یت په اساس وائی د پښتنو ور کزائی، اپریدې، منگل، وزیر، ختك او خوږ یا نی قو مونه داورمړ وله تو کم څخه دي . وائی چه او ر مړ یا نو د اور پر ستش کا و ه او د مذ هب خصو صی د ود وبه ئې دراودل په هفته کښې یو ځل دوی نر او ښځې د پر ستش دپاره سره را تولیدل ا ود عبادت په اخر کښې د مذهب لارښوونکی او رمړ کاوه او په عین و خت کښې په ئې نا ره وهله (او ر مړ) . اورمړ دپښتو یوه کلمه او او ر مړ یا نو په دا و ر مړ ه کولو د پا ره استعمالو له . (۱)

---

۱-د (او رمړ) د کلمې په باب چه ما پخپله دلوگر دا ورمړ وخینو سپین یږرو څخه پو ښتنه کړ ې ده هغوی ویل چه زمونږ نیکه (میر برك) په پښتنو قبا یلو کښې یو محترم شخصیت و . چیر ته به چه دقو مو نو یا او لسو نو تر منځه دجگړې اوربل شو ، زمو نږد نیکه د منځگړ یتو ب په صورت کښې به هغه مړ کیده ، ځکه به نو پښتنو ز مو ږ نیکه ته (اورمړ) وایه او او لادې هم په دغه نامه یادیږي (لیکونکې) .

دافغانستان دنژاد پیژندنې په باب بیلیو د هرودوتس Herodotus په حواله وائي چه برکي او برکیان دلیبیا څخه د(باختریا) دکندوز کلي ته لیږل شوي دي . هغه ددې نظر یې دحمایې دپاره د(آرین) دیوه نا خرګند عبارت څخه استفاده کوي. دبیلو دیره په زړه پورې خبره دا ده چه وایي :

اورمړي برسیره پر دې چه په کندز اولوګر کښې کورونه لري په بټخاک . دوزیرستان په کانیګرام اودهندوکش دباسیانو اوغوربند په سیمو کښې هم میشته دي . بیلیو زیاتوي چه داورمړ ودقوم څخه برکیان یوه مخصوصه لهجه استعمالوي اودا لهجه داسې ښکاري چه دیوې هندي ژبې څخه به اخیستل شوې وي . دوی ښه لوړ او دیر فعال خلک دي اودرانده صفات لري . دوی دافغانستان په توکم پیژندنې کښې برخه نه لري اوتاجکانو سره یوځای شمیرل کیږي . بیلیو عقیده څرګندوي چه دپښتنو دبارکزائي قبیله دبرکیانو څخه منځ ته راغلې ده .

۴ ـ دمولیفینوله دلې څخه لیچ اوراورټي داورمړو ژبې (دلوګرد یالیکت ) لږ څه لغات ذکر کړي دي لیچ یوڅوجملې دترجمې سره راوړي راورټي اکثره لغات دلیچ څخه اخیستې دي .

۵ ـ داورمړي ژبې لومړی مکمل شکل اوتشریحات(سر جارج ګریرسن )

دبنګال داسیائی‌ټولنی دخاطراتو په کتاب اوورو‌سته‌ئی دهند دلنګو یستقیکی‌سروې په کتاب کښې لیکلی‌دي :

دهغه‌معلومات‌دوزیرستان دکانیګرام‌دډیالیکټ په‌باره کښې دي. دامعلومات اکثر دغلام محمدخان د( قواعدبرګستا) له‌مجموعې اوپه‌وزیرستان کښې‌دبرتانیې دمامورینو له‌خوا لاس ته‌راغلی دي .

دا په‌زړه پورې معلومات دډیرې یادونې وړ دي اوپه‌اورمړي کښې‌دقواعد و مجموعه دسر جارج ګریرسن دخدمت نتیجه‌ده .

٦ – داورمړي ژبی دلوګردډیالیکټ په‌باب زموږ معلومات دلیچ اوراو رټي په‌لړو لغاتو تکیه لري ماپه (۱۹۲۳) کال‌په کابل کښې‌دځینو تم کیدو په‌وخت کښې هغه وکړه چه‌دلوګر داورمړو سره په تماس کښې شم . داګست دمیاشتې په شروع کښې کله چه‌ماغوښته برکی‌برک ته‌لاړشم کابل ته‌خبر راغی چه‌دالړو دوړ او شورش لمن لو ګرته پر اخه شوې‌اودغوست له‌خواشورشیان دالتمور دکوتل څخه اوګرته راننوتل لاکن ددغو مشکلاتو سره دافغانستان خارجه وزا رت یو زوړ سړی دین‌محمد دبرکی‌برک څخه کابل‌ته راووست . هغه‌له‌ماسره دیوې هفتې دپاره کار وکړ لاکن هغه‌ددې سودې څخه زیات دځینو کو رڅخه بهر پا تې کیدای نه‌شو .

۷ ـ دین محمد وویل چه دی د برکی برك د یوځو هغو وګړو له ډلې څخه دي چه په خالصه اورمړي ژبه خبرې کوي او دا خبره زما د لومړیو معلوماتو سره برابره وه .

د هند د لنګویستیکی سروې په حواله اورمړ اولس په کانیګرام کښې د څلورو څخه تر پنځو سوو پورې کورونه اري ( ۱ ) په بتخاك کښې چه د کابل د ختیځ په لس میلی کښې پروت دی څینو خلکو وویل چه دوی د اورمړو د قوم څخه دي لاکن دوی ټولو په پښتو خبرې کولې او هیڅ یو ور کښې په اورمړي ژبه نه پوهیده .

کوم اورمړ چه د پښور د سیمې په (خاصې پرګانې) د نوښار په سیمه کښې اوسیږي ټول پښتو وایی . ما هیڅ وانه وریدل چه ګوندې اورمړ په غوربند ، بامیانو یا کندوز کښې هم اوسیږي او یا هم غیر ممکن بریښی چه دوی به په نوموړو ځایو کښې خپله ژبه ساتلی وي .

۸ ـ د دین محمد له خولې د اورمړي طائفه سیدان دي او د دوه ورونو یعنې میري برك او سړي برکت اولاده ، ده چه هغوی د بریمن (یمن) څخه ترکستان ته راغلي او لومړی ورور په اندخوی او دویم ورور په مزار شریف کښې ښخ د ی .

۹ ـ هغه روایت چه اورمړ کوډیان او الفنستون ذکر کړي دي د هغه روایت سره چه دوی د یمن عرب معرفي کوي سمون نه کوي او بی له لنګویستیکی حقایقو څخه دا کار فیصله کیدای نه شی .

---

۱ ـ په اوسنی وخت کښې د کانیګرام د اورمړو د کورنیو شمیر ( ۵ ـ ۶ ) زروته رسیږي . ( لیکونکی )

داخبره ډیره احتمال لري چه دوزیرستان کانیګرام اورمړ دبرکي بر ك څڅه کوچیدلی وي .

د(برکي) نوم ښکاره کوي چه برك ددوی زوړ یااصلي ټاټوبی و. داهم ممکنه نه برېښي چه اورمړي د(اور عبادت کوونکي وو) داخبره په زړه پورې ده چه اورمړي ژبه یوازېنی معاصره آریایی ژبه ده کوسي چه داور پرستانو دمذهب د ( مطا لعې) او (لوست) تخنیکي اصطلاح ساتلې ده. داورمړ دلغت تحلیل چه د بیلیو له څوا شوی دی تریوې اندازې پورې خیالي برېښي .

۱۰ - داور مړودقوم دتار یخي اشخاصو په لړ کښې یوبایزید انصاري پیرروښان وو . دمخزن الاسلام په حواله ویلی شوچه بایزید د کانیګرام یو اورمړ و . دلیدن په قول هغه په دې متهم وو چه د(چراغ مړه کوونکو ) مذهبي ډله بی منځ ته راوستلی وه. داخبره ممکنه برېښي چه دبایزیدارثي میلان تریوې اندازې پورې په هغومذهبي روایاتو اواعمالو متکي وکوم چه د ده په قوم کښې موجود وو .

۱۱- دوزیر ستان د کانیګرام اود لوګر دبرکي برك اورمړی دوه بیلې بیلې لهجې دي او د کانیګرام لهجه یې عموماً لر غوني بڼه او خصوصیتو نه لري .

دغږ پېژند نې Phonetic له مخې کوم تو پیر چه د د وا ړ و دیا لیکتو نو ترمنځ مو جود دی هغه دادی چه دلو ګر د یا لیکت (sh) سا تلی د ی لکه په shv, shtv xshy, shy لکه لو ګری (غوا ښه ) کا نیګرا مي (غواسه) او بل داچه لو ګری ژ بې (ژ) ساتلې د ه .

په لوګري اورمړي کښې ورځ ته (روژ) او په کانیګرامی ورته ربو زوانی. دنورو ژبو څخه اخیستل شوولغاتو کښې دوار، د یالیکتونه (sh) اری د مثال په ډول: کانیګرامی او ر مړي شامته Shasta او لوګری او رمړی شاسته بو له بله سره نژدې دی او په همدې ډول په دوارو لهجو کښې لاندې (sh) لرونکی توری ګورو:

| کانیګر امی لهجه | | لوګری لهجه | معنی |
|---|---|---|---|
| شیطا ن ـ | shaitan | شیطان | شیطان |
| شور ـ | shor | ښا ر | ښار |
| اوشیار ـ | Hushyar | اوښیار | هوښیار |

ددوارو د یالیکتو تر منځ دلغاتو توپیر دنوروژبو څخه دا خیستلو په نوټه پورې اړه لری. پا سنی لغات دپښتو یا دری څخه اخیستل شوی دی. دکانیګرام ددیالیکت —Z دلوګرپه (g) باندې بدله شودی. کله کله دکانیګرام دش (sh) غږ په (څ) (ch) باندې اوړی.

۱۲ـ دلوګر ددیالیکت سارفولوجیکی سیستم ډیر بسیط شوی دی دد وارو دیالیکتونو جغرافیوی حالت دا ایجابوی چه پولړ تغییرات ورکښې ولیدل شی. کانیګرامی لهجه دیوه نسبتاً قوی اولس له خواچه دوزیرستان په یوه ګوښه غرنی برخه کښې پرته ده ویل کیږی او دپښتو کلتوری او اجتماعی غیرسهمو دیالیکتوله خوا احاطه شوې ده. له بلی خوا دلوګردیالمکت په ډیره چا بکی سره له منځه ځي. دلوګراورمړیان په یوه پراخه دره کښې چه له کابل څخه لرې نه ده اوسیږی.

دوی همیشه دفارسی ویو نکو سره په تماس کښی دی اودځوپېړیو را هیسی ئی په عسکری چاروکښی خدمت کړی دی. داخبره دتعجب وړنه ده چه لوګری لهجی دجنس (تذکیراوتانیث) توپیر له لاسه ورکړیدی اودلسماو ودجمع حالت ورکښی خورا ساده شوی دی . په همدې ډول د غیرو منظمو ماضی افعا لوشمیر ور کښی خو را لږ شوی دی .

دضمایرو سیستم دکانیګرامی اورمړی په نسبت په لوګری لهجه کښی خو را ساده شوی دی .

۱۳ـ دکانیګرام اورمړی دوزیری پښتوڅخه په آزادانه ډول لغات اخیستی دی او دلوګر اورمړی د پښتو او فارسی څخه هم ډیر متا ثره شوې ده ـ یو شمیر اصلی او رمړی لغات دکانیګرام په د یالیکت کښی موجود دی او ممکنه ده چه نوموړی لغات په لوګری لهجه کښی هم ژوندی وو :

مثلاً :

| لوګری اورمړی | | کانیګرامی اورمړی | | |
|---|---|---|---|---|
| کور | kor | هوند | hond | ړوند |
| خیرس | xirs | هینس | hing | ایږه |
| نرم | arm | لورس | nors | نرم |
| نویشته | nawishta | پیس | pis | لیکل |
| این | ain | رو | ro | اوسپنه |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| روبا | roba | رواس (۱) | rawas | ګیدړ |
| خرگوش | xargosh | سیکک | sikak | سوی |
| کایک | kaik | ساک | sak | وریه |
| خالی | xail | توسک | tusk | تش |
| راست | rast | خوارینځ | xwarindz | ښی |
| خاکستر | xakistar | یانک | yanak | ایرې |

۱۴- دلوګرد یا لیکت دهغه وخت څخه چه لیچ په ۱۸۳۸ کال کښې دهغه یوشمیر لغات چاپ کړی وو تغیر کړی نه دی . هغه ډولونه چه دده دلغاتو په ذخیره او جملو کښې لیکل شوی دی او کوم لغات چه راوړتی لیکلی دی دهغو لغاتو سره چه ما اوریدلی دی یو شان برېښي .

۱۵- داورمړی او شمال لویدیځو ایرانی ژبو تر منځ مشابهتونه دپراچی او دشمال لویدیځو ایرانیو ژبو په اندازه نه دی . دا چه اورمړیان دکوردیانو له اصله دی هیڅ لنګویستیکی حقیقت نه لری، یوازینی ځینی شباهتونه چه مادرک کړی دي دادی چه په اورمړی کښې د هګی کلمه د وروستاړی لری . دمثال په ډول کانیګرامی اورمړی هنولک hanwalk د لوګر اورمړی وولک wuld او کردی hilka ( دهګی په معنا ).

---

۱- اوس په کانیګرامی لهجې کښې ګیدړ ته دپښتو نه اخیستل شوې ( ګیدړ ) کلمه استعمالوی ( لیکوونکی )

۱۶ - دا ورمړي او پرا چی ژبو ترمنځ ډېر اختلا نونه شته دي د مثال په ډول د( ft ) او ( max )ضما یر په پراچی کښې د متکلم‌شخص ضمیر جمع - xt او په اورمړي‌کښې ( ma )را ځی .

۱۷ - ماو یلی وو چه بلوچی ممکن ځینی دا سی لغات ولری چه دیوې آریایی ژبی څخه چه په هغه مملکت‌کښې د بلو چا نو د منځ ته را تګ څخه پخوا معمو له وه‌اخیستی وی .

ختیځه با ختري ژبه چه او رمړي ورسره دډ پروپیړ یورا په د پخوا په تماس کښې ده او د او ر مړی ژ بی په انکشاف کی‌لوی تا ثیر کړ ی‌دی پښتو د ه اورمړي د پښتوژبی‌څخه‌یو ز یات‌شمیر لغات اخیستی دي او دد وار و ژبو تر منځ را بطه ډیر اما سی بنسټ لري او ساته داسی په‌نظر نه‌راځی چه‌ګو ندې دو وارو ژ بو تر منځ تما س دمحمودغز نوي له وخت څخه شروع شو ی‌دی .

دد وار و ژبو ځینی داسی لغات شته چه یو له بله مخصوصه را بطه لری ا ما دغیږ له نظره څه ناڅه اختلاف ور کښې شته دی، دتلفظ اختلا ف څر ګند وی چه او ر مړي د پښتو څخه نومو ړ ي لغات د ېر پخوا اخیستی د ي دا ورمړي او پښتو د او ږ ده تما س په رڼا کښې ویلی شو چه او رمړي د لو یه یزا یرا ن څخه را غلی نه د ه .

دا وه د پرو فیسر مار ګین ستر ین د کتا ب مقد مه تر کو مې اند ازی چه ما دا ورمړی په دو ار و (لو ګري ) او (کانیګرامی) ژو ند یود یا لیکلو نو کښې

مواد را تول کړي او څېړ نه یې ور کښې کړې ده (۱) د ې عقیدې ته رسېدلی یم چه او رمړي د پښتو یوه داسې لهجه ده چه څو سوه کاله پخوا له پښتو څخه جلا شوې ده . البته د پښتون د نیټې معلوم ول یې باید د تاریخ او د پوهانو د لارښوونې په رڼا کښې اټکل شي البته مقايسوي ژپوهنه خصوصاً د گرامر په مقايسه کښې ماته داد را کوي چې او رمړي د پښتو يو ملري تلى لهجه وگنم . گله چه مونږ دا ورمړی گرامر د تولو آرياني ژو ندیوا و مطالعه شو يومړو ژبو د گرامر سره مقايسه کړو بله به هيچ دا سې ژبه پيدا نه کړ وچه د پښتو نه زياته خپلوي ورسره ولري د پښتنو سره چه او رمړ کوم ا پتنو گرافيك (د تو کم د تشکیل) رو ابط لري هغو ته د پر وفيسر سار گين سترين د کتاب په تر جمه شوې مقد مه کښې اشاره و شوه چه هغه هم زما د نظر يې ثبوت څې .

---

۱ - زما د تحقیقا تو منبع داده :

الف - په لو ګر ی او رمړي کښې علا وه پر نو روا ورمړي ژبو ښاغلی خلیل الله او رمړ د ګلنګار دلیسی پخوانی ښو و نکی .

ب: ربات خان د شکر داد خان زوی د کا نیګرام او سید ونکی دد پر ه اسماعیل خان د پو هنتون داد بیا تود پو هنځی محصل چه د پښتو د ښو و نکی زردل خان په لا س یې لیکل شوي او تا یپ شو ی مواد زمونږ لا س ته را غلی د ی .

( لیکو نکی )

په هرصورت زه به داورمړي ددوارو دیالیکتونو په ژبنیو ارخونورنیا واچوم او دونو اوستونکو ته به خپله دانتیجه په لاس ورشي چه پښتو او اورمړي دوا په ژ بې ځومره سره خپلوي لري .

**دوه لهجې :**

دپښتونخوا په دوو سیمو کښې اوس اورمړي ژبه ژوندی ده :

الف : دلوګر دولایت دبرکي برك په سیمه کښې چه تقریباً ( ۱۰۰ ) کورني پرې خبرې کوي .

ب : **دوزیرستان** په کانیګرام کښې چه دتقریباً (۳۵) زرو وګړو ژبه ده.

دلوګر اورمړي متاسفانه دپښتو اوفارسي څخه ډیره متاثره شوې ده چه دغه اغیزه هم د فونیتیك هم دلغت اوهم دګرامر په برخه کښې لیدله کیږي .

دکانیګرام په اورمړي دلغت په ساحه کښې څه ناڅه دپښتو اغیزه لیدله کیږي مګر دیوې مستقلې ژبې په صفت یې خپل ارغوني خصوصیات ساتلي دي . ځکه چه له یوې خوایې دخپلو ویونکو دا کثریت دقوت له امله اوله بلې خوا له دې کبله چه هلته داورمړي په سیمه نورې ژبې نشته داژبه تر زیاتې اندازې سوچه او نګه پاتې شوې ده

دلوګر اورمړي اود کانیګرام اورمړي ددوو ځانګړو لهجو په صفت په یو لړ ژبنیو خصوصیاتو سره بیلیږي چه خومهم ټکي به یې وروسته وړاندې شي .

**فونیتیك :**

داورمړي په دوارو لهجو کښې لاندې غږونه موجود دي :

الف : زور ، زوره کی ب، پ، ت، ټ، ج، چ ، څ ، ځ ( کانیګرامی ) . د، ډ، ر ، ړ ، ز ، س
ش ، مخت ش( کانیګرامی) ښ، غ ، ف ، ك ، ګ، ل، م، ن ( ۱ ). و(مجهول اومعروف )
ښ، ه ، ي(مجهوله معروفه نرمه اوثقیله.)

په کانیګرامی اورمړی کښی یو خاص ډول غږ شته چه په آریایی نورو ژبو
کښی مانه دی موندلی . تلفظ یی د ټکتیا په تلفظ د( ړ ) او (ښ) ترمنځه کیږی(۲)
دا په هغو کلمو کښی وجود لری چه دلو ګر په اورمړی ، کله په پښتو کښی په
( ښ) (ړ) او ( ش) سره تلفظ کیږی . ددغه غږ په مقابل کښی زه ددوار و غږ و نو
له لیکاو ورو سته د(؟) نښه ږدم لکه په لاندی لغاتو کښی :

| کانیګرامی | لو ګری | معنا |
|---|---|---|
| ړی ، ښی ( ؟ ) | شو | د ری |
| ښیس ، ړیس(؟) | ښیس | دیار لس |

۱ ـ پروفیسر مارګین سترین د(ڼ) غږ هم ښوولی دی لکه د (هوند ـ روند)
په کلمه کښی، مګر کوم موادچه ماته لاس ته راغلی دی په هغو کښی ماد (ڼ)
غږ نه دی موند لی .( روند) ته اوس په کانیګرامی لهجه کښی د(او ند ـ duwa
غږ موجود دی (لیکو نکی )

۲ ـ په خیرالبیان کښی د پښتو دتوریو د ښوولو په لړ کښی پیرروښان د(ګ )
غږ دوه محله تکرار وی دتکرار سبب یی بنا یی د روښان په ژبه کښی ددغه اورمړی
خاص غږ موجودیت وی (لیکونکی).

| | | |
|---|---|---|
| پواړ، خواښ(؟) | شمرین | خوړ |
| ړولك ، ښولك(؟) | ال ـ شولك | ورګول |
| وړ یوځن ، ومیوځن(؟) | شینوك | اخیستل |
| سوړ ، سوښ( ؟) | سوش ـ | سور (رنګ) |
| غوړاو ، غوښاو(؟) | غوښه‌و | دارول |

په یو لړ کلمو کښې دغه‌مقابله په‌نظر نه راځي لکه :

| | | |
|---|---|---|
| ړلك ، ښکه (؟)(۱) | ګیك | وړو ه |
| ړیو ، ښیوا (؟) | سیل | نیز ، سیلاب |

**فونیتیکی مقایسه :**

لکه څرنګه‌چه په‌پښتو کښې د(ښ) غږ په (ختیځواولوېدیځو )لهجو کښې په دوه ډوله‌وېل کیږی دغه‌شان تو ړیر دګانو‌ګرام اولوګر په‌اورمړی لهجه کښې هم‌شته داتو پیر خصوصاً په‌هغو کلموکښې لیدل کیږی چه‌په‌لرغو نو آ ر یا ئی ژ بو کښې یې غالباً د(خش ـ xsh ) غږ درلود .

دلته سونږداو بعضا سره دیولړ کلمو مقایسه وراندي کوو ضمناً بایدووایو چه دلوګری (ښ) دپکتیا په تلفظ نرمه وېل کیږي :

---

۱ ـ دغه کلمه لکه‌چه‌ترمخه تیره شوه سارګین ستر ین د ـك sak په بڼه قید کړی ده .

| کانیګرامی | | لوګري | | اویستا | | پښتو |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شین | shin | ښین | uɪx | خشینه | xshaena | شین |
| شپو | shyu | ښو | xo | خشپه | xshapa | شپه |
| شیپی | shipi | ښیپی | | خشویپته | xshvipta | شوده، شېدې |
| شه | sha | ښو | xo | خشوش | xshvash | شپږ |

دلوګر ی اورمړ ی او کانیګرامی اورمړي ترمنځه یو فونتیکی هرګند توپیر دادی چه د کانیګرامی د (س) دغږ پهمقابل کښی لوګری د (ش) غږلري :

| کانیګرامی | | لوګري | | معنا |
|---|---|---|---|---|
| سن | san | شن | shan | نن |
| سر د « (س) پهزیر » | | شر د (ش) پهزیر » | | ښه |
| سندس | sandas | شندس | | پولس |
| سوروا | | شوروا | | ښوروا |
| سون | sun | شون | shun | وینه |
| ګس | gas | ګشی | gishi | غابښ |

مګر دا قاعده عامه نه ده بلکی ډیرځله د اورمړی دواړه لهجی د (س) غږ یو شان ساتی :

| کانیګرامی | | لوګری | | معنا |
|---|---|---|---|---|
| تیوس | tyos | توس | tos | تاسو |
| ستوري | | ستژي | stazhy | ستو ري |

| | | |
|---|---|---|
| سپیو | سپیو | سپین |
| ستور | ستور | ستر ، لوی |
| سپوك | سپوك | سپی |
| سپوی | سپو ی | سپږه |

داورسړی په‌دواړو لهجو کښی د پښتود (ړ) دغږ په مقابل کښی د (ړ) غږ موجود دی خو کله‌کله د (ل) په غږ لبدل کیږی :

| کانیګرامی | لوګری | پښتو |
|---|---|---|
| زال (۱) | زال | زوړ |
| زلی | zli زلی | زړه (قلب) |
| خولوك | خولوك | خوړل |
| مالی | مالی | میږه |

دفونیتیک په‌هغه برخه کښی چه اورسړی له‌پښتو (کله کله له‌باختری‌ژبو) څخه لری کیږی هغه داد ی : دکلمو په سرکښی (غ) دغږ په مقابل کښی اورسړی ژ به د (ګ) غږ لری :

---

۱- په پښتو کښې دلرغونې ریښې د موجودیت له مخې ویلای شو چه دفارسی په کلا سیک ادب کښې د (زال) کلمه د (بوډ ی ، بوډا) په معنا له پښتو اخیستل شوې ده (دار یښه په‌زړی‌اوفیم زاله) کی‌همدا رنګه‌دداسې‌بداون قیاس په‌نورو لغاتو کښی هم‌کولی شواکه (نواله ــ نوړی ، شال ــ شړی ).

| | | |
|---|---|---|
| کانیګرامی | لوګری | پښتو |
| ګنم | ګنم | غنم |
| ګس | ګیشی | غابښ |
| ګیوی | ګوی | غویی ، غوا |
| ګری | ګری | غر |
| مورګه | مورګه | مرغه (انوتونکی) |

د کلمو په سر کښی چه پښتو د (ل) غږلری اورمړی یی د (د) غږ په مقابل کښی ساتلی دی:

| | | |
|---|---|---|
| کانیګرامی | لوګری | پښتو |
| دووه durwa | دووه | لور (دزوی په مقابل کښی) |
| دره نک dranak | دره نوک dranok | لرل ، در لودل |
| دس | دس | لس |
| | دوبش | ژبه |
| دراغ | دراغ ( او ړ ) | لا رغه ، لرغونی |

د پښتو د (ښ ، چ) دغږونو په مقابل کښی اورمړی کله کله د(ک)غږ لری:

| | | |
|---|---|---|
| کانیګرامی | لوګري | پښتو |
| کوک kok | کوک | ښوک |
| کیرژي | کیرژي | چرګه |

| | | | |
|---|---|---|---|
| که | ka | که | چه،چی |

داقاعده کلیه نه ده د(چ ،څ ) په مقابل کښی د (چ ، څ ) غږونه هم راځی:

| | | |
|---|---|---|
| کانیګراسی | لوګري | پښتو |
| څا | (و ا ی) | څله(ولی) |
| څر و ك | څروه ولك | څرول |
| څښیس | څـریس | څوراس |

د پښتو د زور ه ګی په مقابل کښی اومړي پیښ اري دامی په نظر راځی چه داله پښتوڅخه اخیستل شوې کلمې دي:

| | | |
|---|---|---|
| کانیګر اسی | لوګر ی | پښتو |
| پوټ pot | پوټ | پټ |
| موخ mox | موخ | مخ |
| ستور stor | ستور | ستر، لوی |
| ستوړ stor | ستوړ | ستړی |
| بالوشت Balosht | با لو ښت | بالښت |

دپښتو د هغو کلمو په سر کښې چه د(و) غږ و ي په او ر مړی کښی کله د(غ ) او کله د(ګ)په غږ اوړي . دا پیښه په نور و معاصر وآ ر یایی ژ بوکښی هم ایدل کیږي .مګر پښتو له دې کبله چه‌خپل لرغونی‌خصوصیات یې‌ترزیاتی اند ازې سا تلی دی د هغو په اړ کښې یې د (و) ار غو نی غږ هم سا تلی د ي

مګر په او رمړی کښی دنو رو آر یا یی ژ بو په شا ن په(غ) ا و کلمه کلمه د (ګ) په غړاو ښتی د ی . دادي ځوښا او نه:

| کا نیګرامی | لوګري | پښتو |
|---|---|---|
| غو اسه | غو اشه | واښه |
| غیځن | غو ك (ووك) | ویل |
| کیستك Gistak | ګوستوك Gustok | وستل(راوستل) |

دا پیښه له هر څه زیات په پر اچی کښی تیپرکه ښه‌اري چه په خپل ځای به‌یی و ړ اندې کړو:

دا ورمړی دد وا ړ و ورا شو (لهجو) تر منځه یو څرګند فو نیټیکی توپیر دادی‌چه دلوګری د کلمو په منځ کښی دو(مجهو ل او معر وف ) نه ترمځه‌په کا نیګرامی کښی د (ې) غږ زیبا تیږی :

| لوګری | | کا نیګرا می | | معنا |
|---|---|---|---|---|
| پو ز | poz | پیوز | pyoz | خوله |
| روژ | rozh | ر یوز | ryoz | ور ځ |
| شو ك | shuk | شیوك | shyuk | شو |
| ووك | ok | ویو ك | wyok | چ |
| توس | tos | تیوس | tyos | تا سو |
| دو | do | د یو | oʌp | د وه |

دپښتو سره دا و رمړی فو نیتیکي خپلولي څه ناڅه دلته وښوول شوه په اورمړي کښې د باختري ژبو د خاصو غږونو (ښ ، ځ ، ښ )موجودیت داثا بتوي چه دا ژبه یوه باختري ژبه ده او بیا په هغې د پښتو د غږونو (ټ ، ډ ، ړ ، او ڼ ) دغږو نو موجودیت دا ښئي چه او رمړی د پښتو یوه لرغونې بیله شوې لهجه او یا ورسره بیخي خپلوانه ژبه ده .داژبه د پښتو سره گرامري زیاته خپلوي لري چه د نو روژ بو سره همغو سره په دې باب خپلوانه نه ده.

ددې ژبې دد وا ړو لهجو گرامر په مفصل ډول د کابل مجلې د (۱۳۵۰) کال په (اوو مه او اتمه )گڼو کښې وکوري.

دلته داو رمړي یو وړوکی متن د ما رگینسترین په استناد دښکا رند وی په ډول دتر جمې او تحلیل سره وړا ندې کوو :

Šė faqír arzấk šė bárri nė,zut xarấnuk bũk

شې -( یو) مقد اری عدد دی .

فقیر - ( فقیر) عربي کلمه دهمبتدأ .

ار زك -(راغی) دما ضي لازمي د مفردغایب صیغه ده.دا کلمه له دووتو کو (ار -زك) جوړه ده .لو مړی توکی (ار) سمتي ضمیر دی چه د پښتود(را ) متکلم خوا ته د عمل سمت ښئي ) په معنا دی .

اودويم توکی ( زك ) د ( تلل ) معنا ورکوی او د پښتو د حال او ماضی په صيغو کښی د (ځم،ځي،ځی) اونورو په بڼه موجوددی،دواړه توکی د خبر ځای لری.

بر- (ور) دا کلمه د(و) په غږ همد ارنگه کله کله د (د-و) په غږونو په باختری ژبو کښی ثابته ريښه لری:او سيتی dwar فارسی (در) يغنوبی (د يور divar سوغدی (ذور) بار تنگی ( ديوور Divor يا زگوليا می ( دوور- د (د) په زوره کی) په غږ و نو وجو د لری .دا کلمه په اويستا او زړه پارسی کښی د (دوره ) Dvara او (-نی -) دور وستا ړی د ی چه د عمل سمت ښئی.

زوت -د ير زښت ) دقيد وظيفه اجرا کوی .

(خرونو لك -وړی) اسم صفت د ی چه ر يښه کښی (خوراك) ده.

بو لك - (و) د ماضی لازمی مفر د غايب صيغه ده.

ترجمه :

يو فقير (ديوه کور) يوه وره ته راغی هغه زښت ډير وږی ؤ.



# پراچگان
# او
# پراچی ژبه

دافغانستان دخورا ډیرو لږو ژبو څخه یوه پراچی ژبه ده. (ترمخه داورمېږی په پېښل کښی وښوول شوه) چه پراچگان دهغو باختري آریایی توکمونو پاتي شونی دي چه لا په قبل المیلاد دریمه پېړی کښې یې یونانی جغرافیه پوه ایراتوسفین یادونه کړې وه.

پراچی ژبه داوږدو پیړیو په جریان کښی ددریو ژبو (پښتو، فارسی او پشه یی) سره په ګاونډیتوب کښی اوسیدلې، نو ځکه د همدغو دریواړو ژبو نه زیاته متاثره شوې ده.

ځای په ځای یې لاساحه د دغو ژبو له خوا ورتنګه شوې هم ده (لکه په شوتل کښی دفارسی له خوا) د م. س. اندریف او مارګین ستریبن له تحقیقاتو نه څرګندېږي چه پراچی ژبه د شلمې پېړی د سر و د برشو کلونو پورې د پنجشیر په څینو برخو (شوتل، کوروب) کښی ژوندی وه، خو اوس د دغو خلکو مورنی ژبه بیخی او ښتې ده.

ما هم په خپلو یادداشتونو کښی لا هاغه وخت د پراچی ژبی ویونکی په کابل کښی

یاد کړي وو . دا باسون په حوزه کښې همددغې ژبې یادونه مؤرخین کوي مګر ددغې ژبې اصلي ټاټوبی همدغه دنجراو ساحه ( پچه غان ) دی . غالباً ددغې ژبې دژوند ساحه پخوا ډیره پراخه وه خواوس یوازې دنجراو دولسوالی په خومحدودو برخو(د پچه غان دره ځین د نجراو دد رې سرـغوچولان ) کښې ژوندی ده .

دپچه غان پهدره کښې تقریباً لس زره و کړي ژوند کوي چه زیات یې پراچي ویونکی او لږیې پښتانه (ساپیان) او پشه یان دي .څرنګه چه په دغه دره کښې دپراچي ویونکوشمیر زیات دی پراچي ژبې خپل زیات خصوصیات ساتلی دي . په ( ۱۳۵۰ ) کال کښې ما ته فرصت پیدا شو چه د پراچي په باب خپلې پلټنې دپچه غان پهدره او څه یې د نجراو په غوچولان کښې وکړم .

دپراچي ژبې دځیړونکو په جمله کښې پروفیسرمار ګین ستر ین د زیات شهرت څښتن دی .

دلته غواړم ددغه کتاب د ترجمې لنډیز چه داورسري او پراچي په باب یې لیکلی دی دښا غلولوستونکود استفادې له پاره وړاندې کړم ( ۱ ) .

---

۱ ـ د کتاب نوم : Indo Iranian frontier languages.

د انګر یزي نه په پښتو اړو لوله کبله دپوهنیار حمزاخیل نه ممنون یم (لیکونکی) .

دلته باید ووایم چه دپروفیسر مارګین ستړین تحقیقات اصلاً دشوتل دره پوره پرا چګانو څخه شوي دي ، په‌شوتل کښې د پراچګانو نفوس بیخي لږ او ژبه یې دفارسي داغیزې لاندې زیاته را غلې وه تر دې چه اوس له منځه تللې ده . نو که زما او د پرو فیسر مار ګین ستړین د نظر یاتو داختلاف کوم تکی‌وي ـ منشأ به یې د تحقیق دځایونو په اساس وي .

په پچه غان کښې د پرا چګانو شمېر بیخي زیات دی او ژبه یې د زیاتې اغیزې لاندې نه ده را غلې .

د پرو فیسر مار ګین ستړین دمقد مې لنډه یز دادی :

۱ - پراچي ژبه‌دلوسړي ځل د پاره بابر په خپلوخاطراتو کښې‌ذکر کړې‌ده د کابل دشاو خوا ډیرو کلیوا و سیمو کښې‌پشه ئیان ، پرا چیان، برکیان او‌پښتانه میشته دي په کابل کښې یوولس یادولس مختلفې ژبې ویل کیږي لکه :عربي فارسي ، ترکي مغولي ، هندي ، پښتو ، پشه‌یي ، پرا چی کبري ، برکی‌اولمغانی.

په شپاړسمه پېړۍ کښې ترکي منصبدار سیدي علي ویلي وو چه د(فراچي) قوم د پروان په شاو خوا کښې چه(شو تل ) ته لنډه دی او سیږي .

( ا یلفنستون ) وایي چه پورانچیان Puraunchehs چه د هند کیانو یوه قبیله ده دبابر په وخت کښې ځا نګړي خلک‌وو، اوس دوی د کار وانو نوییونکی او لار ښو ونکی‌دي .

دماسون په حواله د پرانچه Perancheh ژبه په‌یو څو کورنیو کښې چه په پنجشیر یا پنجشیرته لنډه سیمه کښې او سیږي ، و یل کیږي . پرا نچیان

## پراچگان او پراچي ژبه

پرته له پنجشیره چه خپله ژ به یې ساتلې ده ددغه هیواد په‌زیاتو برخو کښې پیدا کیږي او اسلام ته د دوی او ښتنه په تیر لنډ وخت کښې شوی ده.د کابل په ښار کښې ځینې ډیرلوی تاجران پرانچیان دي ، دوی په کامه کښې یولوی کلی نیولی او دوی داباسیند په مکاد Makkad کښې هم اوسیږی . په اتک کښې هم پیدا کیږي او په هغو ښارونو کښې چه داتک او جیلم د سیند تر منځ پراته دي هم میشته دي په هر حال ددوی شغل تجارت دی .

د تیرلنډ وخت پورې همدومره معلومات دپر اچی په باب موجود ووا و د بابر د خاطراتو په‌یوه یاد داشت کښې سرجارج گریرسن د ( پراچی ) نوم د ( ختیځ ) په معنا تشریح کړی اوویلی یی‌دي چه‌داژ به‌دختیځ هندځخه کابل ته‌د پربایسانو Purbyas په‌ذریعه چه‌لوی تاجران دي ، راغلی ده .

۲ - کله چه زه په ( ۱۹۲۳ ) کال کښې دناروی‌دبشري کلتور دمقایسوي ریسرچ دانستیتوت له‌خوا په کابل کښې دیوه هیئت په حیث‌دژبو په مطالعه‌بوخت وم ماد پراچې په‌باب دبابر اوساسون دلا ربوونو په‌اساس‌چه یوه محلی ژبه یی گڼلې وه پوره څیړنه وکړه .

ددغه کال‌دجولای‌په اخر کښې‌یوه پښه‌یی سړی‌چه ماله ځا نه‌سره د کوه‌نادرسا تا له کلی څخه‌چه کلبها ر ته‌لنډ دی اودهغه اصلی‌هستوګنځی‌ؤ راوستی‌و ماته‌یی وو یل چه‌دده یوملګری چه‌دشوتل په‌دره کښې‌او سیږي په‌یوبل ډ ول‌ژبه چه‌پاراچی Paraci نومیږي ، ګړیږي - اود هغه دنو مو ړی ژبې یوڅو جملې هم زده وې . دمثال‌په ډول : خوریمن او تیریمن - یعنی خورم ، اوڅښم-

کان جات ـ د کوم ځای یې ـ ایستې پریمن ـ پاڅه ځو. بل پښه‌ئی سړی چه د تګاو ځخه راغلی ؤ ساته یې وویل چه‌دنجراو په‌پچغانی ژ به کښې ډوډ ی ته ( نغون ) و یل کیږي .

دغو معلوساتو ساته واضحه کړه چه پراچې یوه نا معلوسه آریایې ژ به ده او تیر ( Ter ) چه‌دچښلو سعنی‌لري‌داورسړي ( تر ـ Tr ) یې‌ساته‌راياد کړ. بیا یوبل سړی لاس‌ته راغی چه‌په پراچې پو هیده ـ دسټی راته معلو سه شوه چه پراچې دپښه‌ئی‌شمال لویدیځ دیاایکت‌دی کوم‌چه سـالـه‌مخکښې‌ځخه مطالعه کړی‌وه.

له‌ښه سرغه دشوتل ملك د کوهستان دنوروسلکانوسره په‌همغه ورځ کابل‌ته راغلی‌ؤ . ساپه فارسی حروفو دپراچی کلمات دترجمې سره چه اوریدلی مې وو ، ولیکل اودسلکانو ځخه سی‌دیوه استازي په‌ذریعه پوښتنه وکړه چه‌آیا دا ډول ژبه په‌شوتل کښې ویل کیږي ملك دنوسوړي ژبې دویلو تصدیق وکړ اود پراچی‌ژبې دځینوو یوونکونوسونه یې واخیستل .

استازی نوسو ړی سیمی ته لاړ اونهه ورځی وروسته د یوه پرا چی و یو نکی شپانه‌سره‌بیرته راغی. کله‌چه‌د هغه‌ځخه‌سی‌وغوښتل چه په‌خپله ژبه‌شمتیرو کړی‌نوا‌وسړیو اعدادو یي داثابته کړه‌چه پر اچي یوه‌آریایی‌ژبه‌ده‌څه‌ناڅه یوسستقل‌حیثیت‌لری.

٣ـ ددې شپانه کو ر د شوتل‌د پاسه په روددره کښې‌ؤچه‌دده دیوې هفتی دتم کیدوپه وخت کښې ساد پراچی‌ژبې‌د‌سهموخصوصیاتوپه‌باره کی‌نظریه‌پیدا کړه.

دنوسوړی‌کال‌سپتمبر کښې زه ددوو‌پراچی مستخد مینو سره چه‌د شیر پو ر په چونې کښې ئی کار کاوه په تماس کښې شوم د دوی‌نوسونه غلام محی الدین

اوتوکل‌شاه وواو دواړه تقریباً دیرش کلن‌وو . توکل شاه درود دري ؤ. دپراچی ژبی ښه شاعر هم ؤ ،غلام محی‌الدین‌دشوتل دده کلان اوسیدونکی ؤ. اوهغه ویل چه‌دشوتل اصلی نوم جوتل د ی . هغه زما دژبنی تحقیقاتو سره ډ یره مینه وښووله اويو خوشال طبیعته سړی ؤ .

هغه له څه‌ناڅه‌بر یالیتو ب سره کوښښ و کړ چه د فا رسی ژ بې د الف با په اساس خپله ژبه ولیکی زمادلار ښوونی په اساس هغه دپښتو ژ بې ځینې مشخص توری دخطی ژ بی په لیکلو کښی شامل کړل دوی وویل چه په شو تل کښی دپراچی ژبی يو کتاب موجود ؤچی د حضرت علی ځینې قصې يې در لو دې . مګر ماته دنو موړی کتا ب لاس ته راوړل‌غیر ممکن‌وو .

ماد وی د و ا ړو سره هره ورځ يوساعت دیوی میاشتی دپاره کارو کړ . د ری واړو تنوچه مخکښی ذ کرشول تقریباً يوډول لهجه ویله .

دنجراواو پچغان‌دیالیکت‌خالص /الف/ لری اودشوتل‌دیالیکت واوته‌مايل الف لری په همدی ډول نجراوی اوپچغانی ژبی(و-مجهول)اوخ لری حال دا چه شوتلی‌دیالیکت‌واو-مجهول‌ی ته‌مایل‌اوچ لری په همدی‌ډول دپچغان‌اونجراوی‌دیالیکت لغات دشوتل څخه ډیر توپیر او د پشه‌ئی ژبی څخه‌ډیراخیستل‌شوی‌لغات‌لری .

۳ — په /۱۹۲٦/ کال کښی پنجشیر ته د روسیې يوعالم پرو فیسو ر م. س. اندریف‌ولاړاوپه‌روسی ژ به‌يې د خپل سفر مقد ما تی ر پورټ و لیکه . هغه د پر اچی په با ب ځینې موا د را ټو ل کـړی و و خو د نو موړې ژبې په‌باب‌يې لاتراوسه کوم تشریحات لیکلی‌نه دي .

د اندريف لەقوله پراچی دنجرا و د کوروبه ( Kuroba ) په کلی کښی اودشوتل ددرې داتوکليو څخه پەدرې کليو کښی ويل کيږي يعنی ده کلان ( ۱۰ کورونه ) سورا ( ۲۰ - ۳۰ کورونه ) اواندوسوت ( ۴۰ کورونه ) دشوتل نور کلی پەفارسی خبرې کوي .

دشوتليانودرواياتو پەاساس ددوینيکەشوتل دنجراوڅخه د کوروبه اوسالنګ سرەيوځای نوسوړې سيمی ته کوچ کړی ؤ سالنګ دپروان څخه لوړی درې تەلاړ اواوس په هغه ځای دده نوم ايښودل شوی دی . لاکن دهغه اولاد پەفارسی خبرې کوي . دشوتل اونجراو دياليکت تقريبا يوشان دی، دوی خپلو ځانو ته تاجك وايی ، هغوچه خپله ژبه ساتلې ده نوکله کلەځانوته پراچيانوايی .

۵ - هغه چاچه ساته د پراچيانو د شمير په باب معلومات راکړی دی نود پاسنی تخمين څخه توپير لری .

ديوه تن لەخولی دوی تول سلوتنو تەرسيږی بلويلی ووچه پەشوتل کښی له ( ۲۰۰ ) څخه تر ( ۳۰۰ ) پورې کورونه دي او له دې جملې څخه سل کورونه پراچيان دي اساتوکل شاه څرګنده کړې وه چه دده قوم په شوتل کښی ( ۴۰۰ ) اوپه نجراو کښی ( ۶۰۰ ) کورونه لري، يوه بل تن راته ويلی ووچه پەنجراو کښی دپاراچيانو ( ۱۰۰ ) کورونه شتەدی، محمدغنی اوغلام محی الدين دشوتل ددرېداتوکليو څخه پەدرې کليوکښی دا خبره منلی وه چه پراچيان دنجراو څخه خوپيری پخوا راغلی وو ( يعنی تقريباً له ( ۶۰۰ ) څخه‌تر ( ۱۰۰ ) کاله، پخوا اودقوم دواړو برخويوله بله سره ودونه کړي دی او يو خلك ګڼل

کیږی . دیوه تن دوینا په اساس دوه نسله پخوا پراچی ژ به د پنجشیر د فر اج زامنکور اودستوخیلو په کلیو کښی و یل کېده. داهم باید وویل‌شي چه د پغمان په سیمه کښی چه د کا بل د لو ید یځ پنځلس میلی کښې پر وت دی یو کلی دپراچۍ په‌نامه یادیږی .

٦ ـ داخبره مشکوکه ښکاری چه‌ایانوسوړی پر اچی و یوونکی بزګران ا و غرنی خلك‌دهغو تاجرانو سره‌چه‌الفنستون اوماسون ذکرکړی د ی را بطه لر ی او که‌نه،په‌دی‌باره کښی دوسره ویلی‌شوچه په‌پښتوژبه کښی پر ا چه د تو کرا نو دخرڅوونکی یابنجاره معنی لری .

په وزیری لهجه کښی‌پاراچه هغه هندوته وا یی چه مسلما ن شوی وی . په‌پنجابی ژبه کښی پراچه هغه مسلمان ته‌وایی‌چه‌په‌بنجاری کاروبوخت وی په‌هرحال غرنی پر اچیان اوس له‌داډول شغل سره اشنایی نه‌لری .

٧ ـ څرنګه چه‌دپر اچی ژبی په‌باره کښی کوم تاریخی معلومات نشته د ی سونږمجبور یوچه په لنګو یستیکی شواهد واتکاوکړو تر څوچه د آ ر یا یی ژ بو په‌کورنی کښې دهغې موقعیت څرګندشی . لکه چه زما په یوه ر پیو رټ کښی ویلی شوی دی پر اچی له‌ډیرو څواوو دپېرسیکو لهجو سر ه مو ا فقت کوی او د باختری لهجو سره نا سوافقه بریښی یوسهم‌ټکی دادی چه پر ا چی ا و لو ید یځ (ایرانی ژ بی)لومړنی‌غږلرونکی(ګ ، د ، ب ، ج) لری‌بالمقابل‌باختری‌دیالیکتونه

د (غ ، ذ ، و ، ژ ) فریکا تیفونه لری( ۱ ) .

داخاصیت دجنو بی ( لوید یځ اوجنوب ختیځ ) اوشمال ختیځ آر یالی ژ بو ترمنځ یوه یر لرغونی توپیر ګڼل کیږی . دجنوبی آریایی ژ بو پهځیر د پر اچی لوسرنی اودغږ لرونکو تورو ترمنځ د( تر ) غږدلویدیځوآریایی ژ بو پهشان دی .

د شما ل لو ید یځوآ ر یا یی ژ بو ( سید یک ګر و پ ) سر ه پـر ا چـی ( پـه همـد ې ډ و ل واخـی ) د ـ dvandva حـا لـت یو شا ن وښیی . یعنی د ـ mp اوا زد ( q ) پهځیر د ی . ددوه غږلرونکو تو رو ترمنځ د (d·t) له منځه تلل دپر اچیاومعاصروشمال‌لویدیځوآریایی ژبوګډخاصیت‌دی. مونږ دا تغیر دشمال لویدیځ ترفان ـ turfan— په ستنونو کښی نه ګورو. لاکن مشترک میلان یی‌ممکن ډیر لرغو نی وی . د ( ثر ) ا ړ و نه په ( ش ) با ند ې په پر اچی اودشمال لو یدیځ ایر ان په سنګسا ری کښی لید ل کیږی. بر سیر ه پردې سو نږ دشمال‌لویدیځ دیالیکتو سره دا پراچی مشابهت د لغا تو د جو ړښت لـه نظـر ه لیـد لـی شـو ، دمثـا ل پـه ډ ول د پـر ا چـی ا عـد ا د

---

۱ ـــ د پیر سیک ا و باختری ژبود ویش پهصورت کښی‌داتوپیر ما پهځپلو پلټنو کښی ځوځله وړاند ې کړی د ی .

دباختری ژبو په جمله کښی پښتوا و سو نجا نی د ( ذ ) د غږ په ځای د ( ل ) غږلري . ( لیکو ډکی ).

(د وس ، زو س — zumas d (u) was) د ترفانی د (ا یوا ند س دواندس — durandas evandas) سره مشابهت لري. په همدی ډ ول د پراچي (آ) (ها) چه د (هغه) معنی لری د ترفا ن د (ها و —hau) سره نژ دې بریښی . د پر اچې ډېرې کلمې دلویدیځ ایران د مختلفو ژ بو سره نژدې دي . د پرا چی او دیوې شما لي لو یدیځې آریا یی ژ بی ترمنځ نژ د یوالی په لا ندې ډ ول دی .

| پاراچی | | سمنانی | پښتو |
|---|---|---|---|
| نهین- | nhin | نین nin | کښېناستل |
| نهشت | nhasht | نیاست niast | ناست |
| پیس ، پیستی pes pesti | | پستی pasti | پس ، وروسته |

۸-د پرراچی او اورمړي ژبو تر منځ دشباهت ټکی زما په یوه رپو رټ کښی ذ کر شوي دي. دفو نو لو جی (غږ پوهنی) له نظره ډېر مشخص ټکی دادي چه (و- w) په (غ ، ک) با ندې اوړي. د (ژر) اړونه دپرراچی ژبی په (ش) او داورمړي ژ بی په (ش) او د اورمړي ژ بی په (س+ر- ) په دواړو ژ بو کښی یو موازی حیثیت نه لري. په همدې ډول دد ووغږ لرونکو تورو تر منځ د (ت) او (ز) دله مینځه تګ ا و د dw-b-nt-rr اړونه په نو رو دیا لیکتو کښی هم پیدا اویږي. یو شمیر لغات د دواړو ژبو (پرراچی) او اورمړي) تر منځ څه نا څه مشابهت لري:

| اورسړي | | معنی | پراچی | |
|---|---|---|---|---|
| اوندریو | underew | کندل | اندرف- | andarf |
| گپ (تیږه) | gap | نغري | گپر- | gapar |
| متت | matat | مندته | میندوت- | mindut |
| ماته | mat | رژیدلی،وژلی،مات | مات | mat |
| نیس، نغوك | | و تل | نی نرغو- | ni, nargo |
| نور ،نوه‌لوك | nawar— nawalok | ویستل | نیر،نوت | ner, not |
| پره وك | parawak | خرڅول، پلورل | پهارف | pharaf |
| ریو | rew | اوسپنه | رو | ru |
| ثر،تتک | tr, tatak | چښل | تیرتهور | ter: thor |
| زیمك، | zemak | ژمی | ز یمه | |
| زوت ،څوت | (d) zut | ډیر | زوت | zut |

څینې پاسنی لغات له‌نورو ژبو څخه اخیستل‌شوي ښکاري، له بله پلوه پراچی او اورسړي ژبې په ډیرو سمو خوا وکښې دفونولوجی او مورفولوجی له‌نظره یوله بله‌توپیر لري(د مثال په‌ډول داورسړي ژبې د کلمو په پای کښې د(ك) ساتنه .

۹- په (ړ-r) باندې د پراچی د( رت-rt) او (ر د-rb) اړونه د پښتو په څیر ده او په همدې ډول د(srt) اړونه په(s) باندې په څوځینو آریایی‌ژبو کښې لیدل کیږي. په لاندی مثالو کښې د پراچی ژبې مقایسه دنورو باختری مربوطو ژبو سره لیدله کیږي:

| پښتو معنی | د مقایسوي ژبې نوم — دمقا یسوي ژبې لغت | پراچي — تلفظ |
|---|---|---|
| اغوستل، اغوندل | اغون، اغوست | Agun—agust (۱) |
| منه | ا سپ | amar |
| ږدن | مونجی yurzen اغزون | agzun |
| ستوري | شوغناني —sterg ستېچ | stec |
| | مونجی wusk استر | astar |
| پورته کول، هسکول | مونجی wust اوست | ust |
| کوچنی | اشکاشمی stunuk ستېن | sten. stenuk |
| سوړ | شوغناني bes ستاو | staw |
| پاتې کېدل | ایدگا uzaiyah اوزه | uzeh, uza |
| بیاسته (بېرې او رسۍ) پښتو | | bas بس |
| بیاسته، | اورمړي bes | |
| څو | پښتو co | څا ca (۲) |

۱- یادونه: څرنګه چه مونږ په مطبعه کښې د لا تینی (غ) د ترانسکرپسیون له پاره خاص توري نه لرونو د (غ) دافاد ې له پاره هم د (g) نه استفا ده کوو او د (څ) له پاره د (c) نه کار اخلو.

۲- پروفیسر ما رګین سترین دمقایسې په غرض زیات شمیر لغات وړاندی کړی زه دلته ورته تېر شوم.

دسونجي ژبی سره چه دشمال ختیځ ژبه ده پراچی دد و یم گروپ rt بی غیره توروحالت کښ خصوصیات لری .د پراچی ژبی (zito) او د سونجي ژبی (zit) چه د زیړ معنی لری. داویستا (zairita) څخه اخیستل شوی دی( کن-kan) او( کار kar) له ریښی څخه اخیستل شوی کلمی چه د( کولو)معنی لری اودشما ل لویدیځ اریایی ژبوسره بردی ده په پراچي اوسنجانیژبو کښی پیداویږي. په همدی دول نوسوری ریښه په باختری ژبو کښی هم لید له کیږی. بر سیره پرد ی د پرا چی د څانگو جدائی د (آغه) (زی-ze) دریښوله سخی چه دراتلومعنی لر ی د (agaya—agta) په بنه سو نجی کښی هم سیندل کیږی . اوځانله په شما ل لوید یځو آ ریا یی ژ بو کښی دا حالت موجودنه د ی .

۱ — دا سروی ښکاره کوی چه پرا چی داریایی ژبو په منځ کښی یومرکزی حیثیت لری .دباختری ژبو سره د پراچي ژ بو سوافق ا ړ خو نه ممکن د یوه او بل تماس په اثر منځ ته راغلی وی .زه خیال کوم چه پرا چی اواورمړی ژبی دا فغا نستا ن داصلی آریایی ژبوپاتی شونی (بقا یا) دی او د دواړوژبو تر منځ د مشا بهت تکی په اسانی سره تشر یح کید ا ی شی . په خینو حا لاتو کښی د دو اړو ژبو تر منځ فوق العاده اختلاف څرگندوی چه دواړه ژبی په یوډیرلرغونی وخت کښی سره جلا شوی دی . ممکن دلو یځ خواته دهندی آریایانو دپراختیا په اثر دا کار شوی وی او پرا چیان ئي په تگاو او نجر او کښی خوندی ساتلی وی او دپرا چیا نو د بنچار ه طبقی په حیث دمنځ ته راتگ سبب گرځیدلی وی .

پراچي ژبه

۱۱ـ د هغه قوي هندي تاثير څخه چه په پراچي کښي ليدل کيږي داسي ښکاري چه د غه ژبه اوږد وخت ورسره په تماس کښي وه او ياد هند د ځينو ژبو څخه اخيستل شوي لغات ممکن پراچي ژبي ته د پښتو او فارسي په ذريعه رسيدلي وي. لکه چوري (غلا) گهانه (گانه ـ پسول) اونور .

پراچي ته دانگر يزي ژبي لغات د هند څخه راغلي دي دمثال په ډول کرنيل اردلي، پتلون، واسکټ .

هغه کلمي چه هندي دي او پراچي ته يې د راتگ منبع معلومه نه ده په دي ډول دي:

| معنی | لغت | | معنی | لغت | |
|---|---|---|---|---|---|
| ليدل | بوچه | buch | آسمان | اغيس | ages |
| لويدل | چهر | char | تندر، غرغر | بومبورو | bumburu |

ځيني کلمي لکه (کانو ـ kano روندواغر ـ نخا) چه ورته ډيري نژدي سوازي کلمي په (نورستاني) ژبو کښي پيدا ويږي دا امکان شته چه ځيني هغه لغات چه پاس ذکر شوي د نورستاني ژبو څخه اخيستل شوي وي. او داهم ډيره ممکنه ده چه ډير دا ډول لغات د پشه ئي څخه که څه هم په موجوده وخت کښي ئي نه لري پراچي ته نقل شوي وي . موثر پوهيږو د مثال په ډول چه د غوږي ـ liwon او دانه (حبه، ميوه) phor ـ کلمي د پشه ئي يوه ابر غوني حالت څخه اخيستل شوي دي . لاکن د هغو لغاتو شمير چه د پشه ئي څخه اخيستل شوي او لاتر اوسه په نسومو ري ژبه کښي معمول دي خورا زيات دي

۱۲ - په پراچی باندی‌دپشائی ژ بی تا ثیر یوا زې په‌لغا تو منحصرنه دی ددیر وپشائی دیالکتو په‌څیر دپاراچی (y) توری په (z) اوړی‌او دابدلون‌چه په گوا ر باتی ژبه کښی (Y—i) او ترایکو ما و یکلی کښی ( (u—z) )لیدل کیږی‌ښکاره کوی‌چه دپشائی څخه منځ ته ر اغلی دی .

۱۳ - که‌چیر ته سونږ دپاراچی سورفولوجی ته توجه وکړوسونږ گو روچه‌دي ژبی دپشائی څخه‌د جمع‌پساوند dal اونور دوه‌پساوندونه kun او —wano هم ا خستی دی .

د پراچی‌ځینی‌شکلونه‌لکه :—baweha)چه د پلا راوزو ی معنی لری‌دپشه ئی منبع څخه‌منځ ته راغلی د ی .

په‌ځینو حالاتو کښی سونږ دپراچی اوپشه ئی ترمنځ مشابه فورسونه گو رو لکه دپر اچی an(زه) او دپشائی(آ–زه) همدارنگه‌دپراچی اوپشه یـی(آ) هغه‌او دپراچی‌اوپشه‌ئی‌مشتر ک (بین ien) (هغه ؤ) په‌هرحال، که‌چیرته‌مونږپه‌ځانگړی ډول وگورو یو تربله مشابهت یی ممکن سوازی اوپه‌عین‌حال کښی مستقل وی. ددې‌ډول مشا به مو رفو لوجیکی تکو شمیر چه په پاراچی اوپشه‌ئی‌پوري خا صه اړه لری څرگندوی چه‌دا کار اتفا قی جنبه نه‌لری. دپشایانو دسرد شمیر زیاتوالی‌او په پراچی کښی دپشه‌ئی دیرلغات مو نږ ته موقع را کوی چه ووا یو د نو مو ړ و کیله و منبع پشه ئی ده .

په هرحال دپراچی (س+ت-) (st) چه‌د (سوجود) معنی ور کوی اود (ton)

پساوند دپشه ئی څخه ا خستل شوی دی. د لته سو نیر و یلی شو چه پشه ئی په پراچی باندی څومره ژور تاثیر کړی دی.

داسی معلومیږی چه پشه ئی په پراچی باندې یوه پخوا نی ا جتما عی او کلتوری لر غونیا درلوده اوپه عین حال کښی دیوه اوږده وخت دپاره ددواړو ژبو ترمنځ یوه نژدی رابطه موجوده وه.

دفارسی تاثیر او دهغی دلغا تو زیا توا لی په پرا چی کښی خوراښه معلومیږی په هغو لغاتو کښی چه ماراتول کړی دفارسی منبع لغات دپراچی په اصلی لغا تو زیات ښکاره شوی. که څه هم دفارسی یوشمیر لغات چه دپراچی په شعر کښی استعمالیږی په معموله ژبه کښی دومره استعمال نه لری. پراچی اوس په داسی حالت کښی ده چه دفارسی تاثیر ور باندې خورا ډیر دی

زیاتره پراچیان په دواړو ژبو پوهیږی او هر لغت ته چه په پراچی کښی ضرورت پیداشی نو هغه دفارسی څخه اخلی (۱).

ددې خبرې فیصله چه د پراچی یولغت له نورو منابعو څخه اخستل شوی او که نه غالباً غیر ممکن بریښی په اکثرو وختو نو کښی سره ددې چه د پراچی خپل لغت موجودوی فارسی لغت استعمالیږی. دمثال په ډول د پراچی (مانیش سړی) د کلمی په عوض دفارسی (ادم) د (خو سور xusor یا (خپل سر) په عوض (سر خود) ا و د

---

۱ — دلته باید و وایو چه دشوتل پراچی دنفوسو اقلیت لری ځکه دپارسی اغیزه پری ډیره ده، خود پچه غان پراچی ترزیاتی اندازې خپل استقلال ساتلی دی.

(غوس — کور) پهعوض (خانه) استعما لیږی .

لهدي څخه معلومیږی چهدپراچي ژبه یوې داسې مرحلې ته رسیدلې ده چه د دری عناصرو دمنځ ته راتګ سره هیڅ مقابله نه شی کولی .

پهشوتل کښې دپراچیانونه ګردچاپیره فارسی ژبی خلك پراته دي او ددی ځای خلك تقریبا دپراچی پهاندازه پهفارسی هم خبری کولی شی اودفارسی تلفظ پهاسانی سره اداکوی.

دپراچی مورفولو جیکی سیستم تقریبا پهخپل حال پاتی شوی دی، لاکن د اضافت استعمال چه د اخستل شو لغاتو څخه راغلی دی ـ پوره دول قایم دی ـ دمثال په دول ( بند دست ) یو داسی پردی ترکیب دی چه اضافت ورڅخه معلومیږی .

د پراچی پهخیر یوه ژبه په همدی ډول اورمړی او پشایی ځینی د یالکتونه پهخپل ذات کښی کافی نه بریښی اودمتمد نو ژبو پهشان مکملې نه دي. په همدې ډول دا ژ بـې د نو ر ستا نـی ژ بـو په شا ن یـو مستقل حیثیت نـه لـر ی ، ځکه چه نورستانی ژبیو دتیرلند وخت پوری خپل یوځانګړی تمدن دراود اودافکارو پهاظهار کښی داصلی لنګو یستیکی عناصرو څخه استفاده کولې شی .

د ا خبره ممکنه نه ده چه پر ا چی د فا رسی یو د یـا لیکت وګڼو ځکه چه پـر ا چـی یـو مستـقل ـمو ر فـو لـو جیکی سیستم ـلـا تـلـی ا و د لغاتو یوه داسی ذخیره لری چه دفارسی څخه د یر تو پیر لری لاکن پراچی دفارسی یو کلتوری دیالکت بلل کیدا ی شی .

داو دپروفیسر مارګین متیرین دمقدمی لنډیز :ـ زهبه په وروسته نو نینیکی خیر نو کښی داوښیم چه پراچی ژبهیوه باختری ژبه دهاود باختری نورو ژبوسره د یره خپلوی اود ( پیرسیك ) ژبوڅخه دیرهلری ده ـ دغهلر بوالی دګرا مر په ساحه کښی

هم موجود دی.

## فونیټیک:

په پراچي کښې دغه لاندې غږونه موجود دي:

الف: (ما-مور) زور - (هه-هه، هه‌وکی) زورکی (سامړ-سنی)، ب (بالو-ماشوم).

پ: (پون-(مجهول واو)-پانه) ت (سندوت-سندته) (نیشت-پوزه)

ج (جینج -میر من) چ-(چړو-لویدل )څ- (پهینڅ -پنځه) خ -ا ډ یره لږه

لـيد ل کيږ ی لـکـه: ( ا یـنـڅـو - شـا ر بـل) خ (خـا - مـيـږ ه )

د (دی - دوه) ډ ( کینډ -پتی ) ر (رغام -پسر لی ) ړ ( میږ - مږی ) ژ ( ژو- یو ).

س (سړ- کال )ش (کاشتی - نجلی) غ (اغو- راتلل )ف (افتیر-ترور) ك (غوزوك-وړوکی ) ګ (ګنیم -غنم ) ل (سالو- ساما) م (ما یش -انسان )ن ( زبان -ژبه )-

و ( معر وف) نغو ن - ډ و ډ ی - نغن) و (مجـهـو ل) کـو ږ و- کـړ ل ) ه

( هان- هو) ي (معروفه ) (غوندي-غوندی ) (مجهول ی (لیړی-هلك) نرسه‌ی (آیر-وریخ )

زړ( کر- کار ).

په پراچي کښې سر بیره پردغو غږونو یولړ داسی غږونه هم شته چه دسا کن توری پسی د (ه) غږ لری لکه:

چهو (تلل ، کید ل) دهاړي (پیره ) پهینځ (پنځه ) پهرتو (پلورل ) دهار (غر) بهانډې (بانډه) (۱) .

په پراچي کښې دباختري ژبو دخاصو غږونو (ځ ، څ )موجودیت دمدارنګه د پښتو، دارد و اوهندي ژبو د(ټ ، ډ، ړ ، ڼ) دغږونو موجودیت دا احتمال پیدا کوي له منځه وړي چه دغې ژبې ته دیېر سیلک ګروپ د ژبو سره دخپلوۍ کوم نسبت ورکړ و پراچي د پښتو (او نورو باختري ژبو ) سره خاصه خپلوي لري، چه دلته یې فونیتیکي مقایسه د پښتو سره وړاندې کیږي .

د پراچي یو لوی خصوصیت دادی چه د پښتو دهغه (و) په مقابل کښې د(غ ) غږ لري چه د کلمو په سرکښې واقع شې لکه :

پښتو : وابه ـ واوره وازده ـ وړوکی ـ ورښت ـ ویخ .

پراچي (غیش ـ غرب ـ غازد ـ غوړوك (زوی لکه خسی غوړوك ـ خوربی)غار ـ غیخ .

د پښتو د (ی) دغږ په مقابل کښې کله کله پراچي د( ژ ـ ج ) غږ لري .
پښتو ـ اینځه ـ یاله (ویاله )ـ یو :

پراچي ـ جینج (سیرمن ) ژی ـ zi ـ ژو ـ zu)

د پښتو د زور او زورکي په ځای پراچي کله کله دمجهول یامعروف (واو ) غږ لري:
پښتو ـ پانه ، نغن ـ سرـ تنه ـ تن ـ مخ ـ مړ .

---

1— Cho, dhare, phaenc, pharto, dhor, bhande.

پراچی ـ( پون (مجهول )نغون(معروف) ـسور (مجهول) ـتون (مجهول) مو خ مجهول موړ(مجهول ).

د پښتو دزور کی په مقابل کښی پراچی کله کله مجهوله(ی )لری .

پښتو ـژمی ـ په (ذریعه ) زرکه ـمندته ـستن (دګنـډلو) .

پراچی ـ زیمه ـ پین ـزیر یش ـ میند وت ـ سیچین .

دپښتو د(ړ) دغږ په مقا بل کښی پراچی هم د(ړ) غږ لری.

پښتو ـ سړ ـ زړه (قلب) ـراو ړل ـ کړل ـخو ړل .

پراچی ـموړ و ـ زوړ (مجهول) اوړو، کوړو (مجهو ل) خوړو (مجهول) .

دلتهدا تکی هم د یادولووړ دی چه د (خوړلو)ا وپه د اسی نو ر و فعلو کښی چه دفارسی (ر) غږ لري هلته په کوم و صیغو کښی چه پښتو د (ر) غږ لری د پرا چی هم د(ر)غږ اوپه کوموصیغو کښی چه پښتو د(ړ) غږلری پراچیهم د(ړ)غږلری.

پښتو ـماوخوړ ـزه به یی وخورم ـخوره !

پراچی ـمو ن خوړ ـ انی خریم ـخر!

پراچی دفو نیتیکی اوګرامری مقایسی په رڼا کښی له پیر سیك ګروپ نهبیخی لری ده،خو کله کله دباختری ژبوله ډلی وتای اوپیرسیك ډلی تهنژدی کیږي لکه په لا ندی غږو نو کښی:

د پښتو د (ل) دغږ په مقابل کښی پراچی د(د) غږلری:

پښتو ـلرل ـ لاس ـلس ـاور (دزوی مقا بل) .

پراچي ـ ديرو ـ دوست ـ دوس ـ دوت (۱) .
د پښتو د(غ) دغږ په مقابل کښې د پراچي د(گ) غږ :
پښتو ـ غنم ـ غويی ـ غوز ـ غرګی (ډېره) .
پراچي ـ گنيم ـ گو ـ گوش ـ گير (ger) .

مګر دامقابله هميشه نه ده لکه (پښتو ـ غوښه پراچي غوش) د پښتو د (و) دغږ په مقابل کښې پراچي د(ب) غږ لري :

پښتو ـ ونه ـ وړل ـ وړ ـ و (کومکي فعل) ويريدل .
پراچي ـ بهين ـ بوړو ـ بور ـ بون ـ بهير کو . (۲).

د پراچي بل خصوصيت دادی چه د(ش) غږيې د پښتو دلويديځې لهجې د(ښ) په شان سخت ويل کيږي. بله داچه د(ش) له غږ ه وروسته د(ت) غږ نه راځي ـ بلکې په (ټ) اوړي لکه:

کاشټې (نجلی) او شټ (اته) نيشټ (پوزه) ا شټا و (گيده) دوشټ (ديوال) کاشټ (لرګی) ووشټ (کټ) بهشټو (سټړی) .

د ګرامري مقايسې لەمخې پراچي د پير سيك ګروپ نه بيځی لری اوباختری ژبو ته ډيره نژدې ده لکه: اضافي او صفتي ترکيب د متعدی ماضي فعل تصريف او نور.
يادونه: د پراچي بشپړ ګرامر او يولړ متنو نه د (۱۳۵۰) کال د کابلی مجلې په پولسمه او د و لسمه گڼه کښې وړاندې شوي د ي . دلته د پرا چې دمتن

1— dero—dost — dos—dot.
2— bhin—boro—bor — bherko.

**پراچی ژبه**

دځرګندولو پهغرض یوه لطیفه وړاندی کیږی :

مردسی مه غاریکه دوعا واشتي بین (۱) مکتبیان هستن خو پین برته (۲) ظر یف کهجی چی باله کها واشتین (۳) جري تادعا کنته غاراوزکه (۴) چهی کون چی ای بيګناهن (۴) ایوهانه دعازك قبول چهمیکا له (٦) ظر یفجري اګربالانه دوعا زك قبول چهي با (۷) ژومعلم مه دهرم نهاوزاوبا .

ترجمه :

خلك دباران دوعا ته روان وو (۱) مکتبیان یی له ځانه سره بیول (۲) تو کمار پو ښتنه وکړه چه ماشومان چیرته بیا بی (۳) ویی ویل چه دوعا وکړی چه باران وشی (۴) ځکه چه دوی بی ګناه دی (۵) د دوی دوعا زر قبلیږی (٦) تو کمار و ویل که د ماشومانو دعا زر قبلید لای (۷) یومعلم بههم په زمکه نه وپاتی شوی .



# پامیری ژبې

کله چه علم د تاریخي، جغرافیوي او مقایسوي ـ تاریخي ژبپوهنې په اصولو د پاختري او پېر سیك ژبو تر منځه برید ونه ټاکي پامیری ژبې د باختري ژبو په لړ کښې ځرگند ځای نیسي.

پامیری ژبې د دغې اریایي لرغوني سیمې په غولي کښې پیدا شوې، روزل شوې او د پامیر او دغه ورځیرمه سیمو په غیږ کښې یې لاتر اوسه ځان سا تلی دی.

د ژبنیو روابطو او خپلوۍ له مخې په یوه گروپ کښې ټولی پا میری ژبې راټولول یوه اصطلاح ده. تر اوسه لا دا په یقیني ډول ځر گنده نه ده چه د غه

تولی پامیری ژ بی دیوی لرغونی چینی (منبع)نه رازبریدلی ،بیا ځانګی ځانګی شوی او که‌دآر یایی لرغونو ژ بو بیلی بیلی پاتی شوی دی چه دځانګړو ځانګو په حیث یی ځان ساتلی دی .

د پامیری ژ بو متخصص جارج مارګین ستر ین ددغوژ بوچینه یوه‌نه ګڼی ،دی لیکی: (د تو لو پامیری ژ بوله پاره دواحد فونو لوژ یك سیستم پیدا کول ا مکان نلر ی یوازی په‌خو فو نیتیکی خصو صیا تو کښی دوی سره ګډ ون‌لری ، په هغی کښی هم‌دوی کله کله‌سره جلااود نو رو ژبو مثلاً پښتوسره په یو کتار کښی د ریږی(۱) دلته با ید یا د ه شی چه د ما رګین ستر ین له‌دغی‌نظر یی نه ز یات کلو نه تیر شوی‌او د ا ورو ستی نظر یه نه‌ده . ترهغه وخته په پامیری‌ژ بو کښی‌مطا لعه لږه شوی او بیخی لږ سواد ورکښی‌ر ا ټول شوی وو ـ مثلا یا زګو لا می ژ بـه تقر یباً ځیرل شوی نه‌وه ، دپامیری‌ژ بو ترمنځه فونو لو ژ یك بر یدو نه‌نه ووتیا کل شوی،خصوصاًدغر یز و (صا یتو) مقایسه‌هیڅ نه وه شوی· وروسته دژ بپو هانو اومحققینوله‌خوا په‌دی باب ډیرمواد را ټول شوی‌اوغږیزبریدونه‌یی‌تیا کل‌شوی‌دی.

ددوی‌ژوره مطالعه اوطبقه بندی ځیړونکی ته‌داډ ورکوی چه د وی له یوی ونی‌بیلی‌بیلی ځانګی اوله یوی‌چینی‌څخه پیداشوی و بو لي چه و ر و سته یی ځانګړی‌تکامل کړی‌دی .

---

(۱) ـ دجارج مارګین ستر ین ـ تا لیف(ا یند و ا یر ا فین فر و نتیر ژ بی )، دو یم ټو ك (۸) مخ .

ددغسی خپلوا نو ژ بو تر منځه کله کله د فو نو تیکی سیستم د سمو ن ناځرګندوالی دخپل تکامل په وروستیو مرحلو کښی منځ ته را غلی وی.

دنورو پامیری ژ بو په لړ کښی ز یاته خپلو ی دشو غنانی ژ بو تر منځه لیدل کیږی داګروپ له څلور ژ بو څخه عبارت د ی .

۱ ـ شو غنانی ژ به (دباجووی د یالیکت په شمول) .

۲ ـ روشانی ژ به ( دخو فی د یا لیکت په‌شمو ل ) .

۳ ـ بار تنګی ژ به ( دآروشوری‌د یالیکت په‌شمول )

۴ ـ سر یکو لی ژ به .

ددغو څلور وژ بو سته یوه ده چه‌د ( عمومی شوغنانی ) په‌نا مه‌یادیدلای شی دنورو پامیری ( واخانی،ا شکا شمی ، مونجا نی ، یازګو لامی ) ژ بو په لړ کښی شوغنانی ګرو پ ته یازګو لیامی ژ به ډیره نژ دی ده . (۱)

دلته باید یاده‌شی چه دنورو پامیری ژ بو په‌لړ کښی پښتو دمونجانی‌سره نسبتاً ز یات نژدیو الی لری چه مقایسه به یې پخپل ځای په‌لنډ ډول و ړاندی کړو. دآر یا یی ژ بو محققین عقیده ښکاره کوی چه‌پښتو دمو نجا نی اوپامیری نو رو ژ بو

---

(۱) ـ په‌د ی باب ( دشو غنانی ژ بو دګروپ سره دیازګولا می نسبی خپلوی) نومی کتاب دسو کولو واتالیف مقدمه وګو ری.

ترمنځه موقعیت لری (۱)

**د پامیری ژبو تاټوبی :**

د ژبپوهنی په اصطلاح د پامیری ژبو نه داینه و ارو پایی ژبو هغه اریایی گروپ مطلب دی چه په پامیراوو رخیر مه سیمه کښی پری خبری کیږی. داسیمی په لاندی ډول دی:

د پنج سین اود هغه د معاونینو په غاړه خصوصاً د افغانستان او شوروی غرنی بدخشان په سیمه کښی اودهغوی سره د کشمیر په گاونډی سیمه کښی، جزا د هند په شمال غرب بالاخره د سین کیان په پامیری برخه کښی.

**پامیری ژبی په دی ډول دی:**

۱- دشوغنانی-روشانی ژبو گروپ (دشوغنانی باوجووی اوروشانی-خوفی لهجو په شمول چه د پنج په دواړو غاړو اودخوف په دره کښی پری خبری کیږی). بارتنگی او اروشوری ژبی (د پنج د ښی معاون، بارتنگ سین په غاړه) سریکولی ژبه (په سین کیان کښی د تاشقرغان دسین اودهغه دمعاونینو ار چه او تپنزیف په غاړه، دتغامه اودبورونگسول په درو کښی.)

۲- یازگولامی ژبه (یوازی دشوروی په پامیر کښی د پنج د ښی معاون یا زگولام په دره کښی).

---

(۱) - په دی باب د (ی . زاروبین) تالیف چه (دمونجانی ژبی خصوصیت) نومیږی ۱۲۹ مخ وگوری.

۳- واخاني ژبه (د پنج په بره خوا په دواړوغاړو او د کشمير ديرخون د سين په غاړه اودهند په شمال غرب کښې دخونزه نوسی سین په غاړه ، په سين کيان کښې دتا شقرغان دسيند په غاړه او دسريکو ايانو په جنوبي سيمو کښې پرې خبرې کيږي) .

۴- اشکاشمي ژبه (دپنج په هغه سيمه کښې په دواړو غاړو چه د پنج سين دلويديځ نه د شمال خواته دخپل جريان سمت بدلوی، همدارنګه دافغانستان دسنګليچه په سيمه کښې) .

۵- مونجاني ژبه :(دافغاني پاميردسونج د سين په غاړه چه د کوکچې يوه سرچينه ده، همدارنګه دلوت کوه (د کونړ دسين ښی مرستيال) چه (ايدګا) ديا ليکت ورکښې موجود دی .

۶- وانچي ژبه :دا ژبه په موجوده وخت کښې دهغولړ شمير کلماتو په برکت شهرت لری چه لومړی په (۱۹۲۴) کال کښې دا ی. ای زاروبين او بيا د ا. ر زوزينفلد Rossenfeld له خوا وړاندې شوي وي (داژبه پخوا دپنج دښي سعاون وانچه په غاړه موجوده وه) .

۷- دسرګولامي ژبې دموجوديت په باب دمحققينو تخمين هم شهرت لری چه (دفيض آباد ختيځې خواته دسرګولام سين په بره خوا کښې موجوده) او د پاميري ژبو په جمله کښې ګڼله کيږي .

پاميري ژبې دوړواړو سونو ژبې دی .ددوی په لړ کښې خورا لوی اولس دشوغناني

روشاني ژبو ویونکي او واخانیان دي. په شو غناني - روشاني ژبو دو یو نکو شمیر دځلویښتو پنځو سو زرو په شاوخوا کښې دي. اودو ا خا نیانو شمیر (۲۵-۳۰)زر وپه خوا او شا کښې د ی.

په پاتې تولوپامیري ژبو یوازې څلور څلورنیم زره کسان خبري کو ی.

تولې پامیري ژبې لیك نه اري. دروانې پیړۍ په دیرشو کلونو کښې دشو غنا نی اوواخاني ژبو دپاره دلیك دمنځ ته راوړلو کوښښونه وشوخوسطلوبه نتیجه یې ورنکړ ه.

په معاصروخت کښې دشو روی پامیریان په تاجکي ژبه سریکولیان په اویگوري ژبه او افغاني پامیریان په پښتو او دري ژبه زده کړه کوي. همدغه دری ژبې د پامیري ژبو ویونکوترمینځه دافاد ی او استفادې ژبې هم دي، ځکه چه خپله پا میري ژبې سره ډیري لیرې دي او دیوې ژ بې و یو نکي دبلې ژبـې دو یـونکو سره په نورو ژبو نه پوهیږي.

## دپامیري ژبو دمطالعې اوزده کړې تاریخچه:

د پامیري ژبو دمطالعې اوزده کړې تاریخ له سلو کلو نو او ړي. د(۱۹) پیړ ی په دوهمه نیما یي کښې لو مړي ځل په پا میری ژ بو خصوصاً په وا خانې او پیا په سریکولي یووړو کی قاموسي لست منځ ته راغی .له هغې وروسته په(۱۸۷۶) کال کښې انګریزی محقق ر. شا و (R. Shou) لو مړ ی ځل د وا خا نی ا و سریکولي ژبو دګرا مر دری متنونو ، د هغوی تشریح دواړه قاموسي لست په شمو ل یووړو کی اثر خپور کړ .دپامیري ژبو په باب د مطا لعې دپا رهٔ ددغه محقق پلټنې دډیروخت د پاره یواز ینی منبع وه. ددغه پوهٔله خوا تول شوی سواد د دوی تر منځه

تاريخي مقايسوي او ايتيمالوژيك تحليل يا دراتلونكو نورو محققينو لكه . گ . زليمان (K.G. Zaleman) و. گيګر W. Ge iger اى اى زا روبين I.I. Zarubin مارگين سترين اونورو پوهانو داستفادې وړو گرځيدل .

په (۱۸۸۳) كال كښې چه د . ل. ايوانوف په پامير كښې گرزيده دشوغناني ژبې په باب يې څه يادداشتونه وليكل ، مگرڅه رنگه چه نوموړي په دې باب متخصص نه و خپل ياد داشتونه يې دجغرافيې ټولنې ته وړاندې كړل او هغې يادعلومو اكادمۍ ته وسپارل چه په نتيجه كښې په (۱۸۹۰) كال كښې دروسيې دعلومو اكادمۍ له خوادشوغناني-اوروشاني ژبو په باب كتاب (دشوغناني ژبې د د . ل . ايوا نوف قاموس ) خپور شو .

زموږ د پيرې په سر كښې دلوموړي ځل دپاره يو بله ژبه ديازگو لامي ژبې په نامه دپاميري ژبو په علمي اصطلاحاتو كښې يادشوه . په دې ترتيب چه په (۱۹۰۷) كال كښې د . م . س. اندر ييف له خواد (۱۸۰) فعلو نو لست جوړشو .

په (۱۹۱۳) كال كښې دمنځني اسيا دمطالعې په باب د روسي او فرانسوي كډې كميټې له خوادر. گاو تيوټ —R. Gauthiot) او اي. زاروبين په گډون پاميرته يو هيئت وټاكل شو چه هيئت د خپل ماموريت په نتيجه كښې ديازگو-لامي اومو نجاني ژبو په باب مواد را ټول كړل. خصوصاً زا رو بين د روشاني ، بارتنگي او اروشوري ژبو په باب ډير زيات مواد هغه وخت را ټو ل كړ ل چه په (۱۹۱۵ - ۱۹۱۷) كلونو كښې په پامير كښې واود همده له خوا دلوموړي

ځل د پاره د پامنیو ژبونو مونه په علمي اصطلاح کښې ننوتل.

همدارنګه دنوموړي له خوا د لــو مړي ځــل دپاره دایشکاشمی ژبې متنونه راټول شول-نوموړی لومړي شخص وچه دپامیری ژبو فونیتیک ته یې جدي پاملرنه وکړه.

د پامیری ژ بو په باب ډیرښه او په زړه پوري مواد په (۱۹۲۸) کال کښې دسوید نی ژ بپوه شیلډ- H. Shold له خوا را ټو ل شول چه دغه موا د بیا د مارګین سترین او نورو محققینو له خوا د پامیری ژبو د مطا لعې په باب د پراخې استفادې مورد و ګرزیدل.

دپامیري ژبو د تحقیق او پلټنې په تاریخ کښې ناروېژي ژبپوه مارګین سترین خورا لوړ مقام لری. دغه پوه له (۱۹۲۸) کا له را په دې خواتر ننني ورځــې پوری په دی باب ډیر ښه اثار خپاره کړ ی د ی چه تر ټولو ښه او اساسی اثر یې دسونجانی، واخانی او ایشکاشمی ژبو په با ب لیکل شوي او په (۱۹۳۸) کال کښې چاپ شوی دی.نوموړی پوه ډلومړی ځل دپاره ددغو ژبو مطالعه دتاریخی پلان په اسا س وکړه. همدغه پوه لو مړ ی ځل دا یشکا شمی ژبې یو معتبر اوپه زړه پوری د یالیکت دسنګلیچ په نا مه وښوه.

پروفیسر مارګین ستر ین ددغو ژبو مطا لعې دافغا نستان او برتانوی هندپه سیمو کښې کړې دی، همیشه نه د ی بر یا لی شو ی چه خپله د پا میر ی ژ بو سیمو ته لاړ شی-بلکی ده خپلې کتنې په دی باب د هغو پامیر یانو سره دتماسونو

په ذریعه پښېړی کړی دی، چه دځینو عواملو په اثر ښاروته تللي وو.

بل دپامیری ژبولوی محقق و.اس سوکولو واده چه لوسړی ځل یې دهغوتولو پامیری ژبو دفونیتیك دمطالعې دپاره د سمعې الا توخخه کار وا خیست چه د شوروی اتحاد په سیمه کښې واقع دی. نوموړی د روشانی، خوفی او برتنګی ژبو په باب ډیر سواد راټول او خپاره کړل. د همدې له خوا دشوغنانی روشانی ګروپ طبقه بندی وټاکل شوه.

له (۱۹۵۶) کال نه را په دې خوا د ت.ن. پخالینه له خوا دایشکاشمی ژبې په باب سواد خپریږي. په (۱۹۵۹) کال کښې دی دایشکاشمی ژبې په باب یو منوګراف ولیکه چه ددغې ژبې دفونیتیك او ګرامر ترسیم ته وقف او دمتن او لنډ قاموس ضمیمه هم ورسره وه. همدارنګه نوموړی په(۱۹۵۳-۱۹۵۵) کلونو کښې په واخانی ژبه زیات سواد راټول کړل.

نوموړی وکولای شول چه په (۱۹۵۶-۱۹۵۷) کلونو کښې سریکول ته لاړ شی او په سریکولی او واخانی زیات مواد راټول کړي او دسریکولی فونیتیك اوګرامر په باب یې یو منوګراف هم ولیکه. د پخالینې له خوا یو روسی-سریکولی قاموس خپور شو.

په(۱۹۶۹) کال کښې دنوموړی له خوا یو اثر خپور شو چه دټولو پامیری ژبو په باب لنډ معلومات لري .

په(۱۹۶۰) کال کښې دواخانی ایشکاشمی او سونجانی ژبو لغوی مواد د افغانی پښتونکی شاه عبدالله بدخشی له خوا راټول کړل شول چه د پښتو ټولنې له خوا دیوه قاموس په شکل خپاره شول. دده له خوا یو نسبتاً وړوکی قاموس جوړ شو چه په هغه کښې په پامئیو پامیری ژبو علاوه د پښتو او دری کلمې هم په مقایسوی پلان کښې شوول شوی دی.

په وروستیو لسو کلو نو کښې د پامیری ژبو شوروی اتحاد دپلټونکو په لړ کښې خپله د دغو ژبو خصوصاً د شوغنانی روشانی ګروپ و یونکو ځای ونیو ددغو ژبو د ګرامر و نوءفونیتیك او نورو په باب یی په بیلو بیلو وختو کښې سونوګرافونه او علمی آثار خپاره کړل او په دغه ډول د پامیري ژبو د مطالعې تاریخچه تقریباً د سلو کلونو عمرته رسیږي.



# شوغناني
# او
# روشاني ژبې

د پامیري ژبو په لړ کښې د شوغناني – روشاني ژبو ګروپ مهم ځای نیسي. په دغه ګروپ کښې دغه ژبې او دیالیکتونه شامل دي:

الف : شوغناني ( د باجوي د یالیکت په شمول )

ب : روشاني (دخوفي دیالیکت په شمول )

ج : بارتنګی .

د : اوروشوري ( کله د بارتنګی د دیالیکت په حیث هم پېژندل کېږي )

هـ : سریکولي .

د دغو ژبو او دیالیکتونو ترمنځه نژدېوالی او خپلوي تر دې حده ده چه ویونکي یې په آساني سره یو تر بله پوهېدلای شي. د دغې نژدې خپلوۍ له مخې کېدای شي دغه ټولې ژبې د یوې ژبې بېل بېل دیالیکتونه وبلل شي، خو د هغې عامې ژبې نوم نشته چه دغه ټولې یې ځانګې او دیالیکتونه وګڼل شي. د دغو ټولو ژبو په ځانګړي او مساوي ډول

پر اختیا سو ندلې او یوه دبلې د یا نیکت نه شو ګڼلای .

سریکولی ژبه له خپله ګروپ په لږ څه لرې شوې ده او علت یې هم دا دی چه تقر یباً سل کاله کیږي چه د خپل ګروپ سره یې تماس نه شلید لی دی .

دپامیري ژبو ددغه ګروپ علمي سطالعه او پلټنه دتیرې عیسوي پیړی په دویمه نیما یی کښې در. شاو،ا و د.ك . ګك . زلیمان له خوا شروع شوه .

په ( ۱۸۹۵ ) کال کښې دزلیمان اثرچه ( د ایوانوف شو غنا نی قاموس ) نومیده خپور شو .

دا د هغو موادو سیستما تیك تجزیه او تألیف و ، چه د یوه پلټونکی ایوانوف نومی له خوا را ټول شوي وو ، دد غې ژبې اساسی مطالعه او پلټنه په ۱۹۱۴ کال کښې زا روبین شروع کړې او په دې باره کښې یې ددغې ژبې دګروپ دپوره پیژند نې په اساسو نه کښېښو د ل. په ۱۹۲۸ او ۱۹۴۲ کلونو کښې پروفیسر مارګین ستر ین د شوغنانی ژبې دتاریخ په باب دوه مقالی خپرې کړې ( ۱ ) .

---

1— G. Morgenstierne, Notes on Shughni, — (NORSK Tidsskrit for Sprogvidenskap) Bd i, Oslo, 1928th, Demonstrative Pronouns in Shughni, NTS Bd. 13, Oslo, 1942.

بیا په ( ۱۹۵۳ ) کال کښی د و . س . سوکولووه لهخوا دشوغنانی خصوصاً د فونیتیک په برخه کښی یو د یرښهاثر خپور شو . د همدغی محقق لهخوا دشوغنانی — روشانی ژبو درسته طبقه بندي هم وشوه .

سربیره پر دغو یادو شویو محققینو د شوغنانی - روشانی ژبود گروپ په باب یولړ نورو محققینو هم څیړنې او پلټنې کړې دي چه ددغه گروپ ژبو مطالعه او څیړنه یې آسانه کړې ده .

دشاه عبدالله بدخشی ( دافغانستان دځینو ژبو اولهجوقاموس ) چه د پښتو ټولنی له خوا په ۱۳۳۹ کال کښی خپور شوی دی دپامیری نورو ژبو په څنګ کښی دپښتو او شوغنانی په لغوی مقایسه کښی ښه مرسته کوی .

## گرامرته یوه کتنه :

دشوغنانی - روشانی ژبو د گروپ ټول د یا لیکتونه ( پرته له سریکولی ) داسم ذات مذکراو مؤنث کټیکوری لری .

دسریکولی اوروشوری نهپرته ددغه گروپ پهټولودیالیکتونو کښی دجمع علامه ( ین — مجهولهې + ن ) ده .

داضافی او صفتی ترکیب پهبابددغو گروپژبو ډول اوطرز دنورو باختری ژبو پهشان دی . یعنی مضاف الیه اوصفت دپښتوپهشان دمضافاوموصوفنه ترمخه راځی .

شخصی ضمیرونه دمتکلم اومخاطب صیغی لری ا و د غایب ضمیر په ځای اشاري ضمیر کار ور کوی .

مفرد شخصی ضمیرونه د وه ګراسري ( لوسړي او د و یم ) حا لتو نـه لري مګر جمع یې تغییر نه منی .

| شو غنانی | روشانی | پښتو |
|---|---|---|
| واز | ا ز | زه |
| ماش | ما ش | موږ |
| تـو | تـو | تـه |
| تمه | تمه | تاسو |
| مـو | مـو | مـا |
| ماش | ما ش | مو ږ |
| تـو | تـا | تـا |

دواتړن له مخی اشاری ضمیرونه ( دنژ دې دمنځنی او دلرې دپا ر ه ) د رې صیغی لري :

| شو غنانی | روشانی | پښتو |
|---|---|---|
| یو | یا | د ا |
| و اذ | و اذ | دوي ، دغه (جمع) |
| دي ( معرو فه ي ) | د ی ( نر مه ي ) | د غه |
| می | سای | هاغه ، هوغه |

نورضمیرونه په دې ډول دي :

چیدوم ـ ( کوم )

چیز ( څه ، څه شی )

چا ی ( څوك ) چی ـ ( چا ، د چا )

ار ـ ( هر )

**فعل :**

دشوغنانی ـ روشانیژبو په ټولو دیا لیکتونو کښی فعل (دماضی اودحال) دوه اساسونه موجود دی. دلته دفعل دتصریف دښکارندوی په ډول د( لو و ) لو ول ویل ـ **لوستل** ( ۱ ) دفعل تصر یف وړاندې کیږي .

دحال او مستقبل له زمانه :

| | |
|---|---|
| لو وم | لو لم،وایم ، وبه لولم |
| لو وا م | لولو ـ وایو ،وبه لو لو |
| لو و ي | لو لې ـ وایې ، و به لو لې |
| لو و یت | لو لیء ـ وا یی،وبه لولیء |
| لو و د | لو لی ـ وا ئی( مفردغایب ) |
| لو و ین | لو لی ـ وائی ( جمع غایب ) |

---

( ۱ ) ـ دغه فعل چه دویاو معنا ورکوي په پښتو کښی دلوول(لوستل) سره (لکه شاهدي لول)د ریښی خپلوي لري .

ماضی :

اوم لوود          ما لو ست

ا م لو و د          مو ړ لو ست

او په دغه صو رت متعدي فعل په ماضی کښی یوازې دفاعل تغیرغواړي نو ر دپښتو په شان په فعل کښی تغیر نه راځی .

ادات :

۱ ـ دعطف دجمع په ځای ( ا ت ـ ا و ) راځی چه دبغلان دسره کو تل په کتیبه کښی د ( او ته ) په بڼه لیکل شوی د ی مثلاً : یاپوندتیزدات‌سورلوود ـ هغه په لار ځی او سندره وایی .

۲ ـ دتابعی جملود وصل دپاره ( څه ، که ) راځی چه د پښتو د ( چی ) معنا و ر کوي . لکه :

( چیر څه نه که ماش چیز خوران ـ کار چه نه کړې مو نږ به‌څه خورو .)

۳ ـ دتر دید له پا ره ( یو ـ یا ) استعما لیږي .

۴ ـ دپښتو د ( نو ) په ځا ی (ته) ا ستعما لیږي . ( اید ته چیز لو ود ـ هغه نو څه و یل ) .

۴ ـ اوا ـ ( هو ) نای ، نا( نه ، نا ) .

دلته‌دپښتواو شو غنانـی تر منځه لـنډ ه فو نیتیکی مقا یسه وړاندی کیږي دروشانی سره هم ډیر تو پیر نه لري .

دپښتو د ( ښ ) غږ چه کله‌دفارسی د (ش) په‌ځای‌راځی‌په هغه‌صورت کښی په‌شوغنانی کښی د ( ښ ) غږ وي .

پښتو : اوښکه ـ دښت ـ ترښځ ( تښځ ) ـ ور یښم ـ واښی

شو غنا نی : یو ښك ـ دښت ـ تار ښ ـ وریښم ـ واښ

کله دپښتو د ( ش ) دغږ په مقابل کښې شو غنا نی د ( ښ ) غږ لری:

پښتو : شپه ـ شو ده ـ شرم — شوی ( بیستی )

شو غنانی:ښهب ـ ښوود ـ ښرم ـ ښو نیځ

دپښتو د ( ږ ) دغږ په مقابل کښې شو غنانی د ( ګ ) غږ لری

پښتو : خوږ ( خوند ور ) ـ شپږ ـ غوږ ـ غږ که( غژ که )

شو غنانی:خیګ ـ خوګ ـ غهګ ،غیګ

دپښتو د ( ل ) دغږ په مقابل کښې چه دکلمو په سر کښې وی شوغنانی

دنورو باختری ژبو په شان د ( ذ ) غږ لری او په پرسیك ګروپ کښې (د)لری .

پښتو : اس ـ لو ګی ـ لری ( واتن ) ـ لوشل ـ لور(دلو کولو)

شو غنا نی : دیس ـ ذود ـ ذر ـ ذوزداو ـ ذیر و

دپښتو د ( ړ) دغږ په مقابل کښې شو غنانی د ( رد ) ، کله د ( رذ )

غږ و نه لری :

پښتو : زړه ( قلب ) ـ واړ ( تول ) ـ زیړ

شو غنا نی : زارد ـ وارذ — زیر د

دلته د روشانی یو وړو کی متن دسو کولووه دمتن او ترجمې سره سم وړاندی کیږی

áz-um ik-day wáxt-andi
wūvd-sōlá vid. yi miv az-at
yi-Lávgi xawričēn-am pánd-
ti nasč-ata, náqli ta kinám

تشریح :

از — ( زه) ـ دمفرد متکلم ضمیر په لومړي حالت کښی .

اوو م-وم ـ دکومکی ( وید — وول ) غیرمستعمل فعل د مفرد متکلم
دماضی صیغه ده یعنی ( زه وم ) .

ایك ـ دتائید اوفشار اچولو ادات دی .

دي ـ ( دغه ) دمفرد مذکر مخنی اشاري ضمیر په دویم حال کښی
لومړی حالت یی ( اید ) دی .دپښتو د( دغه) معنا ورکوی .

وخت ـ وخت زمانه دعربی( وقت)

اندي ـ دپښتو د ( کښی ) په‌معنا چه دعمل زمان یامکان ښیي .

اوود ـ عدد دی د ( اووه‌په معنا )

سوله — (کلن ) ( سول )دنوی‌فارسی ( سال ) داویستا ( سرده) اودپښتو
په (پسرلی-په+سر+ لی ) کښې داریښه لیدل کیږي .

اته ـ ( او ) دسره کوتل په کتیبه کښی( اوته )، د عطف ادات .

ې - ( يو ) بشپړه کلمه (يېو ) ده .

ميث ( ورځ ) داکلمه هم لرغونی با ختري ده چه په سوغدي کښې ميث ( معروفه ي ) په خوارزمی کښې دمېث ( مجهوله ې ) دورځ معنالری.

يی - لاو- کی - ( يوځو ) داله ځوکلمو مرکبه کلمه ده چه د ( يو ځو ) معنا ورکوی .

خاوريچين ( هلکان ) خاوريچ ( هلك ) ،(اين ) دجمع وروستاړی دی .

ام - ( وو ) دکومکی (ويد ) دماضي فعل دجمع متکلم متصل ضميردی.

پند - ( لار ) داکلمه چه دپښتو په کلاسيك ادب کښې زياته راغلې ده تقريباً په ټولو باختري ژبو کښې ژوندی اوپه اويستاکی د ( پنتای ) په بڼه موجوده وه .په پښتو کښې د ( تللو ، سفر ) په معنا ده ( ۱ ) .

تی - ( په ) په يوه شی دپاسه دواقع کيدلو دښوولوادات دی .

نقل - ( کيسه ) دعربی نقل .

---

( ۱ ) - دا کلمه د اسی استعمال شوې ده :

په ريابه نيم قدم په وړاندې نه شي - که درست عمرلکه سود گانې پند کا (حسين)

دراستی په سپينه لار خنډ و خار نشته - په ليمه لکه حباب کوم ښدونه . (شيدا)

کنیم - ( گو و ) ریښه یی دلته ( کین ) دی .

ناستچه - ( ناست ) د غه کلمه په پامیری ژبو کښې په همد غه ډول

موجوده ده .

ترجمه :

زه اووه کلن وم په هغه وخت کښې ـ یو وخت د نورو هلکانو سره په لاره ناستوو

کیسه مو کوله.



# اشکاشمي ژبه

اشکاشم دافغانی‌بدخشان په شمال کښې د اولسوالی په سو یه د یوې سیمې نوم‌دی. دغه‌غرنی سیمه‌چه دهندوکش په‌شمالی لمن کښې پرته ده طبیعی ښکلی منظرې اوزړه‌وړونکی نوری اوژوری لری. علاوه پر افغانستان د شوروی اتحاد په بدخشان کښې‌هم یو وړو کی کلی شته چه‌په اشکاشمی خبرې کوی او (رن) نوسیږی چه د اشکاشمی ژبې (۴۰۰) کسان ورکښې ژوندکوی. په افغانستان کښې داشکاشمیانو شمېرله یونیم زروګړو څخه تېری کوی. اشکاشمي ژبه په‌دریو ځانګو (خاصه اشکاشمی، زیباکی اوسنګلیچی) باندې و یشل کیږی.

## دژبې څیړنه

داشکاشمي ژبې په باب که څه هم اوسنۍ معلومات دنولسمې پېړۍ په وروستي څلورمه کښې دانګریزي محقق (ر. شاو) له خوا وړاندې شوي وو چه (۱۱۶) لغات دده د مشي فیض بخش نومي سړي له خوا دعربي الفباء په اساس لیکل شوي وو، خو ددغې باختري ژبې اساسي څیړنه د شلمې پېړۍ په لومړۍ څلورمه کښې شروع شوه .

داشکاشمي دلوېدلو (زیباکي او خاصي اشکاشمي) په باب لنډ معلومات د ګ. ګریرسون له خوا په (۱۹۲۰) کال کښې د (اشکاشمي، زیباکي او یاز ګولامي) په نامه خپاره شول . مګر دغو معلوماتو څه ناڅه نیمګړتیاوې او اشتباهات لرل ځکه چه دژبېو موادو په راټولو لو کښې نوموړي محقق خپله اشکاشم (زیباک) ته نه و تللی اودنورو په ذریعه یې مطلوب مواد په چترال کښې راټول کړي وو.

داشکاشمي په باب ډېرښه معلومات دناروېژي محقق مارګین سټر ین له خوا په (سنګلیچي - اشکاشمي) نومي اثر کښې چه د کتاب نوم یې (اینډو ایرانین فرونټیر لنګو یجیز) دی په دریم ټوک کښې وړاندې شول ، په هغه کښې د سنګلیچي د موادو په ضمیمه کښې د اشکاشمي د دریو دیالیکټونو مواد هم راټول شوي وو .

مګر په دغه اثر کښې داشکاشمي په اساس دیالیکت (خاص اشکاشمي دیالیکت) باندې دومره روښنایي نه وه اچول شوې چه او سنۍ ته بشپړ قناعت ورکړي .

داشکاشمی په باب د شوروی محقق ی . ی . زارو بین سواد چه د شوروی اشکاشمیانو دژ بې به باب په(۱۹۱۵) کال کښی راټول شوی وو په زړه پورې وو خونیمګړتیائی داوه چه په هغه کښی دا شکاشمیانو د عامیانه خبر واترو په باب معلومات بشپړنه ووچه داهم دژ بې دیوه محقق له پاره اهمیت لری .

داشکاشمی دفونیتک دڅرنګوالی دتثبیت له پاره دو. سرسو کولو وه اثر ډیر باارزښته دی چه نوم یې د(ایرانی او باختری)ژبو دفونیتیك یاد د اشتونه دی .

په (۱۹۵۹) کال کښی دت . ن . پخالینه د اشکاشمی ژ به په نامه یومونوګراف خپور شو . ددغه اثر مواد د غیر و نود تثبیت د آلی په ذریعه ثبت شوی او دهغوی پوره خصوصیات ورکښی څرګند دی. په دغه اثر کښی د ګرامر د څیړنی له پاره دخبرواترو متنونه ثبت اوتشر یح شوی دي . همدارنګه دغه اثر دقاموس برخه هم لری چه دنورو تیرو قاموسونو لغات هم ورکښی درج شوی دی .

په (۱۳۳۹) کال کښی د پښتو ټولنی له خوا دشاه عبدالله بدخشی(دافغانستان د څینوژ بو او لهجو قاموس) خپور شو . چه په هغه کښی دا شکا شمی ، سنګلیچی ددیالیکت لغات د پښتو او څو(نورو پامیری ژ بو ) سره دمقایسی په پلان کښی وړاندې شوی دی .

په (۱۹۶۹) کال کښی دت . ن. پخالینه له خوا د (پامیری ژ بو) په نامه یو کتاب خپور شو، په دغه اثر کښې دنورو پامیری ژ بوپه څنګ کښی داشکا شمی دفونیتیك او ګرامر لنډه څیړنه اوتشر یح اودیوې افسا نې ترجمه وړاندې شوې دی.

**لنډه ګرامری خوا :**

داسم ذات جمع د(و ـ مجهول) په ز یاتیدلو سره کیږی مګر د خپلوانو نومونو جمع د(زورکی + ن) په مرسته کیږی لکه: ولاخ - غر، ولاخو ـ غرونه ـ سولوك میږه ، سولوکن ـ میږ ونه .

ګرامری حالتونه معمولاً داداتو په مرسته افاده کیږی . صفت دفورم په لحاظ داسم ذات سره تو پیرنه لری. البته یولږ صفات شته چه هم داسم ذات هم دصفت او حتی هم د قید وظیفه اجراء کوی . یو ازې له قرینی څخه د هغو وضعه معلومیږی لکه :

(وژ یر)چه د(مابنام، مابنامنی، په مابنام کښې) تولې معناوې افاده کوی. صفت همیشه د موصوف نه تر مخه راځی .

دنسبت له پاره غالباً(ین)سوفیکس استعمالیږی لکه: (بنپنین ـ اوسپنیزداوسپنې) .

په شمیر کښې یوازې ترنهو پورې اشکاشمی خپل اعداد لری او له هغی پورته معمولاً د دری اعداد په کار یږی تر(نهو ) پورې په دې ډول دی .

یوـ ۱ دو ـ ۲ روی ـ ۳ ـ څفور ـ ۴ پونز، ـ ۵ خول ـ ۶ ـ اود ـ ۷ ـ اوت ـ ۸ ناو ـ ۹

شخصی او نو ر ضمیرونه په اشکا شمی کښې په لاندې ډول دی :

از ـ زه، ته ـ ته، مخ ـ مونږ، ته مخ ـ تاسو، مك ـ ما، زما ، فك ـ تا ، ستا ، مش ـ زمونږ ، تمخ ستاسو .

نور ضمیرونه په دې ډول دی .

خك، خوك ـ خپل ـ ام ـ دغه، امون ـ دغه(جمع) اد ـ هاغه، ادوند ـ هماغه

(جمع) او ـ هوغه، اوند ـ هوغه جمع . همدغه ضمیرونه دغایب شخصی ضمیر په حیث هم کار ورکوی .

د فعلي تصریف د نموني په ډول دلته د غژدـ غږیدل، و یل په تصریف په لنډه ډول وړاندې کوو :

په حال او مستقبل کښې :

| اشکاشمی | پښتو |
|---|---|
| غژم | غږیږم (وایم) |
| غژی | غږیږې (ته) |
| غژو | غږیږي (دی) |
| غژون | غږیږو |
| غژو | غږیږئ |
| غژون | غږیږي . |

**په ماضی قریبه کښې :**

| اشکاشمی | پښتو |
|---|---|
| غژ دم | غږیدم |
| غژدئ | غږیدې |
| غژدي | غږیده |
| غژدون | غږیدو |
| غژدوئ | غږیدې |

| اشکاشمی | پښتو |
|---|---|
| غژدون | غړبدل . |
| **ماضی مطلقه :** | |
| غژدوکم | وغړیدم |
| غژدوکت | وغړیدې |
| غژدوك | وغړید |
| او داسی نور . | |
| **ماضی بعیده :** | |
| غژدوکم‌وود | غړیدلی وم (ویلی‌می‌وو) |
| غژدوکت‌وود | غړیدلی و(ویلی‌یی وو) |
| او داسی نور . | |

دغه ادات په اشکاشمی ژبه کښې د خدمتی کلموپه حیث موجود دی . په(په پکښې)فر (تر)سه (له،له‌ څخه) پس (له پاره د . . . پسی) ات(او ـ دعطف‌له پاره) ځی د(چه ـ دتابعی جملو دتړون له پاره کیږی ) .

**دا یشکاشمی دمتن‌ښکارندوی :**

**Vbd nbs vbd, rů vrú-on vbd. db vru cbůk non. ůk vru cb ůk nón-i digar.**

و د ـ ( و ) : دا کومکی فعل هغه‌تیږیکه کلمه ده چه‌په باختري ګروپ کښې د(و ) او په پیرسیك ګروپ کښې د (ب ) په‌غړژوندی ده .

رو ( دری) دا کلمه په او یستا کښې (ذرایه)، سا کی ( خوتنی ) دیالیکت ( درایه) ، د سا کی توشوکی دیا لیکت (درې) ، پښتو (درې)، سوغدي (ذری)، پارتیانی ( هر ي) شوغنانی ، روشانی، بارتنگی اواشوری (ارای) واخانی ( تروی) اود پیرسیك جنوبی‌لویدیځ ګروپ‌په معاصرواو منځنیو ژبو کښې‌د(سه ، سای، شی) په بڼوایدل کیږي .

ورو - ون ( ورونه ) دا هم یوه تیپیکه کلمه ده‌چه په با ختري ژ بو کښې د (و) اوپه ایرانی (پیرسیك) ژبو کښې د (ب) په‌غږ ده .

د(دوه) عدد دی چه اینډو اروپائی ریښه یې شریکه‌ده .

س(څخه) دا کلمه په‌اویستا کښې( هچه) اوپه‌زړه هندی کښې (ساچه) ده چه‌په پښتو کی‌د(څخه) په بڼه ژوندی ده .

اوك : (یو)داعدد‌هم اینډو اروپائی شریکه ریښه لري .

نون - مور- په‌پامیري ژبو کښې دغه ریښه زیاته ایدل کیږی .

دیګر - بل - دا کلمه له دری څخه اخیستل شوې اود (نونی دیګر) تر کیب هم‌د پارسي دی‌ځکه چه‌په اشکاشمی کښې دنوروباختري ژبو په شان مضاف همیشه له مضاف الیه وروسته وی‌ا‌که دغه اشکاشمی تر کیبونه (توت‌خون- دپلارخونه) (ماتوت - زما پلار ).

ترجمه :

وو نه وو - درې ورونه وو . دوه ورونه له یوې موره اویو له بلې موره .

# واخانی ژبه

واخان د افغانستان په اداری تشکیلاتو کښې یوه اولسوالی ده چه د پامیردغرو په نوړو ژورو کښې پرته ده . دافغانستان دواخان نه علاوه په واخانی ژبه یوزیات شمیروگړي د شوروي اتحاد په بدخشان او داولسی چین په سین کیان کښې هم خبرې کوي .

د واخانی یو شمیر لغات او مړی محل د (۹ ; ) پیړی په سر کښې د ۱ . بر نس ه خواخپاره شول .

بیاد عبدالرحیم نو سی سړی له خوا (د واخانی ژ بی قاموس په سیمله ۱۸۶۶ ع)

کال کښې خپو رشو. بیا د ک ت . هایوارډ نومی سړی له خوا په لندن کښې په (۱۸۷۱)ع کال کښې څه معلومات خپاره شول . بیاد ه . و . بیلیو او ج . بیدولف له خواپه (یارقند ته د۱۸۷۳ کال دهیئت راپور) نومی اثرکښې په کلکته کښې په (۱۸۷۶) کال کښې معلوت خپاره شول .

دواخانی په باب دتیرو محققینو په مقایسه « ر. شاو » ښه بهزړه پورې معلومات خپاره کړل ، نوموړي یې د متونو او گرامر څونمونې هم وړاندې کړې چه قاموسی برخه یې هم لرله . داسی معلومیږي چه دده پهتانې به په سین کیان کښې شوې وي.

دواخانی په باب په (۱۹۳۲) کال کښې دمارگین ستړین له خوایو ښه اثر خپورشوچه د (ایندو ایرانین فرونتیرلانگوچیز) په دوهم ټوك کښې درج دی، په څالینه هم په (پامیري ژبی) نومی کتاب کښې په واخانی پوره رڼاچولې ده اوپه د ې باب د(واخانی ژبی) نومی څانگړې اثرلري چه دشوروي اتحاد د علومو اکاډمی له خواپه (۱۹۵۹) کال کښې خپور شوی دی اوپه دغه صورت دو خانی ژبې مطالعه دختیځ پوهانوله خوا پرمخ لاړه اودیرآثارور کښې وخت په وخت خپاره شول .

**دگرامر لنډلیز**

دواخانی اسم ذات مفرد او جمعې دوه صیغی اودوه گرامري حالتو نه لري . دجمع لومړی حالت د(اینست ) یا (ایش)اودویم حالت د(و) وروستاړو په ذریعه جوړیږی دواخانی اضافی ترکیب دباختري ژبو په شان دی نه دپیرسیك گروپ په شان . په دې معناچه مضاف الیه له مضافه ترمخه راځی لکه(ز پترلوپ ـ زمازوی لوی دی) صفت دصیغی لهمخې داسمذات نه کوم توپیرنه لري دترکیب لهمخې دنورو

باختري ژبو په شان دی یعنی صفت له موصوفه ترمخه راځی لکه (لوپخون ـ لوی کور) .

**په واخانی کښی شمیر په لاندی ډول دی:**

یو ـ ۱ بوی ـ ۲ تری ـ ۳ څبر ـ ۴ پنځ ـ ۵ شذ ـ ٦ اود ـ ۷ ات ـ ۸ ناو ـ ۹ ذس ـ ۱۰ ذس یو ـ ۱۱ ذس بوی ـ ۱۲ بیست ـ ۲۰ یی بیست ذس ـ ۳۰ بو بیست ـ ۴۰ بو بیست ذس ـ ۵۰ تر و بیست ـ ٦۰ تر و بیست ذس ـ ۷۰ سد ـ ۱۰۰ .

**ضمیر :**

په واخانی کښی شخصی او نور ضمیر ونه په لاندی ډول دی : وز ـ زه ، مژ ـ ماته، ژه ـ ما ، زسا، تو ـ ته ، تاو ـ تاته ـ تی تا ، ستا ، سك مو ږ ، مور ته سپو (دس په زور کی )ـ زسونږ ـ سایپشت تاسو ، ساو ـ تاسوته ، ستا سو ـ دغایب له پاره اشاری ضمیرونه استعما لیږی .

اشا ری ضمیرونه په دی ډول دی : ییم ـ دا ، ییشت ـ دا (جمع) ـ ییت ـ هغه ، ـ ییتیشت ـ هغه (جمع )یاو ـ هاغه ، هوغه ـ یاویشت هغه هوغه .

نور ضمیرونه په دی ډول دی : کوی ـ څوك ، شت ـ څپل ، خپله ـ چیز ـ څه ، کوم ـ کو م ، توم ـ دومره ـ څوم ، څومره .

**فعل :**

دواخانی دفعلی تصریفا تو دښکار ند وی په ډول دلته د (ښت ـ ویل )دفعل تصریف په دریو زما نو کښی ورانډی کوو :

| **حال او مستقبل :** | **ترجمه** |
| --- | --- |
| ښنم (د«ن» په زور کی ) | وایم، وبه وایم |

| | |
|---|---|
| ښنی | وایی ، وبه وایی |
| ښند | وایی ، وبه‌وایی |
| ښنین | وایو، وبه‌وایو |
| ښنیو ، ښنیت | وایی ، و به وایی |
| ښنن | وایی ، وبه وایی . |

| ماضی قریبه استمراری: | ترجمه |
|---|---|
| ووزم ښنتیء | ماو یل |
| توت ښنتیء | تاو یل |
| یاو ښنتیء | ده ویل |
| یا ساکن ښنتیء | سوږ ویل |
| سا یشتو ښنتیء | تاسو ویل |
| یا ویشت ښنتیء | دوی و یل |

ادات :

په‌واخانی کښی دغه خدمتی کلمی د پریدلوک اوپسلیلوک وظیفه اجرا کوی:

په ـ («دپ» په زورکی) د پښتو د( په ،پکښی ) په معنا. خو غالباً دخه‌دپاسه.

ته ،تر ـ ښکته لاندی په معنا .

ار ـ د(ښکته لاندی خواته د حرکت ) معنا و رکوی .

سك ـ د«س» په زورکی ـ د پورته (هسك)خواته دحرکت او یاموقعیت معنا اصلاً افاده کوی مگر نوری معناوی هم لری .

تو ـ د تر ـ معناورکوی .

پوسلیلو کونه بی هم د ادی :

پرت ـ ترسخه ، پخوا ـ څبان (شاته)، سر (باندی)، بن(لاندی)پلو(ترڅنگه)

بین ( منځ ) .

## په واخانی کښی د عطف ادات :

ښه ـ د جملو د عطف له پاره د ( بیا ) په معنا چه د هم جنسو خبر و نو

ترتیب ښئی .

یا ـ (یا) دتر دید د پاره .

کی ـ (چه) دتابعی جملو دعطف دپاره .

څه ـ ( که) دشرط اونورو دپاره .

## دواخانی د متن ښکارندوی:

Tblwǎ̋tk nətblwətk, trū vrblt
Tblwǎtk. bū vrblt cə i nǻn-ən,
i vrblt cə i nǻn-ən

د دغه متن تحلیل او ترجمه داشکاشمی دمتن په تحلیل اوترجمه کې وگورئ !

# سونجانی ژبه

دسونجان دره دختیځ هندوکش دشمال په ترو کښې پرته ده .دسونجان سین چه دهندوکش له اوړو څوکو سرچینه اخلی دکوکچې ښې مرستیال او په دغه پراخه او لوړ دره کښې دسونجانیا نو (۱۴) کلی ابا د دی ، ددغی دری (پرته له تولو پاس کلی چه کاتیان دی) تول خلك په سونجانی خبری کوی.

دسنګناوول په دره کښې ددوو کلیو او سیدونکی په سونجانی خبری کوی.

د(۱۹۶۷) کال دتخمینی احصائیی سره سم دسونجان او سنګنا وول په دره

کښې داته کلنونه پورته دنرینه وشمیر (۸۶۰) تنوته رسیږی او دټولو نفوسو شمیر یې له دو و زرو ښځه زیات دی (۱) .

دغه‌شمیر مارګین سترین په (۱۹۳۸) کال کښې (۱۵۰۰)تنه ښوولی و. دار غونو تو پو نیمی شوا هدو ښځه داسی معلومیږی چه دمونجانی‌ژبی‌لرغونی تاتو بی همدغه د مونجان دره ده . همدغه ژبه کله دمونجانی او کله‌دخاصی مونجانی په نامه یا دیږی .

دمونجانی یو دیالیکت دایدګا په نامه یادیږی‌چه دچترال په لوتکوه‌نوسی دره کښې ژوندی دی. دلبیدواف دروایت سره‌سم چه‌مارګین سترین هم‌هغه‌سم یللی دلو تکوه سونجانیان اووه نسله‌ترسخه هغه‌وخت چه‌دبدخشان واکمن په‌دوی یرغل وکړ دوی دلو تکوه خواته واړیدیدل‌چه سشریی په لاره کښې ووژل‌شو.

خاصه مونجانی ژبه بیا په خپل منځ کښې د جغرافیی و یش په اثر په دریو ورو و رو دیا لیکتو نو (پورتنی، منځنی اولاندینی) ویشل کیږی‌لاندینی دیا لیکت په شرون ،کاموند ، دشك او د یامبی نوسی کلیو کښې - منځنی‌یی په ویلو ، گاز ، شوی ،پر ی او سرجنګل او پاسنی یی په میینډی ،کلای شاه تیلی ، یوغداګ او پینیم نوسی کلیو کښې موجود دی . ددغو د یا لیکتونو

۱- ( د ختیځ هندوکش ژبی ) دګریو نبرګ تالیف دلیننګر ادد(۱۹۷۲) کال‌چاپ ، ځلورم مخ .

توپیر له هرڅه زیات د فونیتیك له مخی څرګند دی . لاندینی دیالیکت منځنی ته ډیر نژدې دی نسبت د پاسنی او منځنی یو تر بله (۱) .

کهڅههم دسونجانی دلوسړ یوسطالعو تار یخ تقریباً بوې پېړی ته رسیږی چه لو مړی ځل یوه انګریز محقق (شاو) د مونجانی یو نسبتاً زیات شمیر کلمی دنوروپامیری ژبوسره په مقایسه کښې خپری کړی (2) خو بیاهم سونجانی ژ بهلاتر اوسه په بشپړه توګه نهده څیړل‌شوی .

په (۱۸۸۰) کال کښې یوه بل بیدولف نو می محقق د سونجانی ایدګانژدی پنځه سوه کلمی ، یوشمیر لنډی جملی‌اوداسمی‌اوفعلی‌تصریف دوه مخه تابلوګانی خپری کړی . (3)

دغوخپروشو ومواده که څه‌هم پهلړه سویه‌وو ، دمحققینو پاملرنه‌خپل‌پلو ته راواړوله اودوی‌ته یی‌ددی‌امکان‌ورکړ چه‌په دغه‌باره کښې یولړپلټنې وکړی او ددغی باختری ژبی‌زیات‌خصوصیات معلوم کړی .

ددغومحققینو په‌لړکښې جرمنی عالم‌و. توماشیك په ۱۸۸۳ کال کښې په ګوتینګین کښې ددغی ژبی بولړخصوصیات راوسپړل چه‌دهغو په جمله کښې یو دادی چه دغی‌ژبی‌په‌خپل‌ځان کښې‌لرغونی‌د کلمود سر (خش– xSh ) (د معاصری

۱ - دختیځ هندوکش ژبی – مونجانی (۳۶۳م) مخ .

2— R. Shaw, on the Ghalchah languages, Journal of the Asiatic Society of Bengal Vol. XIV, 1876.

3— J. Biddult, tribes of the Hindoo-Koosh, Calcutta, 1880.

پښتو(ښ) غږ ساتلی)، دلرغونی(د) غږور کښې (دپښتوپه‌شان ـ د (ل) په غږا وړی) اودخپلواسمونوپه پای کښې یې د(ه)فتحې غږ ساتلی‌دی نوسوړی محقق دخپلې‌دغې مطالعې په‌پای کښې دې نتیجې‌ته و رسید داحکم‌یې‌وکړ چه مونجانی د او یستا ، ساکی‌اوپښتو ترمنځه موقعیت لري .

په(۱۸۸۳) کال کښې د (وان دین ګین) له‌خوا په‌بروسل کښې‌دیګنو بی او ایدګا د موادو په‌باب یوورو کی کتاب خپورشو چه په‌هغه کښې دایدګادیو لږ کلمودایتمولوژی کوشش شوی دی .

(په۱۸۸۹) کال کښې ګر یرسون د لوسړی محل دپاره‌په مو نجانی اودهغې په‌ایدګا دیالیکت متن خپور کړ . په دغه متن کښې ده دانجیل(د سور او پلار نه‌منونکی زوی) دیوی‌قصې‌ترجمه‌اویوه‌مونجانی افسانه‌په کلکته کښې‌خپری کړی.(1)

چه‌همدغه‌موادیيا په (۱۹۲۱) کال کښې دویم‌محل دهمدغه‌عالم‌له‌خوا بیا په کلکته کښې خپاره‌شول . د همدغه عالم‌له‌خوا دمونجانی په باب څه‌ګرا مری معلومات او یوور و کی قاموس هم‌خپاره شول .

د خپلوراتولوشوو اوخپروشو یوموادو په رڼا کښې ګریرسون دآریا یی ژبو د تشخیصولو په‌لړ کښې‌دانتیجه بیاورانده‌ی کړه چه‌د(د)غږپه‌مونجانی کښې‌د (ل)په غږاوړی، د(ثر)(ث+ ر )په‌مقابل کښې‌د(ر) غږراځی‌اود کلمودپای‌د(ت) غږچه په ځینوژبو کښې دڅرګندی (ی) په‌غږاوبښتی دی په‌مونجانی کښې له منځه ځی .

---

1— G. Grierson Specimen Translations in the Language of the North Western Frontier Calcutta, 1889.

ګریرسون له‌خپلې دغې‌مطالعې نه دانتیجه واخیسته چه‌ګو یا مونجا نۍ د کسپین دبحیرې‌دغاړواودایران دمرکزي‌دیالیکتونو سره‌خپلوي‌لري‌چه‌دسید یک‌له‌ګروپه‌دي په ( ۱۹۱۵ ع ) کال کښې د مونجانۍ په باب لږخه مواد د یوه فرانسوي محقق ر. ګلتیوت له خوا په پاریس کښې خپاره شول .

په خپل دغه اثر کښې‌نوموړي‌محقق خپله زیاته پاملرنه تاریخي فونیتیک ته‌وا ړوله او د مونجانۍ په کلمو کښې د منځ په دغوغږو نو ( ت = سلیسه‌ی) ، (ث + ه ) (ث+ر ) = هر ( ه+ر ) یې‌څر ګند کړل. د دغې څرګندونې‌په‌اساس ده خیال‌وکړ چه مونجانۍژبه دپیرسیك‌ژبود ګروپ دشمالي ژبوله‌سید یك ګروپه‌ده .

دمونجانۍ ژبې دپلټنو په‌ساحه کښې ډیرښه او اساسي معلومات په ۱۹۲٦ کال کښې ی ـ ی زاروبین وړاندې کړل چه داثرنوم یې دمونجانۍ‌ژبې‌خصوصیت دی . نوموړي محقق په‌خپل‌دغه اثر کښې دمونجانۍ فونیتیك او ګرامر وړاندې کوي اوهغه خصوصیت یې‌څیړي چه‌تردغه وخته لاچانه وڅیړلی .

په‌دغه‌تالیف کښې‌یو منثور اوبل‌منظوم متن،څونډې جملې او داسې وړو کې قاموس‌چه دلغاتو سره یې دټولوپامیري‌ژبولغات په موازي ډول وړاندې شوي دي هم دضمیمې په توګه په‌اثر کښې ځای شوي دي .

دمونجانۍ د ژبېیوحقایقود تحلیل او تجزیې اوله‌نوروآریایي‌ژبوسره‌د مقایسې په رڼا کښې زارو بین عقیده لرله چه‌مونجانۍ دپارتیانۍ اوپښتو ترمینځه موقعیت لري. ده‌لیکلي ووچه دلرغونو آر یايي ژبود (ت) سوفیکس په پښتوکښې په‌څرګنده (ی) او په مونجانۍ کښې په‌نرمه (ی) اوښتی دی .

**مونجاني ژبه**

د مونجاني په باب ډېر باارزښته مواد د پروفيسر مارګين سترين له خوا په اوسلو کښې په (۱۹۳۸) کال کښې خپاره شوي دي .

د دغه پروفيسر د تحقيقاتو فضيلت په دې کښې دی چه ده و کولای شول چه د مونجاني ژبې (ايدګا) د ويونکو سيمې ته لاړشي او په مستقيم ډول او په غير د کوم دريمګړي نه خپل تحقيقات بشپړ کړي .

د مارګين سترين په تحقيقاتو کښې د مونجاني فونيتيك او ګرامر خو راښه مفصل څېړل شوي دي او د تاريخي فونولوژۍ ته لوی ځای پکښې ورکړ شوی دی . دا ثر په پای کښې د دغې ژبې او وه متنونه او لوی قاموس د ضميمې په توګه ورسره خپور شوي دي .

په (۱۳۳۹) کال د پښتو ټولنې له خوا د شاه عبدالله بدخشي تاليف (د افغانستان د ځينو ژبو او لهجو قاموس) په نامه يو قاموس خپور شو چه په هغه کښې د (پښتو . دری . واخاني او اشکاشمي) سره په مقايسوي پلان کښې د مونجاني بوزيات شمير کلمې وړاندې شوي دي. خو څرنګه چه دغه قاموس د عربي الفباء په اساس ليکل شوی دی فونيتيکي ډېرا ړ خونه لوستونکي ته کټ مټ نه شي څرګند يدلای .

په (۱۹۷۲) کال کښې د بناغلي ګريون بيرګ له خوا (دلو يديځ هندوکش ژبې ـ مونجاني ژبه) نوسی اثر په لېننګراد کښې خپور شوچه متنونه، ګرامر او قاموس لري او په دې باب مکمل اثر ګڼل کيږي . (او دلته ورنه زيات استفاده شوې ده) د او د مونجاني د مطالعې د تاريخ لنډيز .

## مورفولوژی :

**اسم ذات** - اسم ذات د پښتو په شان په مونجانی کښې هم دجنس (مذکراومونث) دهم شمیر (جمع اومفرد) اوهم گرامری حالات لری .

مذکرا سمونه هغه‌دی چه په بې غږه (صامت) یاپه ملینه (ی) پای‌ته رسیږی اولږ څه‌یې په‌پای کښې‌الف اری. دملینه (ی) نه‌ترمخه په‌پښتو کښې فتحه او په‌مونجانی کښې زورکی وزمه حرکت موجود دی .

| مذکر | مونث |
|---|---|
| کری (چرگ) | کرایه (چرگه) |
| نوس (دواو په زورکی ـ نوسی) | نو سه (نمسی) |
| غدوم (غنم) | فیسکه (پوزه) |

یوز یات‌شمیراسمونه شته‌چه‌په ریښه کښې دبدلون په‌اثر ترې مذکراو مونث جوړیږی .

| مذکر | مونث |
|---|---|
| خره (د «خ» په زور ـ خر) | خره (د «خ» په زورکی ـ خره) |
| وزه (د «و» په زورکی ـوز) | وازه «وزه» |

**اضافت** - اضافی ترکیب‌دنورو باختری‌ژبو په‌شان دی‌چه‌مضاف‌الیه دمضاف نه‌ترمخه راځی لکه : وان وروی ـ دده ورور .

## جمع :

دمفردنه دجمع صیغه د مفرد پورې د معروفی (ی) او دهغو مذکروا سمونو

پورې چه اساس یی په بی غږه (صامت) پای ته رسیږي د (کی) یت (ګی) دوروستاړو
په مرسته جوړ یږی .

| مفرد | جمع |
|---|---|
| وری (ورور) | وري (ورونه) |
| ایدك (وګړی ، کس) | اید کی (وګړي ، کسان) |
| کور په (پرستین) | کور پګی |

هغه مفرد مونث چه په پای کښې فتحه لری دجمع دجوړولو په صورت کښې
څرګنده (ی) پوری نښلی اوفتح له منځه ځی .

| مفرد | جمع |
|---|---|
| لوغده (لور) | لوغدې (لونې) |
| ژینکه (ښځه) | ژینکی (ښځی) |
| غوا (غوا) | غوبې (غو اوې) |

**تصریف** : اسم ذات دوه ګرامری حالتونه لری . په مفرد مذکر کښې ددویم
حالت ښوونکی د (ـ ان) اوپه مونث کښې د (ـ این) سوفیکسونه دی . او د دواړو
جنسونو په جمع کښې د (ـ اف) سوفیکس ددویم حالت ښیه ده .

په مونجانی کښې لومړی حالت له دې عبارت دی چه اسم ذات دحال دزمانی
دفعل یا دماضی لازمی فعل فاعل اویاصریح مفعول واقع شی . همدارنګه یوشمیر
خدمتی کلمی شته چه په اسم ذات اغیزه نه کوي همدارنګه که اسم ذات صریح
مفعول وي هم کله کله په لومړی حالت کښې واقع کیږي .

دویم حالت‌له‌دي عبارت دی‌چه‌اسم ذات‌دمتعدي ماضی فاعل واقع شی اوبیا صریح مفعول اویاد عامله اداتو معمول وگرځی .

**صفت :**

په مونجانی کښی صفتی‌ترکیب دباختري‌ژبوپه‌شان‌دی‌په‌دی معناچه‌صفت‌له موصوفه ترمخه راځی . توپیربی دادی چه دمونجانی صفت دجنس (نرینه‌اوښځینه) شمیر (مفرد اوجمع) اوگراسري حالت په‌لحاظ کوم تغیر نه‌منی‌لکه :

غشی میر (ښه سړی) غشی ژینکه (ښه ښځه) غشی میري (ښه سړي) غشی ژینکی (ښې ښځې) . که صفت دخبرپه ځای واقع‌شی په هغه صورت کښی داسم ذات‌په شان‌هم دجنس هم دشمیراو هم‌گراسری حالت له مخې‌تغییر خوري لکه : وامیر غشی (دغه سړی ښه دی ) واژینکه غشکه ( دابښځه ښه ده) وامیری غشی (داسړی ښه دی) واژینکی غشی(دابښځې‌ښې‌دی) . د مقایسی صفت د(در- د دال په‌زورکی )سره‌جوړیږی لکه اره در-خورالیرن .

**عدد :**

په مونجانی کښی عدد په‌دې ډول دی : یو(۱) لو(معروف واو-۲) ښیرای (۳)چیفور(۴)پونج(۵) اوخشو(۶)ووده(۷)اشکیه(۸)ناو(۹) دا(۱۰) (ایدگالوس مجهول‌واو) (۱۰) لوس یو (۱۱) لوس لو(۱۲) ویستو لوس(۲۰) یو ویستواوس (۳۰) لوویست (۴۰) لوویستولوس(۵۰) ښیرای ویست (۶۰) سد (۱۰۰) .

**ضمیر :**

په‌مونجانی کښی شخصی اواشاری ضمیرونه‌دوه گراسری حالتونه لری اوهغه په‌دې ډول دی :

| لومړی حالت | دو یم حالت |
|---|---|
| زه (زه) | من(د(م) په زورکی ـ ما) |
| تو(ته) | تا (تا) |
| موخ (موږ) | اوسخ (موږ) |
| توف(تاسو) | اموف (تاسو) |

لکه . زه وایم = زه ځم . توشیء = ته لاړی . نه من ال = ماته راکړه . من شتم = ماوویل . اموخ کیه = زموبږ کور . موخ پیسرم ـ موږ یی وړو ، اموف وینم = تاسوءیدم .

اشاری ضمیر دغایب ضمیروظیفه هم اجراء کوی .

## اشاری ضمیر :

اشاری ضمیر (دنزدې ،لیرې اودیرلیرې) داشارې په لحاظ پەدری ډوله دی چه هریوی یې دوه ګرامری حالتونه اوسفرد اوجمع لری :

| مفرد | جمع |
|---|---|

لوسړی حالت :

| نژدې | منځنی | لرې | نژدې | منځنی | لری . |
|---|---|---|---|---|---|
| سه | یه | وه | مای | یای | وای |

دویم حالت

نرینه : سان ـ یان ـ وان ـــ ماف ـ یاف ـ واف

ښځینه: مای یای وای » » »

نور یو شمیر ضمیرونه دا دی :

خې (د (خ)په زور کی) خپل ـ په خپله . کی (د (ك)په زور کی ـ څوك)

شتی (د(ش) په سکون معروفه‌ی ـ څه) کدی (کوم چه) .

فعل :

په‌سونجانی کښی دنورو پامیری ژ بو په شان فعلی صیغې له در یو اساسونو

څخه جوړیږی .

الف. دحال له اساسه .

ب . دماضی د پیرفیکټ له اساسه .

دفعل تصر یفونه دیوې‌نمونی په‌ډول دشخصی ضمیرونو دلاحقی سره و راندې

کیږی. د(ژوی) (مجهول واو ـ ویل) دفعل په‌تصر یف کښی‌دحال او مستقبل

صیغی په‌لاندې ډول دی .

| | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| متکلم : | زه ژویم (زه‌وایم) | موخ ژوی ام (سوږ وایو) |
| مخاطب : | توژوې(ته‌وایی) | توف ژوی‌اف (تاسو وایيء) |
| غایب : | واژوت (دی وایی) | وای ژوی‌ات (دوی وایی) |

په ماضی‌قر یبه کښی‌داساس‌نه‌وروسته دماضی‌نخښه(د) یا (ت) ز یاتیږی‌لکه :

| اساس | ماضی |
|---|---|
| وزن ـ پیژندل | وز ېند (پیژنده) (۱) |
| شوو (رودل) | شووت (روده) |

1- Wazon , Wazend

ماضی متعدی دتصریف لەمخې دپښتو پەشان دەچە فعل دمفعول‌تابع دی فاعل په دویم حالت کښی ذکر کیږی .

ماضی بعیده (ویی) (۱) دپښتو (وول) دفارسی (بودن) کومکی فعل پەمرسته جوړیږی چەداصل فعل‌نەوروسته ذکر کیږی .

**امر او نفی:**
د مفرد امرصیغه کله دحال‌له اساسه جوړیږی چەوروستاړی ورنەحذف شی او کله يې‌فتحه پەپای کښی‌اضافه کیږی لکه نیښ . کښینه. نښه . کښینه .

دجمع پەپای کښی یی محرکنده (ی) زیاتیږی لکه.نیښی . کښینی . دنهی همدارنګه دمنفی فعل ترمخه د(چه) (د(چ) پەزور کی) خدمتی کلمه زیاتیږی لکه زمچه وزونم ـ زەنه پوهیږم، چەنیښی. مه کښینه .

**مصدر :**
مصدر دماضی لەاساسه دالف (او پەایدګا کښی د ـ ان) سوفیکس پەمرسته جوړیږی لکه :

نیوستا ـ ناستل. خورا ـ خوړل .

**ادات:**

پەمونجانی کښی دغەخدمتی کلمې موجودی دی .

ده (د(د) پەزور کی) نه. ژ ه ، سك (د(س) په زور کی) په، شله (د (ش)

---

1 - Wiy

په‌زور کی) ترو (مجهول واو) قشره . ته . ددوی یوشمیر کوم ګرا سری عمل نه‌لری اواسم ذات په لوسړی حالت کښې پاتی کیږی. چه‌هغه‌له « ده ». سك ، په. ترو » ـ نه‌عبارت دی. پاتې نورداسم ذات ددویم حالت غوښتنه ګوی .

ده :( پـه فتحه‌یا زور کـی ) دحـر کت سمت او د ظرفیت معنا وې افاده کوی لکه: شییات‌ده بازار ـ بازا رته لاړل. زه‌ده کمی‌و یم ـ زه‌په کور کښې‌وم.

نه: (په‌فتحه یازور کی): کله دمفعول‌له معنا افاده ګوی: نه‌من ژو ـ ماته وواپه. کله دتعلق‌لکه : دیرونه شکور ین ـ داو ښ شونډك. کله د هدف لکه: نه خو ران ـ دخوراك له پاره .

ژه :(په‌فتحه یاپه‌زور کی): کله دپښتو د(له) په‌معنا لکه: موورو ی ژ یونیـین و یات ـ دوه ورونه له بوې سوروو. کله دملکیت د ښوولو له پاره لکه: صاحب ژه شکو ر ین ـ داو ښ خاوند .

سك : د(پر، باندې)په معنا لکه : سك شکوره سورشی ـ پر او ښ سپور شو .

په ( دپښتو د (په) په معناچه دآلې او ذریعې معنا افاده کوی : په ویکه ژ یپه واخره ـ په تیره (یی) خرو ویشته .

قشر : دپښتو د (څخه) معنا افاده کوی : قشر من ـ ماڅخه (له ماسره) .

ته : دپښتو د (تر) معنا افاده کوی : خشیو وته سیښ ـ شپه تر ګهیځه .

لو (په مجهول واو) : دپښتو د (سره) معنا ورکوی : لو تاتین ـ د پلار سره .

شله : (هم د (سره) یوځای ګله معنا ورکوی : شله د کاندارین نیو شتو ـ دد کاندار سره ناست دی .

ترو : د (پکښې ، دننه) معناافاده کوی: ترو کیف لو غوی-دننه لاړ، ننووت.
دا وروستی درې خدمتی کلمی یوازې په اینډ گادیالیکت کښې موجودې دي .
عطف : دعطف له پاره دوه خدمتی کلمې موجودې دی .
الف : او دپښتو د (او) معنا افاده کوی چه دد وو مفهومو یاشیانو دجمع کولو
دپاره کار ورکوی . لکه :
غرود ـ اوشی ـ وا (یی) خیست او لاړ .
ب : د (که) په زور کی ـ دپښتو د(چه) معنا ورکوی چه داصلی جملی پورې
دتابعی جملې له تړلو څخه عبارت دی .
اوس اله کن که زه نه توتات ـ اوس وا وره چه زه ستا پلاریم .
دلته دپښتو او مونجانی څو کلمی و راندې کیږی چه گډې ریښې لری :
پښتو: پل (دپښې) ـ ویستل ـ لمر ـ نغوړل (غوړ ایښودل) ـ راغی (راغلل)
اړخ ـ زه (ضمیر) ـ زوولی ـ زیږولی ـ ژبه ـ اغوستل ـ اندی ـ اور ـ اوس ـ
اوسپنه ـ تندر ـ غوز ـ جوس ـ ستر ـ ستن ـ ستوری ـ سوری (خوشه) ـ شگه ـ
لاس ـ ناستل ـ موږ ـ هیلی ـ یو (شمیر) خولی ـ لری (دخیتی) ـ د ستی (فو رآ)
زوم ـ ویخ (بیخ)ـ مرغه (شنیلی) غوا ـ غژکه ـ غلبیل ـ غنم ـ غو ږ ـ غو ښه ـ
کب ـ کله ـ وازده ـ وزر ـ وزه ـ داریدل ـ نوی ـ دا .
د غـه کلمې پـه مو نجا نی کښې په تر تیب سره : پل ـ ا یسی ـ میر ـ
نقوشکا ـ اغیء ـ الیخا ـ زه ـ زولی ـ زویکا ـ ژوو ـ اغوستو ـ اندا ـ یور ـ وس ـ
یوسپن ـ تاندرا ـ غوزا ـ چواسته ـ ستر ـ ستنا ـ ستا روی ـ سو ر ـ شغیا

لاست ــ لوس ـ (ایدگا) نیوسکا ـ سوخ ـ یلکا ـ یو ـ خولا ــ ایلر ـ دستی ـ زمای ــ وخا ــ مورغا ـ غوا ـ غژك ــ غلبیل ــ غندوم ـ غوك ـ غوبښ ـ کاپ ـ کلا ـ وازده ـ وزرگا ــ وزا ــ دریګا ــ نوی ــ دای .

دلته دسونجانی دایرگاد دیالیکت یوه جمله دهغی دتحلیل سره دپروفیسرسارګین سترین له اثره (۱) وړاندې کیږی :

žūwá vío, yū wúlo vío,
loh purë viét

ژووان ــ (ځوان) دپښتو (ځوان) فارسی (جوان) اویستا یووان . منځنی فارسی یووان ـ مبتداء ده .

ویو(وو) دپښتو کومکی فعل (وول) دفارسی(بودن) واخانی (ویتك) اویستا (بوته) منځنی فارسی (بوذ) خبر دی .

یو ـ «یو» عدددی ــ پښتو (یو) اوسیتی (یو) شوغنانی (ایو) واخانی (ایو) سریکولی (ایو) زړه پارسی (ایوه) او یستا (ایوه) نوی فارسی (یك) .

---

(۱) ـ دایرانی ژبو په حواله .

ووبو (ښځه، واده) اسم ذات . سوغدی (وذو) اویستا(واذو) او دپښتو(واده)

هم له دې ریښې دی .

لوه . (دوه) شمیر دی . دپښتو (دوه . دوې) اویستا (دوه) .

پور . (بور ، زوی) او یستا (پوثر) ز ړه پارسی(پوثر) .

په دغه ترتیب کلمو کښې د (ثر ـ ث + ر) غبر عموماً په جنوب پیرسیک

ګروپ کښې د (س) په غبر اوړی او په شمالی اکثرو (همدارنګه باختری یولږ

ژبو کښې) په (هر — ه + ر) یوازې په ( ر) اوړی او په پښتو کښې یې د (پ)

غبر د (ب) په غبر او ښتی دی لکه په (تربو ر — تره زو ی) (بوره ، زوی سړی)

یوشمیر لیکوال چه د (پور ) کلمه لکه په (شاپور) (سلطان‌پور) اونورو کښې

فارسی بولی لویه اشتباه کوی بلکې په پارسی کښې دپاسنی‌اصل‌سره‌سم دا کلمه

په (پسر) اوښتې د ه

ی . جمع سوفیکس دی .

وییات . (وو) دغایب دجمع دکوسکی فعل ماضی چه دپښتو د (وو) سره

سمون لري .

ترجمه .

ځوان سړی و یوه ښځه (یی) وه دوه (زامن) یی وو .



# سوغدی
# او
# یغنوبی ژبی

دباختري ،منځنيو،شمالی باختريژبو په جمله کښی یوه هم سوغدي ده. تاریخی‌اسناد په‌دې شاهدي‌ورکوي چه دسوغد یانو اوباختریانو ترمنځه‌دتاریخ په پوړیو کښی نژدې روابط پاتی شوی دی.

کله چه باختریا د هخامنیشا نو ترلاس لاندې وه دسوغد سره داقتصادی او کلتوری ټینګو اړیکو دلرلو په اساس په‌غالب ګومان‌سوغدهم دباختریه‌ایالتی تشکیل کښی‌شامل ؤ. د هرو دوت‌دیادونو له‌مخی‌سوغدد هخامنشیانوداسپراتوری په هغه مالیاتی شپاړسمه سیمه کښی شامل ؤ چه پارفیا آر یـایی خوار م ا جزاء

او په کال کښې يې درې سوه (تالانته) ماليه ور کوله .

دسکندر ديرغلونو اوفتوحاتو پهدوره کښې باختريا اوسوغد يوشان سرنوشت لاره.چه له وينو توئيدلو اوښارونو له سوزيدلو څخه عبارتدي . ديوناني مقدوني لښکر له خوا سوغد او باختر اباد ښارونه چور او تالاشول . ددغوير غلونو په اثر دباختريا او آريا په مناسبت سوغد ته زياته صدمه ورسيده او په حقيقت کښې قبل الميلاد (۳۲۹-۳۲۷) کلونه دسوغد دسقوط دوره وه .

د يونانيانو تسلط په سوغد باندې دهغا منشيانو تسلط پـاى تـه ورساوه او ځاى يې دسکندر مقدوني واکمنې ونيو . مګر دباختر اريا او سوغد په غرنيو برخواو لوړودرو کښې زښت ډير وطن پالونکي ووچه په خپلو هيواد و نو دپرديو دتسلط سره مخالف او ورسره په مبارزه او مجادله کښې وو . دهمدغي وطن پالنې سره سکندر هره خوا مخامخ کيده اومجاهدين يې د( بربريانو) پهنامه يادول .

کله چه په قبل الميلاد (۳۲۳) کال کښې دجون په (۱۳) نيټه سکندر مقدوني د (۳۳) کلونو په عمر بابل ته دستنيدو په لاره کښې مړشو دباختر او سوغدپهسيمو کښې دخپلواکۍ مبارزې ډيرې زياتې شوې . دسکندر د پاتې ملګرو ترمنځه بې کارې او بې اتفاقي هم داو لسي مبارزينو دمبارزو دموفقيتسره مرسته کوله . وروستي اسناد ددې شاهدي ورکوي چهنور باختر سوغد اونور پهواقعيت کښې ديوناني مقدوني تسلط نه خپلواك وو . دغه روايت اساسا د (ديودور) په روايت بنا دی .

په قبل الميلاد ۳۱۲ کال کښې چه سليو کس په بابل قبضه وکړه ډيرژربې سوغد ، باختر اوورڅيرسه سيمې دسندپورې په خپل قلمرو کښې دا خلې کړې .

په دغه شان دهروخت تاريخي اسناد ښئي چه دسوغديانو تاريخي او کلتوري روابط دباختريانو او دمعاصر افغانستان دسيمې دنورو وګړو سره دتاريخ په پوړيو کښې ډير نژدې وو .

دسوغدي کوم نژديوالي خصوصاً دلغت په ساحه کښې چه دنوي پارسي (دري) سره احساسيږي هغه له دې اسله نه دي چه ګوندې دادوه ژبې سره کوم دخپلوي روابط لري دادوه ژبې په حقيقت کښې بيلو بيلو (باختري او پارسي) ګروپونوته منسوبې دي . بلکې ددغې خپلوي موجبه دژبپو هنې په اصطلاح سوبسترا توم (Substratum) دی يعنې په فاتحه ژبه دمفتوحې ژبې اغيزه ده .

کله چه فارسي ژبه دساسانيانو په دوره کښې له خپل ټاټوبي (پارس) څخه دشمال لويديځ او خراسان خواته راغله اوپه عيسوي اوومه - اتمه پيړي کښې يې يولړ بومې ژبې له منځه ويوړې دهغو سيمو په جمله کښې دسوغديانوسيمه هم شامله وه - دزرافشان دوادی سوغدي ژبو هم خپله‌سورنۍ ژبه وروپه وروهيره اوپه ځای يې فارسي ژبه ومنله . بالمقابل فارسي ژبې هم دسوغدي او بومي ژبونه ډير سواد واخيستل او ځان يې پرې بډای کړ .

نوپه دې نسبت که په‌ژبنې لغوي مقايسه کښې دفارسي اوسوغدي ترمنځه دخپلوي کوم تکې احساس شي هغه دفارسي له خوا دسوغدي نه اخيستنه ده .

## دسوغد تاریخی موقعیت :

کله چه سویږ اریایی ژبی (۱) په‌دوو ډلو (باختری او فارسی) ویشو دتاریخی اسنا دواو ژبنیو مقایسو له‌مخی گورو چه سوغدی ژبه دباختری ژبو په ډله کښی دریږی .

سوغدی ژبه دباختر دخاورې یوه لرغونی ژبه ده‌چه دډیرو لرغونو وختونوڅخه را په دې خوا دزرافشان دسیند په غاړه او په ورڅیرمه سیمو کښی ډیر عصرونه ژوندی وه .

دغه‌ژبه‌په‌زړه‌پارسی کښی د ( سوگود ـ ) اوپه‌زړه یونانی کښی‌د(سوغدیان، په نامه یادیدله .

هغه باختري‌سیمه چه‌دغه‌ژبه‌پکښی‌رایجه‌وه د ( سوغدیانا ) په‌نامه‌یادیده . دلویه یخ اوختیځ دتجارت په‌تاریخ کښی سوغد یانو او ددوی تاتو بی ډیر لوی رول لاره . ددوي تاتوبی دمنځنی آسیااو چین ترمنځه‌دتجارت لویه لاره وه . له دغه ځایه وه چه په میلا دي لو مړ یو پیړ یو کښی سو غدي ژ به د ( LINGUA FRANCA آزادې ژبی ) حیثیت لاره . هغه وخت سوغد دختیځ

---

(۱) ـ کله چه سویږ د (اریایی ژبو) نوم اخلو مطلب سوورنه (هندوآریایی) نه‌بلکی دباختری اوپارسی ژبو ډله ده چه کله کله په‌غلط مشهور ډول په(ایرانی) ژبو هم یادیږی .

اولویدیځ دتجارت په ساحه کښی ( دوزیښمو دلو یې لارې )منځنی وه چه د چین تجارتی مالونه به‌له دغی لارې منځنی آسیا اوله هغه‌ځایه دروم دبحیرې په‌غاړه هیوادونوته تلل ـ اوله هغه ځایه‌به دلویدیځ مالونه په‌دغه منځنی تیریدل اوله دغه‌کبله دغی ژبی هغه‌وخت زښت ډیر اهمیت لاره .

## لیکلی اسناد :

دسوغدی دلیك ظهور میلادي لومړیو پیړیوته منسوب دی ، مګردغه‌وخت لیکلی آثار بیخی لږموندل شوي دي .

سوغد په‌اوومه میلادي پیړی کښی بشپړ پرمختګ وکړ ، داوخت یی دخپلو اقتصادي او کلتوري پراختیاو په‌اثر په‌منځنی آسیا کښی مهم ځای ونیو .

په ارکیالوژیکو پلټنو کښی موندل شوي اسناد د سوغد د لویی هنر مندی مجسمه جوړولو او معماری شاهدي ورکوي . خصوصاً د (پنجی کنت )دهنري آثارو یولوی صفت ریالستیك اړخونه دي . دخوارزمی‌اوسوغدي هنرمندی‌مقایسه داښئی چه‌دو یمه‌ډیره زړه وړونکی اورووښانه‌ده .

سوغدي ژبی په ټوله سرکزي آسیا کښی له څلورمی میلا دي نه تر نهمی میلادي پورې د ( خپلواکی‌ژبی ) په‌صفت موجودیت‌لاره اوپه لیکلو آثارو بدای وه . متأسفانه دهغه وخت بدیعی ادبی متنونه زموږ په‌لاس کښی نشته .

په‌چینی ترکستان کښی‌چه‌دسوغدیانو دلاس لاندې‌سیمه‌وه بیل بیل‌مذهبونه رایج‌وولکه: بودایی،مسیحی،مانی .په‌سوغدی‌ژبه‌له‌چینایی، سانسکریت، آسوری منځنی پارسی څخه‌ډول‌ډول‌متنونه اوښتی چه‌غالباً به‌یی د مذهب مضمون لاره .

دشلمې پیړۍ پهسر کښې په چینایې تورکستان کښې ددغو متنونو موندلچه دلیکلوتاریخ یې ( ۸ ـ ۱۰ میلادي پیړۍ ) دی دسوغدي ژبې په باره کښې لومړنی مهم اسناد جهانی پوهنیاوسحققینوته په لاس ورکړل .

همدغه وخت په چینایې تورکستان کښې یولړ نوراسنادهم وموندل شول چه پهعلمی کړیو کښې د ( زړو سوغدي لیکنو ) پهنامه یادیږي اودلیکلو نیټه یېد میلادي څلورمې پیړۍ پیل ته رسیږي .

ددغو ټولواسنادو ژبه هغه وخت دانکل لهمخې سوغدي ګڼله کیده . ضمناً پهمانې اسنادو کښې دساتل شووکلیزو ( کلیندر ) اصطلاحاتودهغو اصطلاحاتو سره سمون لاره کوم چه په ( ۱۰ ـ ۱۱ ) پیړۍ کښې د منځنۍ آسیا مشهور پوه البیروني دسوغدي پهنامه یاد کړي وو .

دغه انکل چهددغو ټولو اسنادو ژبه سوغدي ده په ( ۱۹۳۳ ) کال کښې دیقین پهډول ومنل شو . داوخت دشوروي اتحاد لرغون پیژندونکو دزرافشان په پاسیني برخه کښې په ( سوغ ) نومې غره کښې دکنډوالو په یولړ حفریاتو کښې دسوغدي یوزیات شمیر کتیبې وموندلې .

دغهلیکنې دسوغدي دولتي آرشیف پانۍاو د سوغد ي پاد شاه ( دیواشتیچ ) پوري يې اړه لرله . دغه پادشاه داتمې میلادي پیړۍ په سرکښې واکمن و . او کله چه څرګنده شوه چه ددغو لیکنو ژبه او په چینا یې تور کستان کښې د څینو موندل شوو اسنادو ژبه یوه ده علم په یقیني ډولدا ومنله چه داټول اسنا د په یو ژبه لیکل شوي دي .

## د لیکنو توپیر :

ترمخه یادونه وشوه چه دسوغدیانو دلاس لاندېجیمو کښې بیل بیل ( بودایی عیسوي اومانی ) مذهبونه رائج وو. په دغو دریواړو مذهبونوته منسوبو لیکل شوو متنونو یوتربله څه اندازه توپیر سره لاره . په دغو دري مذهبونو دمونډل شو و کتیبو دلومړي ځل له پاره پلټونکو او محققینوته داعقیده ورکړه چه په سوغدي کښې خود یالیکنونه ژوندي وو چه له سوغدي بودایی، سو غدي ـ مانی او سو غدي ـ عیسوي نه عبارت وو .

مګروروستیو پلټنو اوتحقیقاتو داثابته کړه چه دغه اختلاف په سوغدي کښې دد یالیکنو دوهه صفت نه بلکی اساساً ددغو مذهبي کړ یود پیلتون په اثر د ارفو ګرافیك دوداودلیکنی د خصوصیا تو له مخې منځ ته راغلی ؤ ضمناً با ید و ویل شي چه دغه دلیك دودتوپیراوخصوصیات یودم نه بلکي داوږدووختونو په واتن سره په څوسرحلو کښې منځ ته راغلی وو. چه د سو غدي دپراختیا هر ه مرحله ورکښې منعکسه ده .

ددغو ټولو لیکلو اسنادو په لړ کښې خوراډیر لرغوني اې بو دایي اونورهغه اسنا ددي چه په اصطلاح په ( زړه سو غدي) لیکل شوي د ي . اود ( سوغ ) د ګنډوالو نه دلاس ته راغلي آرشیف لیکنی هم ورکښې شاملې دي .د دغواسنا د و په متنو نو کښې په اصطلاح د(اولسی سوغدي) زوړ لیك دود اولرغونی ګرامرساتل شوي د ي .

هغه متنو نه چه په ماني اوآسوري ليکل شوي دي دوسره لرغوني نه دي دلغوي پانگي او وستيل له مخې هم دغه متنونه دمذهبي تکسونو دترجمې رنگ لري. همدارنگه په هغو کښې عاميانه اولېبې تحت اللفظي اړو نې هم کله کله په نظر راځي.

دستيل دغه بيلتون له هرڅه ترمخه په دې ولاړو کله چه ماني اوعيسوي مبلغين د سوغد يانوتر لاس لاندې سيمو کښې خپاره شول دهغوی تماسونه د خلکو دبيلوبيلو طبقو سره و اوله دغه ملهدد وی په افاده اواستفاده کښې عاميانه ستيل اولغت زيات ځای لاره.

ددغو مبلغينو دلوسرې ډلې (ماني مبلغينو) دفعاليت ساحه له هرڅه زياته داشرافو اوډپاسنې طبقې دخلکو کړی وې. د وريسي (منځنۍ) مبلغينو دعمل ساحه له نورو زياته د خلکو او دارخايزم له مخې نسبتاً وروستي دي. ځکه نود پوهنې لاس ته وزغلې دلرغو نې سوغدي کتيبې ددياليکتيك و يش نه زيات د زماني واټن په بيلوبيلو مرحلو کې چه دبيلوبيلو مذهبي عقيدوپورې اړه لري مربوطي دي.

## دسوغدي مړينه:

دسوغدي ژبې ترټولو وروستي ليکلي اسنا د اودهغو په باب تاريخي شواهد ميلادي لوسړ يو زرو کلونو ته منسوب دي. په دغه زمانه کښې سوغدي ژبه ورو په ورو څه دفارسي په ذريعه او څه د نورو ژبو په ذريعه دژوندانه له ساحې ننگه اوله منځه ووتله.

په میلادي لسمه پیړی کښې دعربو جغرافیه پوهورو ایت سر مسم دبخارا په سر بوطو کلیو کښې لا په سوغدی خبرې کیدې . خپله دبخاراپه ښار کښې فارسی ژ بې دلیك اوادب دژبې په حیث انکشاف کړی ؤ اودبخا راپه نو روښا ري سیمو کښې فارسی په چټکې سره سخ په خپریدوو ه .

همدارنګه دیولسمی پیړ ی په نیما یی کښې عرب مؤ رخ محمود کاشغری لیکلی چه په (بلاسو غوز) کښې دده تروخته سو غدي ژبه دتو رکیٔ سره څنګ په څنګ دافا دې او استفادې له پاره معموله ژبه وه .

په هرصورت ددغه وخت په جریان کښې دسوغدیانوپه سیمو کښې څنګ په څنګ دوه د وه ژ بې (فارسی اوسوغدي تو ر کی ا و سوغدې )معمو لې وې مګرور و په ورو سو غدي له منځه لا ړه — یو ازې دهغې یوه لهجه ( یغنوبی ) دز را فشا ن دو ادي په غرنی بر خه د(یغنوب) په د ره کښې پا تې شوې د ه.

بې ځایه نه ګڼمه چه دلته په یغنوبې هم دموضوع دارتباطله کبله لږ رڼاواچول شی .

**یغنو بی :**

یغنو بی ژ به یو ه ژوندی شما لي با ختری ژ به ده اود (یغنوب نومی سیند دري په د رنیوسیمواوهمدار نګه د (ورزوب) نومی سیند په څو کلیو کښې پرې خبرې کیږي په دغه ژ به د و یو نکو شمیر نژد ې دوه زره د ی .

یغنو بی ژ به په خپل و ار په دو و ا سا سی د یا لیکتو نو ویشله کیږي :

الف : ـ لویدیځ (پهسرغتو، مابین ، نوسیتکان اونوروکلیو کښې) .

ب :ـ ختیځ ( په دیبا لیا، فیسکون، پیتیپ اونورو کلیو کښې ) .

له دې پرېخوانه را پهدې خوادمحققینو پاملرنه دیغنو بې ځیر لو او پلټلوته او ښتې ده او پهدې باب دېر ښه آثاروخت پهوخت و ر اندېشوی اوړاندې کیږی.

## په باختر ی ژبو کښې دسوغدی ځای :

کله چه مونږ باختری ژبې دځیړنې لاند ې نیسوژبنې مقایسه موږ ته اجازه را کوی چه هغه په دوه گروپو وویشو :

الف : جنوبی با ختری ( پښتو، پاموري ژبې اونور . )

ب : شمالی باختري ( سوغدي، خوارزمی او سکیفی ژ بې ) .

دشمالی باختري ژبو یو لوی خصوصیت دادی چه دجمع له پاره د ( ت ) لاحقه لری . دغه دجمع لاحقه ډیره لرغونې اودشمالی باختري قومونو په ( ۲۵ ) لرغونو نوسونو کښې لیدل کیږ ی .

دجمع دغه ( ت ) علامه په سوغدي متنونو کښې هرکند ځای لری لکه: ( پر سنت ـ برهمانـ میخت ـمیخو نهـسرغنتـسرځانـغوتـ غرونه اونور .

په خوارزمی کښې ددغې جمع لاحقې (ت) په ځای د(خ)لاحقهموجوده ده. دشمالی باختری په جمله کښې سوغدی او خوا رزمی باالخا صه د فعل په با ب یو گڼه لوی صفت لر ی . او هغه داچه په دواړوژبو کښې دماضی فعل هغه لرغونې تیپ ساتلې شوی دی چه داو گو مینت (Augument) یعنی د ما ضی فعل په سرکښې دالف له زیاتولو عبارت دی . د کومو کلمو په سر کښې چه ا لف

او یا نیم غبری ( ر ) وه هغه اوړد تلفظ ګیدل مثلا ( پریچ - پر یښودل . اپریچ پر یښود ) همدارنګه سو غدي او خوارزمی دهغو سرکبو فعلو نو په تصریف کښی چه د ګو مکی ( ذ ر - لړل ) او ( ك م - هیله ګول ) په مر سته جوړیږی سره نژدی دی .

سوغدی یا دشمالی باختری ژبو په لړ کښی په دې بیلیږ ی چه سو غد ی دلرغونی آریایی د ( چ ) غږ ساتی خوپه خوارزمی او او سیتی کښی دپښتو په شان ددغه غږ په مقابل کښی د ( ځ ) غږ موجود د ی لکه سو غدی (چرمیه) خوارزمي ( ځرم ) اویستی ( ځرم ) او پښتو ( څرمن ). همدارنګه‌سوغدی(پنچس) خوارزمی ( پنځوس ) اوسیتی ( فنځای ) پښتو ( پنځوس ) او داسی نو ر .

همداشان جنوبی باختری ژبی هم په بولړژبنیو خصوصیاتو له شمالی‌باختری ژبو څخه بیلیږی چه څیړنه به یی په خپل ځای کښی وړاند ې کړ و .

دلته دسوغدی یغنوبی‌اوپښتو تر منځه یوه لنډه لغوی مقایسه وړاندی ګیږی:

| سو غدی | یغنو بی | پښتو |
|---|---|---|
| ود | او د ، ا و ت | ا و ه |
| ست ستی | است | سته،شته |
| غو | اخ | ه + غه(داشاري‌اوغایب ضمیر) |
| بغش | بخش | بخښل |
| میذ ن | مهدون | ملا |

| سوغدی | یغنوبی | پښتو |
| --- | --- | --- |
| زن ، پتزن | پیزون | پیژن + دل |
| ور | بر | وریدل، وربښت |
| بغشت ، پیغوشت | بغوغ | غښتل، نغښتل |
| ذ ص | د س | لس |
| خشیت | خشیغت | شوده ، شیده |
| زن ، زت | زان | زیږول |
| زیرتك | زیرته | زیږ ، ژیږ |
| زبك (خوار زمی زوبك) | زیواك | ژبه |
| زو | ژوو | ژوند |
| ذوز | وزدیوز | وړی لوړه ( پارفیانی- دبز) |
| ذیو | دیوی | لویدل(لرغونی اریائی دوی) |
| . | دیوال | دیوال |
| ذرش | دیروس | لور (دلوکولو آله) |
| ذم ذوپ | دامه | لم ( لمن ) |
| ذروك | دورك | لرگی |
| خشم | خشام | شومه(کرارهغپه) ( ۱ ) |

(۱) - دا کلمه په نورو باختری ژبو کښی د ( ماخوستن اودشپی) د( کراری شوسی ) په معنا په دی ډول ده : پارفیانی ( شم - Shim ) ایستا (خشافنه - xshapnia ) ، اید گا ( خشمیه - xchema ) دپښتو ( ما - ښام او دفارسی (شام) هم له دغی ریښی دی . متنونه ( ۳۶۲ ) مخ .

| سوغدی | یغنوبی | پښتو |
|---|---|---|
| غوتی | خود خوت | خود ( ۱ ) |
| خوبن غوبن | خوون | خوب ( ۲ ) |
| غورت | خورته | خوړل |
| خور | خوار | خو ر |
| یغنیک | . | یخ ، یخی |
| یغرت ، یرغت | . | ارت (پراخ ) |
| یش | یش | یشید ل |
| غنت + ك ( ناوړه ) | گنده | غند + ل |
| غتو م | غنتو م | غنم |
| غر | غر | غر |
| غر م | غرم | غرمه، غا رمه |
| غوت | غوغو،ته | غوښتل (۳) |

( ۱ )ـ دپښتو داتعلیلی کلمه ( مثلا په دی جمله کښې : مابهٔ خودزلمی نه نما نځه چه هغه د احترام وړ نه د ی) په پاوفهانی کښې (وخد ـ wxd) ده. مننو نه ( ۳٦۲ ) مخ .

( ۲ ) ـ د ( خوب ) کلمه په نورو باختری ژ بو کښې په دی ډ و ل ده : خو تنی سا کی ( هو نه ـ Huna ) اید گا( خوون ـ xovun اویستا (خوفنه ـ Xvafna ) یز گو لیامی ( خو و ن ـ Xuvn)

( ۳ ) ـ دا کلمه په نورو باختری ژبو کښې په دی ډول ریښه لري: خوتنی سا کی ( گو ـ ggu ) خوارزمی ( غاو ) اویستی ( غاون ـ کفایت نه کول ) یز گو لیامی ( غد ـ غو ښتل ) .

| سوغدی | یغنوبی | پښتو |
|---|---|---|
| غور | غور | کورل ( دحال اومستقبل په صیغوکښې) |
| غذوك( دوا وپه زور ـ تخت ) | غوتك(د (ت )په سکون ـ حاله) | غولی، غالی |
| غو | غوی | غوی |
| غوش | غوش | غوږ |
| غوش بونك | . | غوږ والی |
| یو | ای | یو ( شمیر ) |
| یم | ایم | وم ( دمفرد غایب کوسکی ماضی فعل وابطه |
| ا یذ | ایذ | داد + غه |
| کذ | کذ | کله |
| کنذ | کنس | کندی(قریه) |
| کرغ | کرغ | کرغ |
| کت ، کتك | کت | کلی |
| کو ، کوی | کو | کښې (ظرفی ادات)( ۱ ) |
| کون | کرنه | کول (هلته اودلته د کوسکی فعل په حیث) |
| کو ت | کو ت | کوتی(وړو کی سپی) |

---

( ۱ ) دپښتو ( کی ، کښې ) چه هم دظرفی خدمتی ادات او هم په یولږ فعلونو کښې د پریفیکس په صفت لکه ( کښېنستل ) کښې موجود دي په ایندویورو پی کښې د(خملاستلو ، سلامت او سیدلو اومکان) په معناد( کیی ـ Kei ) ریښه لری چه له هغی جملې په سانسکریت کښې (کسیتیس ـ Ksitis ) استو گنځی هم دی . دزیات تفصیل له پاره( روسی ایتیمولوژیك قاموس ) دپروفیسرپوری ار یژینسکی تالیف مسکو د ۱۹۵۸ کال چاپ، ۹۹۵ ، مخ وگوری.

| سوغدی | یغنوبی | پښتو |
|---|---|---|
| کپ | • | کب |
| • | ملغ | ملخ ( ۱ ) |
| مرغ ،مرغه | مرغ | مرغه ( ۲ ) |
| مغ ،مخ | موخ | موږ ( دجمع متکلم شخصی ضمیر ) |
| نوي | نوه | نوي ( عدد ) |
| نیست | نیسته | ناسته ( کښېنستل ) ( ۳ ) |
| نیم | نیم | نیم |
| نیغ ، نغی ( ژور ) | نیخ | نیغ ( مستقیم ) |
| پر | پر | پر ( باندې ) |

( ۱ ) ـ دا کلمه پریسیك گروپ له باختري ژ بو څخه اخیستې ده . یغنوبی ستنونه ( ۲۸۴ ) مخ وګوري .

( ۲ ) دا کلمه د ( وښو ، چمن زار ) په معنا په ایدګا کې (میرغو) په اویستا کې ( مرغه ) ده .

( ۳ ) ـ د کښېنستل او کښېنل ( غیرمستعمل مصدر ) په حال کښې او مستقبل په صیغو کښې لکه کښېنم چه اصل ریښه ېې ( نه ) او ( کښې ) پریفکس دي ) په باختري ژبو کښې په دې ډول دي : سوغدي ( نیست ،نیذ ) خوار زمی (نیذ) ختنی ساکی ( نید ) یزګولامی ( نیذ ، نوست ) روشانی ( نیذ ، نوست ) اشکاشمی (نیذ ،فیوست )مونجانی (نمش ـ نیبوست ) یغنوبی ستنونه ۲۹۳ مخ .

| سوغدی | یغنوبی | پښتو |
|---|---|---|
| پی | پی | په (۱) |
| پوغش، بغوغت | پوخس | پوخ |
| پی ، پت | پا | پوول ، ساتل |
| پ | اوپ | او په |
| پذك | پد | پلی، پل (دپښی) |
| پن | پیسنانچ | بن ( دمیړه دویمه ښځه ) |
| پرېذ | پیرانت | پیرودل |
| پوشغونك ( پیشو غوندې ) | پیش | پیشو |
| سك ، چیك | سیچی | هساك |
| سیخ | سیچه ( یو ډول مرغه دی ) | سیسی |

---

( ۱ ) ـ دا کلمه په خوارزمی کښې هم د( پی ـ pi ) په بڼه موجوده ده . په یغنوب کښې دوروستاړي په ډول دعمل دذریعې افاده کوي لکه ( کورتی پی ـ په چاړه ) یغنوبی متنونه ۳۱۳ مخ .

| سوغدی | یغنوبی | پښتو |
|---|---|---|
| • | سنچین | ستن ( دګنډلو )( ۱ ) |
| سترک، ستري | ستاره | ستوري ( ۲ ) |
| ورغ | ورغ | ورخ ( دپټی ) ( ۳ ) |
| بیس | وسك | باسل ، ویستل |
| برخت | و یراي | وریتول |
| بیرك ، بیري ، بیره | ویاره ( ماښام ) | برابی ( تیره شپه ) |
| و | وافر | واوره ( اویستا ـ وافره ) |
| • | وسه | خوسی ( ۴ ) |

---

( ۱ ) ـ د ( ستن ) کلمه په باختري ژبو کښې اویستی ( سوجین ) ایشکاشمی ( شتوون ) سونجانی ( شیژنه ) ایدګا ( شینجه ) متنونه ( ۳۲۱ ) مخ .

( ۲ ) ـ دستوري کلمه په نورو باختري ژبو کښې : خوتنی ماکی ( ستاري ) ایشکاشمی ( سرو وك ) مونجانی ( ستوري ) او همدا رنګه په پارفیانی کښې ( سترګك ) متونه ( ۳۲۰ ) مخ .

( ۳ ) دا کلمه په پارفیانی کښې ( بندورګك ) ده .

( ۴ ) ـ د ( خوسی ) کلمه په یغنوبی ( کښې ( وسه ) اوسیتی ( وس ـ ) یزګولیاسی ( ووـ ) ایشکاشمی ( و و سو وك ـ ) واخانی ( وشك )ده . متنونه ۳۵۰ مخ .

| سوغدي | یغنوبی | پښتو |
| --- | --- | --- |
| تونتر | تونتورك | تندر ( صاعقه ) |
| وشت ( وستل ، راتلل ) | اوشت | راوستل ۲ |
| وښشت | اوخت | اوښتل ، کښوتل |
| ونت ، ونك | اونت ، ونك | وندر ، وندي ، وندنی ( تړونی ) |
| تذي | تت | د لته ( ۱ ) |
| ويتير | تير | تيريدل ، تلل |
| وين ، ويت | وين ، ويت | وينل ( غيرمستعمل مصدر په وينم کښې ) |
| خو | خيك | خو ( لاکن مګر ) ( ۳ ) |

( ۱ ) ـ داسې معلومیږي چه په ( د ـ لته . ها ـ لته ) همدا رنګه ( کوم ـ لته ـ چیرته ) کښې د کلمو لومړي توکی داشارې اودویم دظرفیت له پاره دي . داتکل له مخې ددغې ظرفی کلمې اصل ریښه (تذ ـ Tatha) په (ایته دم Aitatha ) کښې ده چه لومړي توکی دلته هم داشارې افادې له پاره دی ـ ستونه ـ ۳۳۳ مخ .

( ۲ ) ـ دا کلمه په باختري ژبـو کښې په دې ډول ده : اویستا ( و و هو نی ـ ) شوغنانی او روشانی ( و یخین ) اروشري (واخین) یزګولیامی ( خوان ) ایشکاشمی ( وین ) مونجانی ( یین ) خوتن ساکی ( هونی ) ددې کلمې اريایی ريښه ( وا هونی ) اتکل شوې ده . ستونه ۱۵۳ مخ.

( ۳ ) ـ په خوتنی ساکی کښې هم ( خـو ) ایشکاشمی ( خو ) شوغنانی ( خو ) ده . ستونه ۳۵۸ مخ .

دلته دسوغدی یو وړو کی متن د(موغ) پرداوشهف نه دښکارندوی په ډول وړاندې کوم.

| | |
|---|---|
| Zkn pnčy MR'y | دپنج دخاوند |
| δyw' Styč | دیوشتیچ |
| Št Srδ '' γ | انه کاله شسه |
| mγy nysnyč | میاشت، نیسانیچ |
| myδ γwrrwč | ورځ، خورروچ |
| γty βyr'γwš mrγk | او دیور شمیروتکی |
| MN Prm'nδ'r | له پرمان لودی |
| 'wtt 20-20-3 (۲۳ سنه) | صوادونه ۲۰-۲۰-۳ |
| Pwst čw wrγ'k | د درعوره پوستکی |

تشریح :

ZKN ـ دا آرتهکل دي چه د(ن) ایډوګرام اوپه سوغدی کښی دمفرد مجروری حالت نخښه ده .

پنچی ـ (د (پنچ) خاص اسم دی او د (پنچ کنذیچ) مخفف شکل دی چه

د (پنځه ـ ښاري)معنا ورکوی او نن د( پنچکینت ـ پنځه‌ښاري) په‌نامه یادیږی .

د کلمې دویم توکی ( کنذ، کنت) او د پښتو ( کندی ـ قریه) له یوې ریښې دی .

سری ـ دسوغدی د (غو) یا (غوتو) یا (غدو) له پاره ایډوګرام دی چه د

(خاوندېڅښتن) په معنا دی .

ذیو شتیچ : داد هغه (ذیوا ښتیچ) اسم خاص دی چه داتمې پیړی په‌لومړی

ځلورمه کښې دسمرقند حاکم او دسوغد پاچاؤ . نوموړی داسلامی فتوحاتو په

وخت کښې دعربو له‌خوا وژل شوی دی او د(موغ) ارشیف‌دده پورې اړه لرله .

دده‌نوم له‌دغوتو کوچوږ دی : (ذیو ـ دیو ـ شت ـ حرکت بیداری) او(چ)

اسمی سوفیکس دی . داسم معنا (پردیوانو بریمن) ده .

شت ـ اته : اسم عدد چه په یغنوبی کښې (اشته) او همدارنګه په نورو

باختری ژبو کښې د(الف) او په پارسی ژبو کښې د (ه) په غیر تلفظ کیږی .

څه رنګه چه غیر یز توری په سوغدی الفبا کښې نه‌لیکل کیږی ځکه نو د

(اشته)په ځای (شت) لیکل شوی دی .

سرذ ـ کال : داکلمه په او یستا کښې(سرزند ( ر) په زور کې ـ کال)

په زړه پارسی کښې (ذارد ـ کال) ده . دپښتو په (سپرلی ـ ورغوی) کښې د

(کالنی) په معنا کښې هم داریښه لیدل کیږی.

(غ) په‌حال کښې دمفرد غایب په‌صیغو کښې فعلی رابطه ده چه په یغنوبی کښې یې په‌عوض کښې د (خ) غږ موجوددی ددغې رابطې معنا (دی شته) ده.

مغی ـ میاشت: دا کلمه په یغنوبی کښې (ماخ) ده.

نیشتیچ : دسوغدی (کلندر) د کال دریمه میاشت (نیسان) ده چه‌سامی ریښه لری.

میذ ـ ورځ : دلغاتو دمقایسې په جدول کښې وښوول شوه چه دغه کلمه د (ورځ) په‌معنا په‌زیاتو باختری ژبو کښې ریښه لری او د (مهال (سا) په (ماښام) ماسپښین) او نورو کښې یې هم ریښه احساسیږی.

غور روچ ـ دمیاشتی دیوولسمې ورځې نوم دی. تحت اللفظی معنا یې غور خور ـ لمر ـ روچ ـ ورځ ) ده.

د (خور) کلمه د (لمر) په معنا په باختری ژبو کښې ژوندۍ ریښه لری.

رتې ـ دپښتو د (او) په معنا دعطف ادات دی.

ویر ـ د (وړل) له فعله دماضی مفرد غایب صیغه ده.

غوشمر یك ـ شمیرونکی : د (شمیرشمار) له ریښې څخه دی. ددغې ریښې لرغونې باختری ریښه (خشمار ـ Xshmer) ښوول شوې ده چه‌دفارسی (شمردن) هم ورنه اخیستل شوی دی.

سن ـ (له،د) داد سوغدی د(چ) اویستا (هچه) خوارزمی (څی) فارسی(از) څخه ایدوګرام دی(۱).

دغه ریښه دپښتو په(زما)(ز ـ ما)او څخه (څه ـ څوا) کښې هم موجوده ده.

پر منذر ـ (واکمن فرمان والا) اسم ذات دی د (رئیس، واکمن،مشر) په معنا اود فارسی د (فرماندار) سرهسمون اری. دسوغدی (ذر)دپښتو د(لر ـ ل) سرهسمون خوری.

وتت ـ ولایتونه ایالتونه ـ (وت د څوا،ولایت ،ایالت په معنا او دویمه (ت) دجمع علامه ده. دپښتوپه( ایوات ـ هیواد) کښې ددغې ریښې څرك لیدل کیږی.

پومت ـ د(پوست، پوټکی)په معنا داسم ذات دی چه په زړه فارسی (پوسته) او په نوې کښې هم (پوست) دی.

چووریك ـ د (وړ غوره) په معنا ـ اصل ریښه یې (ور ـ) ښوول شوې ده.چه د پښتو د(وړ غوره او حتی غوړ) دریښې سره څپلوی لری.

---

(۱) ـ غالباً د ساسی ژبو له(سن ـ له ده) چه دی . دفارسی ایدوګرامونه په منځنی (ساسانی) فارسی کښې زښت ډیر وو.

| سوغدي | پښتو |
| --- | --- |
| خشپ | شپه |

د پښتو د ( ړ )غږ په مقابل کښې سوغدي د ( رت ) غږ لري .

| سوغدي | پښتو |
| --- | --- |
| زیرتك | زیړ،ژیړ |
| غورت | خوړل |
| سرت | سوړ |

د پښتو همدارنګه د آریایي ژبو د ( خ ) دغږ په مقابل کښې سوغدی د ( غ ) غږ کله کله او کله د ( خ ) غږ لري . دلوسري مثال :

| سوغدي | پښتو |
| --- | --- |
| غوش | خوښ |
| غورت | خوړل |
| غریك | خیږی |

دسوغدی په کلمو کښې نسبت پښتو ته د کلمو په منځ او همدارنګه په نورو ځایو کښې د ( غ ) غږ اضافه لیدل کیږي .

| سوغدي | پښتو |
| --- | --- |
| یغرت | ارت ( پراخ ) |
| نیغر | تیره ( تیز ) |

د پښتو د ( ږ ) دغږ په مقابل کښې سوغدي د ( ش ) غږ لري .

| سوغدي | پښتو |
| --- | --- |
| غوش | غوږ |

د پښتو دموجوده (ږ) دغږ په مقابل کښی کلمه کلمه سوغدی هیڅ غږ نه لری. غالباً علت یی دادی چه دسوغدی په الفبا کښی غږیز توری نه لیکل کیږی او (ش) لکه په نورو باختری ژبو کښی په (الف) تلفظ کیدله.

**یادونه :**

په دې مقاله کښی اساساً له دغو منابعو استفاده شوې ده :

۱- (ایرانی‌ژبی) د. ی. م. اورانسکی تالیف.

۲- (یغنوبی متنونه) د. م. س. اناریف اوی. م. پیشیریوه تالیف.

۳- دافغانستان تاریخ لومړی ټوك د و. م. ماسون او و. ع. روما دین تالیف.

۴- (دتاجیکی اولسی‌اشعارولە تاریخچی څخه) مولفی. س. براگینسکی.

# خوارزمی ژبه

## لرغونی خوارزم :

دقبل المیلاد شپږمې‌نه دمیلادی اوومې پېړۍ پورې دمنځنۍ آسیا داولسونو تاریخ ډیرپه تیاره کښې پروت‌دی . ددغې فاصلې تاریخ پوهنه‌په‌ډیرو لږو وړو ډیو آثارو کښې یعنې دزړې‌پارسي د کتیبو دیونانی، لاتینی، ارمیانی، چینایی، آسوري او نورو جغرافیه لیکونکو اومؤرخینو په‌روایاتو او لیکنو کښې لټول کېږي .

خصوصاً دلرغوني خوارزم په‌باب لیکلی اسناد‌ډیر لږاوپه تیارو کښې پراته‌دي تردې چه‌په منځنیو پېړیو کښې دعربو دفتوحاتو په وختو کښې‌هم خوارزم رڼاته نه‌دی راوتلی اودلسمې‌ تر‌پایه او دیوولسمې تر اوله د خوارزم په باب معلومات نیمګړي دي .

دخوارزم لرغوني کلتور ،تمدن ابادي اوملي افتخارات د قطيبه ابن مسلم په قوماندانۍ دعربو له لاسه په عيسوي ( ۷۱۲ ) کال کښې د خاورو سره برابر شول . همدارنګه د خوارزم کتابونه، کتابخانې وسوزول شول ليکوونکي او پوهان څوك ووژل شول اوڅوك نورو سيموته وتښتېدل .

په ختيځه خوارزمي دسنځنې آسيا دلسمې يو لسمې پېړۍ نامتو عالم البيرونې ددغې موضوع په باب ليکي :

« قطيبه له هرې لارې هغه کسان خواره واره کړل وېې زمول کوم چه په خوارزمۍ ليك پوهيدل اود خوارزم درواياتو ساتونکي وو او په دغه صورت هغه هرڅه له منځه لاړل چه داسلام ترراتګ موجود وو » .

دزړې پارسي په کتيبو کښې داويستا اوپهلوي په مذهبي متنو نو کښې په يوناني،لاتيني، چينايي،ارسياني منابعو کښې دخوارزم نوم ځای په ځای يادشوي دی.ګر دادوسره مفصل اوښېر اسنادنه دي چه دخوارزم معرفي وکړای شي .

همدارنګه دلسمې، يو لسمې پېړۍ په منابعو کښې موږ د خوارزم د تاريخ ډيرې لوړې ټوټې موندلی شو .

ددولسمې په پای اود يارلسمې په سر کښې خوارزم دلوی داسې لويې امپراتورۍ مرکز وګرزېد چه پولې يې د ګرجستان نه ترفرغاني اود هندنه دشمالي ارال ترډينتوو غزيدې .

دغه وخت خوارزم ته دمؤرخينو پاملرنه په زياته اندازه واوښته . دا وخت له هرڅه زيات دالبيروني په آثارو کښې موږد خوارزم د تاريخ سره ښه اشنا کېږو . البيروني په ۳ - ۹۷۲ ع کال کښې دخوارزم په لرغوني پلازمېنې کياته (فيره) کښې دښار دخوا اوشاپه ( بيرون ) نومې کلي کښې زيږيدلی ؤ .

خوارزم د لرغونو باختري قبا يلو سره دتل له پاره نژدې تاريخي کلتوري او اجتماعي روابط لرل . دزردشت دمذهب په ترويج کښې دخوارزميانو رول خاص

ارزښت لاره د ( بونداهیشن ) اونوروا سناد ویه استشهاد په خوارزم کښې یولوسرنی افسانوي پاچاییما ( جمشید ) دزردشتی مذهبي خورالرغونی اوډیرمقدس اوُر ـ هود دا د ( خورداد ) ادر هوره ( ادر خو را ) لګوای ؤ . حتی یو لړ مستشر قین لکه ( مارکوارت ، بارتولد اونور ) عقیده لري چه خوارزم د زردشتي مذهب د پیغمبر د پیدا ښښت ځانګو د ه .

همدارنګه ( ج ـ مارکوارت ) ( ۱ ) د لومړي ځل له پاره په ( ۱۹۳۸ ) کال کښې نظریه وړاند ې کړه چه په مخفی آسیا کښې د هخامنشیانونه تر مخه دخوارزم په مشرۍ لويي سياسي اتحادیی موجود ې وې چه په هغوی کښې سوغد اوخراسان ( جنوبی تور کمنستان ، شمال ختیځ ایران اولویدیځ افغانستان ) شامل وو . مارکوارت دغه نظریه د هیرودوت دلیکنو په اسناد و وړاندی کړې ده مګردا نظریه لاتراوسه یقینی نه شی ګڼل کیدلای . ځکه چه داسی اسناد په دې باب په لاس کښې نشته چه دا موضوع پرې روښانه شی .

### د خوارزم کلمه :

دخوارزم کلمه په عربی لیکنو کښې د ( خوارزم ) په زړې پارسی کښې ( اوواوزمیش ـ Urarzmish ) په بابلی کښې ( هوباریزمه ) او په اوستا کښې ( هوایریزم ) په زړه یونانی کښې ( خوراسیه ) ذکر شوې ده .

ددغه نوم په اشتقاق اومعنا کښې اختلاف موجود دی خودغه نظریه حقیقت ته نژدې ښکاري چه د کلمې لومړی توکی ( خوارا د ( لمر ) اودو یم توکی ( زم ) د ( زمکی ) په معنادي یعنی د ( لمرزمکه ، ختیځه زمکه ) .

---

1—J.Marguaty— (Iransh Ahy) Gottangen.

## خوارزمی ژبه :

کله چه موږ دسنخنیو باختري ژبو پلټنه کوو کو روچه دهغوپه لړ کښې خوارزمی ژبه هم سهم خای لري. دغه ژبه دخوارزم دآمودریان په لاندینې حوزه کښې معموله اوسروجه وه .

ددغې ژبې دمطالعې له پاره مواد بیخي لږ دي . د خراسان ( ۱ ) ایران او سنخنی آسیاد نورو سیمو په شان په لرغونی خوارزم کښې هم دآرامی په اساس جوړه شوې الفباءمنل شوې وه . په دې باب دخوارزمی په لرغونو سکوافسانی اوهمدارنګه د ( توپرك كلا ) په ارکیالوژیکو پلټنو کښې موندل شوی آرشیف چه د لیکلو تاریخ یې دزیمه میلادي پېړ ی اټکل شوې پښشاهدي ورکوي . لاتراوسه دغه آرشیف نه دي خپور شوی دهغه دیوازې درې سندونه خپاره شوي دی . ځکه نو دخوارزمی ژبې دمطالعې اساس لاتراوسه دعربی ژبو لیکوالو په تألیفاتو کښې په هغو اقتباسونو اوموادو ولاړدی چه نسبت یې بیخي وروستیو وختونوته کیږی .

په دغو تألیفاتو کښې اساسی ارزښت خوارزمی ګلوس ـ Gioss ـ خواشی ) لری چه دواده، طلاقو ،سوګندونو اونورو دودونو په باب دي اود ګلمو شمېرینی درې

---

( ۱ ) ـ باختری ژبه یا زړه پښتو له دغې جملې وتلې ده چه د هغې له پاره یونانی الفبا منل شوې وه ،ددغه حقیقت لوی شاهد د بغلان کتیبه ده چه په زړه ،نګه پښتو لیکل شوې اود ( ۹ ۱۳۴ ) کال دکابل مجلې په دوپمه اودریمه ګڼه کښې یې دیوه سهم پراګراف تحلیل وړاندې شوی دی .

زروته رسيږي . دغه کلمې په دیارلسمې پیړۍ کښې د خوارزم د قانون په وه الفا زمینې په حقوقي عربي تالیفاتو کښې راوړل شوي دي .

همدارنګه پولې خوارزمي جملې د الزمخشري ( یو ولسمه دولسمه پیړی) به ( مقدمة الادب ) نومې عربي - فارسي قاموس کښې هم راوړل شوي دي .

د منځنی آسیا د نامتو عالم البیروني په عربي لیکنو کښې د خوار زمي د کلیزې ( کلیندر) اونجومي اصطلاحات هم ذکر دي .

خوارزمي جملې او کلمې چه د عربو په تالیفاتو کښې ذکر شوې دي په دا سې عربي الفباء لیکل شوي او ساتل شوي دي چه د خوار زمي له پاره د ځه تو ر و او نځینو ژباتوالي ور کښې راغلي دي .

هرنګه چه د خوار زمي په افاده کښې البیروني په نسبتاً یو ه ثابته ا لفباء اتکاء لری له دغه ځایه معلومیږي چه عربي الفباء د خوار زمي له پاره لږ تر لږ ه د لسمې پیړی د پای نه ترمخه منله شو ې ده .

د خوارزمي کلمو اکثریت ( مخصوصا د الغازمیني په حقوقي تالیفا تو کښې ) دغو د کتې ستې افادی له پاره حرکات (زور، زیر اونور ) په کاراچول شوي دي .

د الغازمیني د خوار زمي حوا شیو په تحلیل کښې له خو ا رز می ځخه په عربي او فارسي کښې موجودو ترجمو هم ډیره مرسته کړی د ه . دد غو موادو څیړ نو او پاتنود نامتوشوروي ؛ پوه ا . ا . فریمن سره په د یار لسمه پیړی کښې د خوارزمي د سیستم او دنورو باختری ژبوسره د هغې د خپلوي د تثبیت په باب مر سته وکړه . د البیروني د لیکنو د شهادت له مخې ثا بتیږي چه د ده په وخت کښې لا خوارز مي ژوندی و ه .

د دولسمې دیارلسمې پیړۍ په تالیفاتو کښې دخوارزمي دغټا رااتوا قتباسا تو موجودیت محقق ته اجازه ورکوي چه حکم وکړي دخوارزم پوشمیر او سېدونکو خوارزمي ژبه دکومې بلې ژبې په څنګ کښې لاتر دغه وخته ساتلې وه. خوله دغه وخته وروسته دتل له پاره په پرېکړې ډول خوارزمي ژ به مړه اوله منځه لاړه.

دخوارزمي په باب اساسي پلټنې ا.ا. فریمن په (خوارزمي ژبه) اودوبه هینینګ په Mitteliranisch کښې وراندې کړي دي چه دلوستونکو داستفادې په منابع کښل کیږي.

## په آریایي ژبو کښې دخوارزمي ځای:

کله چه مونږ آریایي ژبې (۱) په (باختري او پارسي) د بوودلو ډشو ژبې مقایسه او پرتلنه حکم کوي چه خوارزمي ژبه دباختري ژبو په لړ کښې درېږي مثلا:

د باختري اوپارسي ژبو ترمنځه دبېلتون یوفونیتیکي لوی خصوصیت دا دی چه دفارسي کلمو په سر کښې د (ب. د. ګ. ج. ه) د غږونو په مقابله کښې باختري ژبې د (و. ذ. ((ل)) . غ خ .ا.) (۲) غږونه لري.

---

(۱) ـ کله چه (آریایي ژبې) یادوو مطلب موو رنه (هند و آریایي) نه دي بلکې هغه ژبې دي چه کله کله په غلط مشهو ر د و ل د (ایراني ژبو) په نامه هم یادیږي.

(۲) دباختري ژبو (ذ) دغږ په مقابل کښې پښتو هندارنګه مونجاني (ایدګا) د (ل) غږ لري.

پەدغە خصوصیت کښی خوارزمی هم دنورو باختری ژبو سره ځپله لرغونی خپلوی ساتلی ده .

مثلاً:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| پښتو ـ | ورل | لرل | غوی | غرمن | اووه |
| سوغدی ـ | ور | ذر | غو | . | اود |
| خوارزمی ـ | ود | ذرین | . | غرم | اود |

د اکلمې په پارسی ژبو کښی د ( ب . د . گ . ج . ا ) په غږونو شروع کیږی .

دگرامر په باب هم باختری اوپارسی ژبی په یو لړ تپیکو خصوصیاتو سره بیلیږی چه یوله هغو ځخه دصفت اوموصوف هم دارنگه مضاف اومضاف الیه ترتیب دی .

په پارسی ژبو کښی معمولاً موصوف لصفته ( هم دارنگه مضاف لمضاف الیه ) نه ترمخه راځی .خو په باختری ( اوهغو په شکه کښی ) پەخوارزمی کښی صفت له موصوفه ( اومضاف الیه له مضافه ) ترمخه راځی .

د ښکارندوی په دول دغه دوه مثالونه وگوریم:

خوارزمی ـ خوب ذغد ـ ښه لور

سوغدی ـ پریه مته ـ گرانه مور

کله چه بیا باختری ژبی یوتر بله مقایسه کړو گورو چه خوارزمی ( دسوغدی او سیکیفی لهجو په څنگ کښی ) دشمالی باختری ژبو په دله کښی د ربږی اودجنوبی باختری ( پښتو اوپامیری ) ژبو ځخه لیری کیږی .

دشمالي باختري ژبويولو ی خصوصيت دا دی چه هغوي دجمع له پاره د ( ت )
وروستاړي لري مګرددغه وروستاړي په مقابل کښې بيا خوارزمی د (خ) غږ لري
لکه : ( نيغوسيخ ـ او ر يدو نـکـی ) ( تيکـا نـخ ـ ميـخو نه، مو ږي )
( ابروخ ـ وروځی ) .

يوزيات شمير ژ بنی خصوصيات شته چه خوارزمی دهغوله مخی کله کله
له سيکيفی( اوسيتی ) څخه ليرې کيږي اودسوغدی سره همغا ړه کيږي . ا و
کله کله بالعکس، دلته د تولو خيړل دومره ضروري نه ښکاري ځکه نسو و رنـه
تيـر يږ م .

دخوارزمی دمتن نمونه ( ۱ ) .

## ، ماڅرين بادُغدام ږي يد ذيناژن کابينُ

تشريح :

( هاويرين ـدي ـ مادرکړه تاته ) .(هاويرين )دماضی مفرد متکلم صيغه ده .
د فعل ريښه ( هاور ـ و ر کول ) ده . د غه فعل په ما کی کـښې ( ها و ر )
په سوغدی کښې ( ذور ) ( ۲ ) په يغنوبی کښې( تيفار )دی .

---

( ۱ ) ـ دغه متن په عيسوي د پار لسمه پيړی کښې د خوا رزمی قا نون
پوه الغا زميني له ( کنت المنيه ) څخه اخيستل شوي دي(ارانسکی ) .
( ۲ ) ـ کيدای شی چه د پښتو په ( لوريدلو ) کښې داريښه والټول شی .

د ې ـ په‌دويم حالت دمخاطب مفرد منفصل غيرمستقل ضميردی . دا ضمير چه په‌اوسیتی کښې د ( دي ـ dy ) اويستا ( ذوه ) ار ميا نی ( د و ـ du ) جرمنی ( د و ـ du ) همدارنګه‌څينی ( دو ـ du ) په‌بڼه‌موجوددی، په پښتو کښې ژوندی فورمه‌لري . لکه په ( قلم دې، ودې ليد ) اونور.

يا ـ دمؤنث له‌پاره ارتيکل دي .

ذ غدا ـ مې ـ لورمې . دغده اسم ذات مفرد مؤنث دی چه په اويستا کښې د ( دوغتر ) اوپه‌پارسی کښې‌د ( دخت، دختر ) په بڼه هم موجود دی .

مې . ـ په‌دويم حالت کښې دمفرد متکلم اضافی ضمير دی‌چه په‌پښتو کښې د ( مې ) په‌بڼه لکه په ( کورمی، ورورمی ) کښې ژوندی دی . د غه ضمير په همدغه‌معنا په‌اويستا کښې د( مې ) په زړه پارسی کښې د ( مې ـ Maiy ) اوپه نوي پارسی کښې د ( ام . م ) په بڼه موجود دی.

پی ـ ( داخدمتی کلمه ده چه کټه مټه‌دپښتو د ( په ) معنا ده . دادات په پښتو کښې ( په ) په‌اويستا کښې ( پا يتی ـ paiti ) په زړه پارسی کښې ( پاتی ـ Patiy ) په منځنی پارسی‌کښې ( پذ ) په سوغدی کښې (پی ) په يغنوبی کښې ( پی ) په شوغنانی کښې ( پی ـ dy ) په روشانی کښې ( په ـ ad ) په ايشکاشمی کښې ( په ـ په زورکی ) دی . دا کلمه په‌ايندو يو روپی ژبو کښې ثابته ريښه لري چه څېړل يې موضوع اوږدوي .

سيد ـ سل . ددې کلمې په مقابل کښې فارسی د ( صد ) کلمه لري .

ذینارنه ـ ( دیناورنو ) . داد ( ذینار ) دجمع صیغه پهدویم حالت کښی ده ( نه ) پهدویم حالت کښی دجمع د ښو و لو و رو ستاړی دی . په پښتو کښی د ( ـ نو ) سره سمون خوري لکه په ( کلونو کورونو ) کښی .

کابین ـ اسم ذات د ( ولور ) او ( مهر ) معناور کوي .

یعنی :لورمی په سل دینارو نو در کړه .

یادونه : پهدغه مقاله کښی لهدغو دوومأ خذ ونو څخه زیاته استفاده شوې ده :

لومړی: (ایرانی ژبی) دی. م. ارانسکی تالیف ـ مسکو ـ ۱۹۶۳ کال .

دویم :(دلرغونی خوارزم دتمدن په پلونو) نومی کتاب سوفس .پ. تولستوف مسکو ۱۹۴۸ کال .

## اوسیتی ژبه

دپاختری، ژبو په شمالي ګروپ کښې یوه هم اوسیتي ژبه ده. اوسیتي ژبه دلرغونو سکیتي (ساکي ځانګې) ژبې پاتې شونې ده. سیکیتیان هغه باختري توکم وچه له باختره. کوچیدلي او دتورې بحیرې نه نیولې دچین دپولو پورې په دې لویه ساحه کښې په قبل المیلاد زرو کلونو کښې د کوچیانو په صفت خپاره او میشته وو.

دسکیتي قبایلو یوه ښبه (دالان) قبیله ده. الاني ژبه دسکیتي قبایلو په یوه دیالیکت ولاړه، منځني اریایي ژبه او دمعاصرې اوسیتي سره ګډله کیږي: په الاني بشپړ متنونه لاس ته نه دي راغلي خوځانګړي څه لغوي موادورنه پاتې دي.

خپله د (اوسیتي) کلمه اریایي ریښه لري چه (آس) دي او دالاني یوې ښې نوم و. دغه ریښه په اویستا کښې (اسو Asu) دګړندي اوچابک په معنا - دپښتو (اوسی- هوسی) او دفارسي (آهو) هم له دغې ریښې دي (۱).

---

۱- (ایراني ژبې) ۵۹ - ۶۰ مخونه.

د (الان) کلمه هم د(د-ل) په قیاسي بدلون د(اریا) او (اریان) دهغې کلمې اوښتې بڼه ده چه په اویستا کښې (ایریانا- Airyana ) او په زړه هندي کښې اریا - Arya ) دارین توکم له پاره استعمالیدله .

داوسیتي ژبې معاصر تاټو بې قفقاز (څه یې د روسیې په فد راسیون او څه یې د گرجستان جمهوریت) دی . ددغې ژبې دوینکو شمیر څلور سوه زرو تنو ته رسیږي .

اوسیتي ژبه په دو واساسي دیالیکټونو ویشل کیږي :

الف : ایروني (ختیځ) .

ب : دیگوري (لویدیځ) .

دغږونو دجوړښت او دگرامري فورمو په ساتلو سره دویم دیالکټ بیخي لرغوني خصوصیات ساتلي دي .

دلته د پښتو او اوسیتي ترمنځه لنډه فونیتیکي مقایسه وړاندې کیږي چه دهغې له مخې ضمناً دباختري ژبو سره دهغې خپلوي ته اشاره وشي :

د پښتو د (پ) دغږ په مقابل کښې اوسیتي د(ف) غږ لري .

پښتو : پنځه ، څپېره ، پرون ، پوزه ، پوخ ، پسه ، په .

اوسیتي: فنځه ، څف ، فرون ، فونځه ، فوخ ، فوس ، فه .

دیوالړ کلمو په سر کښې اوسیتي د(الف) (اوگومیټ) غږ لري چه پښتو (اونورې باختري ژبې) یې نه لري مثلا :

پښتو : د(د«له» په معنا) سنل ، گورل ، نغوتل، زه .

اوسیتي : اد، اسنون ،اگورون ، انغو دون ، از .

داوسیتي فونیتیکي مقایسه گرامر اونور بشپړ معلومات د (۱۳۳۹) کال دکابل مجلې دقوس او جدی په گڼو کښې خپاره شوي دي .

# زړه
# پارسی

دتاریخي اسنادو په‌شهادت دایراني قبایلو اصلي ټاټوبی معاصر افغانستان او هغه ته ورڅېرمه سیمې دي . لاهماغه وخت چه ایراني قبایل په خپل ټاټو بي کښې او سیدل د باختري قبایلو سره یې عشیروي ، کلتوري او اقتصادي روابط دومره ټینګک نه‌وواوهمدغه دروابطو سستوالی د دې یوسبب شو چه د دوی ژبه لوسړی په‌بیلو بیلو دیالیکتونو ( لهجو ) اوبیا په‌بیلو بیلو ژبو وویشله‌شی .

دغه‌بیلتون اوپه ځانګړو ژبوویش د پیړ یو پیړ یو جغرافیی لیرې واټن لازیات کړچه په‌خپل اصلی‌ټاټوبی ( باختر ) کښی د باختري او په لو یدیځ (ایران ) کښی پیرسیك ژبی دبیلو بیلو ګروپونو په حیث متشکلې شوی چه دا دوه ډلې د ( باختري ) او ( پیرسیك ) په‌نوسونو اوس پیژنو .

د پیرسیکو ژبو په لړ کښې په کومه چه ډېر لرغوني لیکل شوی مواد د پوهنې په واك کښې شته هغه زړه پارسي ده چه په میخي لیك دودلیکله کیده .

دغه لیکنې د هخامنشیا نو د کورنی ( ٦ - ٤ ق م پیړي ) د پا چایانو په امر دیوې لوړې تجارتی لارې په سر پهشاهی هدیره کښې په طلا یی تیکلیو ' په کودیواو ډېرو په توتو لیکلی شوې دي .

دغو لیکنو د پوهنې دپاره تقریباً دوه نیم زره کاله پخوانی متن وړاندې کړی دي . پهزړه پارسي تر ټولو لویه اومهمه کتیبه هغه ده چه په نړۍ کښې د بیستون د کتیبې په نامه مشهو ره اود لوی دارا ( ٥٢٢ - ٤٨٦ ) قبل المیلاد پهحکم د بغد اد اوری پهلویه لاره کښې معاصر کرما نشاه ته نژدې د یوې لویې تړې په مخ لیکل شوې وه ( ١ ) .

همدارنګه په معاصر شیراز کښې د ( نقش رستم ) په نامه کتیبه چه هغه هم لوی دارا ته منسوبه ده ډېره اهمیت لري .

په زړه پارسي دغه لاس ته راغلي لیکلي مواد تقریباً ټول یوشان دي اوډېر تو پیر سره نه لري

زړه پارسي په میخي لیك دودایکل کیده - میخي لیك دود دومره بشپړ توري نه لرل چه په ژبه کښې د ټولو موجود وغږونو افاده یې کړې وای . مثلاً د ( ر ) او ( را ) د پاره یوتوری موجودو داوړدو اولنډو ( و - ي U.i ) ( افاده یو شانې کیده همدارنګه دیفتونګ اومونو فتونګ ( د دوه غږیزو اویازیاتو غږیزو کلون ) دافادې د پاره هم خاصې نښې موجودې نه وې . مثلاً :

---

١ - دبیستون په کتیبه کښې د پوهاند حبیبی دتحقیق له مخې دری سری په نګه پښتو دي . په دې باب دپښتو د ادبیاتو تاریخ لومړی ټوك و ګوری ( ٠

داشکل :



په څوډوله :

Vazraka- Vazaraka Vazara ka- Vazrka— vazaraka-

ویل کیدای شو . له دغه ځایه د زړې پارسی دفونیتیك تثبیت د زړونو روښلا اویستا او زړې هندی او دهغی دخپلوانو ( منځنی پارسی ) په مرسته شوی دی . خصوصاً په دغه مقایسه کښې اویستا ښه مقام لري . د اویستا او زړې پارسی د مقابلي څوتیپیکی خواوې دلته وړاندې کوم :

۱ — داویستا د ( س ) دغږ په مقابل کښې زړې پارسی د ( ذ ) غږ لاره .

اویستا ( سوره = زور ،قوت ) زړه پارسی ( ذ وره ) نوې فارسی ( زور ) . اویستا ( مثې شته _ Masishta لوی ، مشر ) زړه پارسی ( مذ یشته ) .

۲ ـ داویستا د ( ز ـ ) دغږ په مقابل کښې زړې پارسی د ( د ) غږ لاره چه ددغه غږ په مقابل کښې پښتو کله د ( ل ) او کله د ( ز ) غږلري :

اویستا ( زاسته ) پښتو ( لاس ) زړه پارسی ( دسته ) نوې پارسی ( دست ) .

اویستا ( ازم ) پښتو ( زه ) زړه پارسی ( ادم ) .

اویستا ( زن ـ ) پښتو ( پیژندل ) زړه پارسی ( دان ) ـ ( دانش ) .

اویستا ( زماتره ) پښتو ( زوم ) زړه پارسی ( ؟ ) نوې پارسی ( داماد ) .

اویستا ( زرایه —Zrayah ) زړه پارسی ( درایه ) نوې پارسی ( دریا ـ سیند ) .

۳ـ داوستا ( ذر ) دزړې پارسی د ( ذر ) سره سمون خوري چه وروسته دا غږ یا په پارسی کښې په ( س ) اوښتی دی . او په پښتو کښې په ( در ) یعنی تقریبا په خپله لرغونې بڼه پاتې دي :

اویستا ( ذریتیه )، زړه پارسی ( ذریتیه ) پښتو ( درې ) نوې پارسی( سه ) .

اویستا( پوذره )زړه پارسی( پوذره )منځنی پارسی( پوس ) نوې پارسی( پسر ) .

دا کلمه په ( بوره .. هغه ښځه چه اولادیې سړوي ) او ( تربور ) کښې پښتو د ( بور ) په بڼه ساتلې ده .

۴ ـ داویستا د ( سپ ـ Sp) په مقابل کښی زړه پارسی د ( س ) غږ لري .

اویستا ( اسپه ) زړه پارسی ( اسه ) پښتو ( اسپه ) ( ۱ ) .

اویستا ( و یسپه ) زړه پارسی(اویسه ) پښتو ( بس ) .

دگرامر په لحاظ زړې پارسی لکه اریایي نورولرغونو ژبودحالت دافادې دپاره دلاحقو داوښتنې ( فلکتیف ) سیستم لاره یعنی دگرامري حالت افاده یې دلاحقو په تغییر کید له ـ اسم ذات د اساس په غږیز ( الف ـ زور ، ي ، و ) او بې غږه وروستاړي دموجودیت سره سمې بیلې بیلې لا حقې لرلې .

جنس ( نرینه ، ښځینه او منځنی ) همدارنگه شمیر ( مفرد ، تثنیه او جمع ) یې لرل .

همدارنگه اته حالته ( فاعلی ، مجروري ، ندایی ، مفعولی ، ظرفی ، دمفعول له ، آله یي اوتبعیدي ( Ablative ) یې لرل . دضمایرو په تصریف کښې لوی

---

۱ ـ په مذکر ( اس ) کښې پښتو دزړې پارسی په لاره ځی .

رول د ریښې د اوښتني (لکه ؛ زه، ما ) سیستم لوباوه چه‌دې ته د ژبپوهنی په اصطلاح ـ Suppletive سیستم وایی .

په‌جنس اوشمیر کښې دفاعل او خبر صفت اوموصوف اونو روتر منځه سمون موجودؤ .

ددې ټولوسره سره‌بیا هم‌دنورو لرغونوآریایی ژبو مثلا ( اویستا ) په‌مناسبت زړې پارسی دلرغونې اریایی لرغونې خصوصیات په‌ځان کښې نه‌ووساتلی‌د مثال دپاره :

۱ ـ په‌زړه پارسی کښې دمفعول له ـ Datif له پاره خپله‌لرغونی خاصه لاحقه‌له منځه‌تللې وه اوددغه ګرامري حالت‌افاده په مجروري حالت کیده . خو ددغه حالت‌دپاره په‌اویستا کښې لرغونې لاحقه لاژوندی وه .

۲ ـ دتثنیې استعمال بیخی په‌لږو مواردو کښی ښکاریده اساساً له‌منځه‌تللی‌او دمړه په حکم ؤ .

۳ ـ دماضی قریبی ( Perfect ) او ( آوریست ـ Aorist )لرغونی فورمې نورې په زړه پارسی کښې سړې شوې او له منځه تللې وې . ماضی‌قریبه دهغوفعلی‌صفاتو په ذریعه له منځه تللې وه چه په ( ته ـ Ta ) ختمیدل .

۴ ـ اِدا تو خپلو اګی له لاسه ورکړې وه اودفعل سره ګډ شوې وو ( ۱ ) دزړې پارسی دیوه متن یوه برخه ( ۲ ) .

---

۱ ـ ایرانی ژبی ( ۱۵ ) مخ .

۲ ـ دلو سړي دا ر ا د یوې کتیبی دلو سړ یو څلورو کرښولوست‌اوترجمه.

Baga Vazrka Ahuramazda hya avam asmaanam ada hya imaam bumimada hya martiyam ada shiyaatim ada martiyahy Xshy-ahya eshadram fraabara tya vazrkam huvaspam humar-tiyam.

## تشریح :

(بگه ـ Baga خدای ) تشریح یی دبغلان دسره کوتل دکتیبی دلومړي پرا گراف د ( بغه شاو ) د کلمی په تحلیل کښی تیره شوی ده .

(وزرکه ـ Bazrka بزرگ ،لوي)منځنی پارسی(وزورغ )نوی پارسی(بزرگ) .

اهورا مزد Ahuramazaa اهورمزد خاص اسم .

هیه (نسبتی اشاري ضمیر ) دی . دا ضمیر په او یستا کښی ( ها ، هو) په پښتو کښی ( ها + غه ـ هو + غه ) په زړه هندي کښی ( سیه ـ Sya) زړه سلاو یانی کښی ( س ، سیه ) .

د ( س ) غیر داشاري له پاره دپښتو په ( سږ ـ کال ) کښی لیدل کیږي.

اوم ـ اشاری ضمیر په مفعولی حالت کښی فاعلی حالت یی (اوه ـ Ava )نوی فارسی(او).

آسما نـم ( آسمان ) اسم ذات پـه مفعولـی حـالت کښی دا کلمه په او یستا کښی ( آسمان ) زړه هندی کښي ( آسمان ) په پښتو کښی ( آسما ن ) .

ادا ـ Ada دمفرد غایب ماضی صیغه ده د ( جوړولو ) او ( دروداو ) په معنا اساس یی دا ـ Da په او یستا کښی (دا) زړه هندی کښی (دها ـ Dha ).

ایم ـ په مفعولی حالت کښی اشاري ضمیر دی چه فاعلی حالت یي(ایمه)

منځنی فارسی ( ایم ) ـ نوي فارسی ( ا م لکه : په( امسال )(امروز) کښې .

بوییم ( ځمکه ) اسم ذات په‌مفعولی حالت کښې ، فاعلی حالت یې(بوسی)

دی . دا کلمه په اویستا کښې ( بوسی ) زړه هندی کښې ( بهوسی ) په نوي

فارسی کښې ( بوسی ) .

مرتییم ( Martiyam = سړی ، انسان ) صریحی مفعول دی .

دالفظ په اویستا کښې ( ماشیه Mashya ) زړه هندي ( مارتیه )منځنی

پارسی ( مرذ ) نوي پارسی ( مرد ) او پښتو کښې ( میړه ) دی .

شیتیم Shiyaatim ـ خوښ ، ښاد ) مفرد مونث مفعولی حالت دی.

دا کلمه په اویستا کښې ( شاتی ) منځنی پارسی کښې ( شاذ ) نوي پارسی

( شاد ) پښتو کښې (ښاد ) ده .

دا ریه وهم Darayavahum خاص اسم دي په مفعولی حالت

کښې ، لومړی تو کی یې ( داریه ) د ( دار ـ ارل ) او دویم یې د ( وه ـ بهه)

د ( ښه ) په معنا دی .

خشایم ( شاه ، پاچا ) اسم ذات مفرد مذکر په‌مفعولی حالت کښې( په‌یغه‌شاو)

کښې یې تشریح تیره شوې ده .

اکو نوش ـ Akunush ،دماضي مفرد مذکر صیغه ده‌ریښه یې د( کردن)

دحال له اساسه یعنې ( کن ) ده .

داریه واهوش ـ Drayavahaush اسم ذات په جري‌حالت کښې مفرد

مذکر .

ـ خشییامځیه ـ Xshyaha پاچایی ) مفرد مذکر په مجروري حالت کښې

تفصیل یی د ( بغه شاو) په تشریح کښی وړاندې شوی .

خشاذرم ( هیواد ، شار ) تفصیل یی د ( بغه شاو )ددویم توکی‌په‌تشریح کښی‌و گوری‌ء.

فرابره ـ Fraabara ریښه یی ( بره ـ وړ ل ) دی او ( فرا ـ (Fra پریفکس دی لکه په ( فراهم )،(فرا بر دن ) کښی .

تیه ـ Tya د ( هیه ـ Hya ) ( پاس ذکرشو ) نسبتی اشاري ضمیر او ښځی صیغه ده چه کله کله دموصوف او صفت تر منځه د ربط وظیفه هم اجرا کوي .

( وزرکم Vazrkam ) (د خشازرم ) دپاره صفت دی (تفصیل یی‌څو کرښی تر مخه تیر شو) اودخشاذ ره سره په جنس‌،شمیراو حالت کښی‌سمون‌لری.

۱ هیا سپم ـ (hyaspam دښوا سونو لرونی ) دا کلمه له‌دووریښو ( هوـښه ) او ( اسپ ـ اس )نه جوړه ده او د ( خشاذره ) دپاره صفت دی .

هو مر تییم (humarivamدښو سیړونو لرونی)دا کلمه هم په ( هوـمرتیه ) دووریښوویشل کیږی.

ترجمه : خدای ـ لوی اهرومزد هغه چه آسمان دروئی دی هغه‌چه‌دغه ځمکه جوړه کړی ده هغه چه سړی ( انسان ) جوړ کړی دی چه دانسان دپاره ښیگڼه جوړه ( پیدا ) کړی ده هغه چه داراپاچا کړ چاچه‌پاچاداراته هغه پاچایی وبخښله کومه چه ښه اسونه او ښه سیړونه لری .

## ۲- منځنۍ پارسي :

منځني آریایی ژبی عموما او منځنی پارسی‌خصوصا دقبل‌المیلاد دځلورمې

اودریمی پیړی نه تر میلا دی اتمی اونهمی پیړی پورې ژوندیو ژبو ته اصطلا حاً ویل کیږی . دغه وخت کافی کتیبې په منځنی پارسی ، منځنی پښتو ( باختری )، پارفیانی ( اشکانی پهلوی ) ، سوغدی،خوارزمی او نورو دېو هنې د استفاد ې دپاره موجودی دی .

دمنځنیو آریایی ژبو یو لوی خصوصیت دادی چه ددوی په گرامری جوړښت کښې لوی تحول راغی . لرغونی فلیکسی ( دلوا حقو په ذریعه گرامری اوښتنې ) سیستم مخ په وتلو شو او فعلی اتا لېتیزم ـ Analytasm سیستم (د کومکی فعل په مرسته دفعل دجوړولو لار ) ډیر فعال شو ـ دغه تحولات مخصوصاً په منځنی پارسی کښې نسبت نورو تولو ته ډیر زیات وو ( ۱ ).

دزړې پارسی وروستی کتیبه چه په میخی لیك د و د ایکل شوې وه په قبل المیلاد څلو رمې پیړی پورې اړه لری. دمنځنی پارسی لومړی متن چه نن دپوهانو په لاس کښې دی یوازی ددریمی میلا دی پیړی پوری ربط لری . او په د غه صورت دزړی او منځنی پارسی تر منځه شپږ پیړی داسی تیری شو ی د ی چه داستفادی وړ کوم لیکلی اسناد نه دی ورنه پاتې.ضمناً ددواړو مرحلو ژبنی مقایسه داښیی چه په دغو شپږ و پیړیو کښې پارسی ژبې زښت ډیر فونیتیکی،گرامری او لغوی اوښتنې او تحولات گا للی دی .

دزړې پارسی گرامری اوښتنې( فلیکسی لاره )په منځنی پارسی کښې خصوصاً داسم په باب بیخی له منځه تللی وې . دجنس ( تذکیر او تأنیث ) کتیگوری یې بیخی له لاسه ورکړې وه .

---

۱ - ایرانی ژبې ،اورانسکی ٦١ مخ .

ګرامری اوښتنی نورې ورکښې هیڅ نه وې دضمیر درېښې دبدلون (سویلیتویزم-لکه زه ـ ما) دسیستم نور ورکښې درك نه ؤ ـ همدارنګه دتثنیې حال هم ؤ.

دفعل په ګرامری سیستم کښې هم یولږ اوښتنې منځ ته راغلې: دفعل هغه فلیکس لرونکی inflexiounal فورسه چه په زړه پارسی کښې په فعلی اوزمانی خاصولاحقو پای ته رسیده بیخی مختصره شوه،ماضی هغه فعل له استعماله لویدلی ؤ چه دفعل دحال له اساسه دنبښتی الف په مرسته جوړ شوی ؤ (۱) او ځای یې دماضی فعلی صفاتو ونیو.

په لاحقو دتغییر دسیستم له منځه تلل لا په زړه فارسی کښې دهخامنشیانو په وخت کښې شروع شوی ؤ د زړې پارسی دمخکښینیو اووروستنیو کتیبو په مقایسه کښې داموضوع ښه څرګنده ده. د زړې پارسی په وروستیو کتیبو کښې داسی لیدل کیږی چه په لاحقوسره دګرامری حالاتو تغییر ژوندی نه ؤ بلکې دیوه‌زاړه دود په حیث استعمالیده.

په پیر سیکو ژبو کښې عموماً او په پارسی کښې خصوصاً د فلیکس سیستم له منځه تلل له هرڅه زیات دخچ داغیږې پورې زیات ارتباط لاره: په زړو پیرسیکو ژبو کښې (د کلمود هجاودځوسره والی په تعلق) خچ قانوناً د کلمو له آخره په دویمه یادریمه هجالویده او په دغه صورت جنسی (دتذکیر او تأنیث) اوحالتی

---

۱- دالاحقه د پښتو په اغوندل (وابه یی غوندم) (الو زول) (وابه لوزی) اونورو کښې ژوندی ده

(فاعلی مفعولی اونور) لاحقی همیشه بی خجه اوپه کمزوری وضع ـ Reduction کښې واقع وی چه داوضع ددوی له منځه تللو سبب شوه (۱) مثلا په دغه لنډه مقایسه کښې زړه او منځنی پارسی وګوریء :

| | زړه پارسی : | منځنۍ پارسی |
|---|---|---|
| فاعلی حالت | Persa پارسه | پارس |
| مجروری او دمفعول له حالت | Parsahya پاسهیه | پارسی، پارس |
| مفعولی حالت | Parsam پارسم | رو |
| ظرفی حالت | Parsaiy پا رسیه | پارس |
| تبعیدی حالت | Parsa پارسا | پارس |

یوازې په یوڅو خاصو اسمی فورمو کښې دلرغونی فلیکس پاتې شونی لاوو: مثلا د جمع دپاره د (ـ ا ن ـ An ـ) سوفیکس په منځنی پارسی کښې دلرغونی (انم ـ Anam ) پاتې شونی وچه دجمع په مجروری حالت کښې موجود ؤ (۲).

دلته باید زیاته شی چه همدغسی تحول په نورو منځنیوآر یایی ژبو کښې هم راغلی ؤ . خو په ځینو کښې په ډیره زیاته اندازه او په ځینو کښې په لږه اندازه .

په باختری ژبو کښې دفلیکس سیستم نسبت پیر سیك ګروپ ته تینګ اوډیر لږتغییرپه کښې راغلی ؤ . باختری ژبې لاتراوسه لرغونی آریایی دفلیکس دسیستم

---

۱ـ ایرانی ژبی (٦٢) مخ .

۲ـ ایرانی ژبی (٦٣) مخ .

زیاته اندازه پاتې شوني لري چه دجنس اوحالت په تصریف کښې لیدل کیږي .

سوغدی او خوارزمی دماضي فعل هغه فورمه چه دحال له اساسه جوړه او په پیرسیکو ژبو کښې مړه وه ژوندی ساتلې وه همدارنګه دفعل یولړ نورلرغوني خصوصیات (خصوصاً په سوغدی کښې) ژوندي وو .

په دې وخت کښې پیرسیکو ژبو یوبل تغییر هم وزغامه او هغه دا چه په لرغونو آریایي مثلا : زړې پارسي کښې یوزیات شمیر فعلي فورمې او اسمای ذات ووچه په غبرګز تماسیدل . باختري ژبودالرغوني خصوصیت وساته خو پیر سیکو ژبو له لاسه ورکړ (۱) .

همدارنګه دفونیتیك او ګرامر په نورو برخو کښې هم پیرسیك ګروپ ډیرې او ښتنې وزغملې او دازغم ددې یوبل سبب شو چه باختري او پارسي ژبې سره نورې هم لیرې شي . نوکه په قبل المیلاد دریمه پیړۍ کښې یوناني (ایراتوسفین) ویل چه دپارس ، مادیا ، باختر او سوغدیان ژبه یوه ده چه لږ څه توپیرلري - همدارنګه که په د و یمه قبل المیلاد پیړۍ کښې چیني سیاح (جزان سیان) ویل چه دفرغاني نه ترپارتیاپورې دخلکو په لهجو کښې که څه هم توپیرزیات دی خوژبې یې یو تربله ورته دی او په خبرو اترو کښې سره پوهیږي . مګر په لومړیو میلا دی پیړ یو کښې سوغد یا ن مجبورو و چه د ما نــی متنونو د لو ست او په هغو د پو هید و دپاره د منځنی پا رسی ، پا ر تیا نــی ، سو غدی

---

۲- دالرغوني خصوصیت خصوصا په پښتو کښې ډیر زیات دی لکه : (ملګری -سړی -پیشو - ځالګو - خولی، ډوډی - چاړه - زړه) .

لهمخصوصوقامو سونو څخه استفاده وکړي (۱) .

دلیك دالفباء لهسخې هم پهمنځنی پارسي کښې لوی بدلون راغی : زړه پارسي چه پهمخینوسواردو کښې پهسیخی الفبا لیکل کیده منځنی پارسي لکه نور و منځنیوا کثرو آریا یي ژبوآرامي الفبا ومنله . دآریـا یي ژبو له خوادآرامي الفباء د منلو شرایط د نورو تاریخی اوکلتوري شرایطو پهلړ کښې لا دهخامنشیانو دا سپرا توري‌اودهغی دفناء پهوختو کښې جوړ شوی وو .

دهخامنشیانو دامپراتوری په عصر کښې دنورو ژبو په سیمو کښې پارسي کوم‌نفوذ اوسیادت نهلاره . دغه وخت پارسي یوازې دفارس پهولایت کښې مروجه اویوازې اویوازې دفارسیانو ژبه وه اوبس . دلیك داستعمال سوارد یې هم محدود وواوهغهداچه یوازې د هخامنشیانو دیاد کارونو، کارنامو اوښیګڼو د ژوندی ساتلو دپاره پهلیك کښې کاریدل .

د ژوند پهنورو چارو کښې دلیك ژبه بابلي او ایلامي وه د حکومتی رسمي چارو دلیك ژبه آرامي وه (۲) .

آرامي ژبه دسامي شمالی ژبوله ډلې څخه ده چههلته د فارسیانو د فتح نهلا پخواد مځکښنی ختیځ پهډیرو هیوادونو کښې دلیك دژبې پهحیث منل‌شوې اوعامه وه . دهخامنشیانو دامپراتوری پهدوره کښې‌دغه ژبه درسمي او دولتی چارو

---

۱ - ایراني ژبې ( ٦٥ ) مخ .

۲ - ایراني ژبې اورانسکی( ٦٦ ) مخ .

دپاره منل شوې وه .دآراسي ژ بې ا و دهغې د ليك د منلو عنعنه د هخا منشيا نو داسپراتورۍ دسقوط نه وروسته هم په ټول ايران اوهمدارنګه په ورشېرمه سيمه کښې يعنې دقفقاز له شمال لويد يځه د هند دشمال لويديځه پورې ژوندۍ وه په دې باب هغه آراسي کتيبې شاهد ي ورکوي چه دارمنستان دپاچا د لو سړ ي ا ر تا شي س دوخت پورې مربوطې اوپه ( سيون ) نوسې جهيل کښې همدا رنګه په آ را سی دآشو کاليکنې ( دقبل الميلاد دريمې پيړۍ په نيمايي کښې ) چه په تکسيلا کښې لاس ته راغلي دي همدارنګه په يوناني -آراسي دوه ژبې ليکنې چه په کندها ر کښې موندل شوې اوداسې په نورو ځايو کښې داټول دابنيي چه آ را مي ا لفباء او ژ به په دغو سيمو کښې لا پخوا منل شوې و .

ددې خبر ې پوره ثبوت په لاس کښې نشته چه آ ر يايانو څه و خت د لو سړي ځل د پـاره آرامي ژبه اوالفباء و منل په د غو سيمو کښې په آ را مي ليکل شوې هغه لو سړۍ کتيبه شه نه ده ساتل شوې چه دلوسړي داراپه هديره کښې موندل شوې اودوروستيوپلټنو له مخې يې دليکلو تاريخ دقبل الميلادد( ۲۸۰ ) کـا ل نه ترمخه نه د ی . ا و د ( و - پ هينينګ) په عقيده امکان لري د د غې کتيبې ژ به ( دزړې پارسي ووروستي يادمنځنی پارسي لوسړۍ مرحله وي (۱) .

وروپه ورو دآرامي ايك الفباء دليك دپاره په پورته يا د و شووسيمو کښې خپره او حا کمه شوه چه د هغو په جمله کښې په سيلا دی لو سړی پيړی کښې

۱ - ايراني ژبې ( ٦٧ ) مخ .

دتوول پارس دلیك یوازینی وسیله و گرځیده ا و سیخی ا لفبا ء ته یی نوره خا تمه ورکړه مگر په آرامی لیك دایکل شو و کتیبو ژبی ( منځنی پا ر سی ، سو غدی پارتیانی ، خوارزسی ) دخپلی سوچه ژبی ښکار ندوی نه دی ځکه چه د د وی ډیر لغات په‌فونیتیك ډول نه بلکی‌په‌ایډ یو گرافیك — ideographic ډ و ل لیکل کیدل - یعنی آرامی لغت به‌ایکل کید، چه‌تلفظ به یې په پا رسی کید ه مثلا : ( ثلاثه ، جمل ، کذب ، بنت ) به‌لیکل کیدل‌اوتلفظ به یی په( سه ، شتر د روغ ، د ختر ) کید ه. د غه آ را می کلمی په ژوندی ژ به کښی نه وې موجود ې اوهیڅوك نه‌پرې پوهېده یوازې په‌لیك د نښو ا و سیمبولو نو په صفت موجودې وې ( ۱ ).

## منځنۍ پارسي اوساسانی دوره :

منځنی‌پارسی ( پهلوي ) دایران دساسانی دورې ( ۲۲۲م - ۶۵۱ میلا د ي پېړیو ) دلیك اوادب ژبه اودساسانیانو دپخوانی هیواد - د ا یران د یوه جنوبی ایالت ( فارس ) دسر کز ایستخري دیالیکت په اسا س بنا ء وه .

که څه هم په‌خپل ذات کښې دمنځنی پارسی دژوند زمانی واتن د ساسا نیانو له دورې پراخ دی چه دهلوسی قبلاالمیلاد نه شروع او دمیلادی اومی پیړی پورې تاکل کیږي خوبیاهم په‌منځنی پارسی‌دلیك د پرمختګ دوره دساسا نیانو د و اکمنی ددورې پورې اړه لري .

---

۲ - ( د پهلوی ، پارسی ، ارسیانی . . . ) قاموس ضمیمه .

دمیلادي اووسی پیړی نه‌وروسته منځنی پارسی ( پهلوی ) په محاوره کښې نوره ژوندی نه وه خواوږدوخت دلیك دژبې خصوصاً دزردشتی مذهب له پاره ورنه کار اخیسته کیده. اوددغه مذهب دخپریدو سره ددې‌خپریدنه سلګرېوه.

دساسانیانو له‌دورې ترسخه‌هم په‌منځنی پارسی یولږ لیکل شوي موادو ولکه کانې ، دبرینی تختې، خاورین لوښی اوسکې چه‌افسانې‌ورکښې ځای شوې وې خودژبې دمطالعې له‌پاره دغه مواد کافی نه دي .

دمنځنی پارسی د مطالعې په باب مخصوصاً د مانی مذهب د هغو کتیبو اهمیت زښت ډیر دی چه په تورفان ( چینی ترکستا ن ) کښې دشلمې پیړی په سر کښې موندل شوې دي .

دساسانیانو په‌عصر کښې چه‌منځنی پارسی دولتی اودزردشتی مذهبی چارو له‌پاره مذهبی ژبه شوه وروپه وروپې له‌خپل ټاټوبی د ( فارس ) له‌ایالته په خپریدو پیل وکړ اودپارس دشمال اوشمال ختیځ په‌لوربې دنیلو غځول شروع کړل‌ورو په ورو یې دسیمه ایزو ژبو دنفوذ ساحه تنګوله اوتردې چه‌یوزیات شمیر ژبې‌اولهجې یې‌دتل له‌پاره له‌منځه ویوړې اوځای یې منځنی پارسی ونیو. اوپه‌دې صورت د ځوپیړیو په‌جریان کښې یې دټول ایران،دافغانستان اودمنځنی آسیا دیوې پراخې سیمې‌چه‌خراسان ( خراسان دختیځ په‌معنا په‌شمال کښې دآموډجریان ، هندوکش اوپه جنوب کښې د ( کیویر ) ددښتې پورې‌دتاریخی ایالت نوم دی ) ورته‌ویل کیده په‌درباري اودولتی مقاماتو کښې‌خپلې ځیلې وروپه ورو وغځولې اوپه‌دغه صورت منځنی پارسی ( پهلوی ) دمعاصر افغانستان او باختري نورو ژ بو سیمو ته

ورننه وته ( ۱ ) چه‌نور تفصيل يې بايد د تاريخ په پانو کښې ولټول شي .

منځنى پارسي لکه‌چه له‌نامه يې ښر ګندېږي دژبنی مقايسی له مخې دزړې اونوې پارسی ترمنځه دوصل‌د کړی صفت لري . و . هنزن – O. Hansen دخپل کتاب ( دمنځنی پارسی درسی کتاب ) په‌مقدمه کښې ليکی : « دمنځنی‌پارسی نوم د کارل سليمان له خوا ( دايرانی ژبپوهنې اصول ) نومی لنډ ګرامر دليکلو په‌وخت کښې په ( ۱۹۰۰ ) کال کښې ورکړ شوی دی . دا ژبه داسلام د راتګ اودساسانيانو دانقراض سره سمه څه‌اندازه له رسميته ولويده .

مګر بيا هم دعربی سره څنګ په څنګ مخصوصاً په‌ايرانی زردشتيانو کښې دلسم قرن تراوايلو موجوده وه . طاهريانو ، صفاريانو اوساسانيانو و غوښتل چه د عربی ځای ورکړی خوليک‌يې دعربی دالفباء په‌قالب کښې واچاوه . همدغه‌ليک منځنی او نوې پارسی سره جلا کوي .

په هند کښې فارسيان ( زردشتيان ) اوس هم‌دغه‌ليک په‌خپلو مذهبی کتابونو کښې استعمالوي » .

لکه چه ترمخه ورته اشاره و شوه چه د ګرامر په ساحه کښې لور ( منځنی پارسی ) له‌خپلې‌مور ( زړې پارسی ) نه‌ليرې شوه خوبيايې‌هم هغه‌ټول‌خصوصيات په‌ځان کښې ساتلی‌وو د کومو له‌مخې چه‌زړه پارسی له‌نورو لرغونو آر يايي مثلا اويستا څخه‌بيلېدله .

---

۱ – په‌دې باب دزيات تفصيل دپاره ( ايرانی ژبی ) مؤلف ( او رانسکی ) ( ۷۰ – ۷۱ ) مخونوته مراجعه وکړيء .

دهمدغو خصوصیاتو له مخې منځنۍ پارسي هم له نورو آریايي منځنیو ژبو څخه بیلیږي . ترد ې چه په نوې پارسي ( دري ) کښې دنورو نووآریايي ژبوسره په‌مقایسه کښې دغه‌حکم ثابت‌پاتي دی . اوپه دغه ترتیب څوك انکار نه شي کولا ی چه‌منځنۍ پارسي دزړې پارسي لوراو د نوې پارسي مور نه ده .

یوازې دیولړ فونیتیکي‌اوښتنواوضمایرو په‌باب کیدای‌شي‌وویل‌شي‌چه‌منځنۍ پارسي د هخامنشیانو د کتیبو دژبې‌نه ، بلکې د کوم بل‌داسې ایراني دیالیکت‌دود اوعنعنه ساتي‌چې دد ې سره‌یې‌نژدې خپلوي لرله . همد ارنگه باید وو یل شي چه منځنۍ پارسي په‌باختر‌کښې دخپریدلو په‌وخت کښې دباختري ژبوڅخه یوه لو یه لغوي پانگه واخیستله اوپه‌د ې صورت هم له‌زړې پارسي نه‌یو گام لیرې شوه .

یوه تاریخي اشتباه : یولړ محققینو دمنځنۍ‌فارسي - له پاره دوه مرحلې‌تاکلې وې : لومړ ی - لرغونی مرحله چه دادا شکانیانو ( ۱۵۶ - ۲۲۶ ) میلادي او دویمه نوې مرحله چه‌دادساسانیانو(۲۲۶ -۶۴۷ ) میلادي پیړیوڅخه‌عبارت‌دي .

حقیقت دادی چه دادیوې ژبې دوه مرحلې‌نه ، بلکې په دغه مرحله کښې دوه بیلې بیلې آریايي ژبې د ي‌چه اشتبا هاً په‌یوه ژ به یادې شوې د ي‌چه لومړ ی دا شکا نیا نو ژ به او دمیدیك له گروپ ده او کله ( داشکاني ، پارتیاني پهلوي او کله دپارتیاني ) په نامه یاد یږي دویمه دایران د جنوب لویدیځ دساسانیانو ژبه ده چه د معاصرې دری مور گڼل کیږ ي . منځنۍ پارسي ډیر وختونه ایران پیژندونکو د ( پهلوی ) په‌نامه یادوله مگر پهلوی په‌حقیقت کښې‌د پارتیاني ( اشکاني ) نوم دی چه ( پهلو ) د ( پارتیا ) اوښتی بڼه ده .

## ژبه پارسي

کله چه منځنی پارسي (ساساني ژبه) په‌ایران اوور څیرمه‌سیمو کښې خپره شوه د پهلوي نوم د پارتیاني په‌ځای د منځنی پارسي له پاره عام‌شواو دعربوله‌فتوحاتو وروسته ( پهلوي ) په‌خپله‌اصلي اولومړی معنا بیخی هیره اود عربوشؤ لیفینو سره یې حتی نوم هم پاتی نه‌شو بلکې دنوې پارسي سره‌دتوپیر په غرض یې (پهلوي) د منځنی پارسي ( ساساني ژبې) نوم و ګرځاوه (۱).

داد ی ددوی بیلتون په‌لنډ ډول دیوه‌تاریخی جریان په‌تشریح کښې وړاندې کیږي :

### کتیبې او د هغو لوست لنډه تار یخچه :

دمنځنی پارسي دوه‌ډوله کتیبې د پوهانولاس‌ته ورغلی دي اوداستفادې‌مورددي: لومړی ډول : دا له هغو عبارت دي چه‌په‌ډبرو ، دقبرونود لوحو، توسارونو، لوښو، سکواو دزردشتی مذهب‌په‌بیلو بیلو کتیبو کې‌ساتل‌شوي‌دي .

دمنځنی‌پارسي لومړی کتیبې ساساني شاهانو ته منسوبې اوخورا مشهورې یې دارد شیر (۲۲۳ - ۲۴۱ )، لومړي‌شاپور (۲۴۱- ۲۷۱ ) اونارسی(۲۹۳-۳۰۳) کلو نو کتیبې د ي .

ددوی په جمله کښې ترټولو مهمې یې ( پیر سیپول) ته نژدې په‌نقش رستم کښې‌د( کابهٔ زردشت)اودحاجی‌آباد په نامه‌کتیبې چه‌دلومړي شاپورپو رې اړه لری‌همدارنګه په کر د یستان کښې سلیمان ته‌نژ دې دزا ګروس په غرونو کښې د(بایکولی ) کتیبه چه دنارسی پورې اړه لري ز یا ت شهر ت لر ی . همدا رنګه

---

۱- د(پهلوی - پارسي ، ارمیانی ...)قاموس ضمیمه ( ۳۰۰ - ۳۰۱ ) مخو نه.

(پیر سیپول ته نژ دې ) اوپه (نقش رجب) او د کرمانشاه په خوا او شا کښی د (تاك بو ستان) کتیبی هم دیادولووړ دي .

دارد شیر اولوړی شاپورپخوا نی کتیبی په دری د ری ژبو ( سنځنی پا رسی پارقیانی اویو نانی )لیکل شوې دي(یونانی تر جمه یی کله کله‌سمه نه وی) یوازې په‌حا جی آباد کښی دلوړی شا پور کتیبه(چه غا لباً تا کل شوې وه‌چه په‌شپږوژبو ولیکل شی اود ډېر وشپږ برابرې تختی په‌دی باب‌شا هدي‌ور کوي) په دوو( سنځنی پا رسی‌اوپا رقیانی) ژبولیکل‌شوې‌ده. دنا رسی کتیبی‌په‌دووژبو(سنځنی‌پارسی‌اوپا رقیانی لیکل شوې‌دي دوروستیو سر حلو کتیبی یوازې په سنځنی‌پارسی لیکل‌شوې دي . دساسا نیانو له کتیبو علاوه‌ته‌د زردشتی دین دنوې‌قورم‌ور کوونکی( کارد یر-سیلاد ي ځلورمه پیړی ) په( سرمشهد ، نقش رستم ) کښی په‌څو کاپی ګانو کښی‌سا تل شوې‌اوفیروزآباد ته‌نژدې لوی وزیر مهر نارسی(پنځمه پیړی )په‌اصطلاح( پوښلی) کتیبی هم داستفادې په باره کښی شهرت لري .

په‌سنځنی پارسی ترټولو پخوانی لیکلی مواد هغه دي‌چه‌دقبل المیلاد دویمی پیړی‌نه‌په‌ګانو ، سکو ،ډبرو ، لوښو او نورو کښی پاتی دي .دغه مواد د لږ سګر ډیر باا رزښته معلومات د ساسانیا نو نه دتر مخه عصرد سنځنی پارسی په با ب نه یوازې دژبپوهنی بلکی دتاریخ له پاره هم لري .

د کتابی پهلوی دلیك ډیر لرغونی‌ښ کارندوی هغه(له آسوري‌نه‌ترجمه)عیسوی پهلوي مذهبی مناسك دی چه دلیکلو تاریخ یی تقر یباً اووسه میلادي پیړی‌او

د تورفان نه شمال ته په (بولايك) كښې سوندل شوي دي .

په منځنۍ پارسۍ دزردشتي ادبياتو ليكنه دساسا نيا نو په عصر كښې شروع شوه ـ مګر دوام او پراختيا يې له دغه عصره وروسته حتى دعربو دفتو حاتو په وخت كښې هم وو . دد غه وخت كتيبې معمولاً مذهبي مضمونو نه لري .

په منځنۍ پارسۍ د نوی ادب كتيبې بيخي لږې دي ددوی په لړ كښې خو را مشهوره يې (كارنامك يي ارتخشيري پاپا كان دارتخشير پاپا كان كا رنا مه) ده . داسرې دساسانيا نو د كورنۍ موسس دی .

**دويم ډول كتيبې**: دا هغه كتيبې دي چه په پهلوي ليك نه بلكې د نيك په نورو تيپونو ليكل شوي دي داله هغو ساني متنو څخه عبارت دي چه په ماني ، سوغدی ليك دوداو توركي (روني ـ يوډول لرغونی مخصوصاً سكاندا ناوی ليك دی) ليكل شوی دي . ماني متنونه چه په تور رفان كښې سوندل شوي دي زيات يې په ماني هغه الفباء ليكل شوي دي چه دآرامی پالميري ليك په اساس بناء ده نـه پـه پهلوی اساس .

دغه ( پا لميري ) ليك لوسړی دمنځنۍ پا رسي دليك دپاره دماني مذهبي موسس (٢١٦-٢٧٣ ميلا دي) له خواو منل شو . ماني متنو نه ټول مذهبي مضمون لري اودماني مذ هبي عقايداو اصول ور كښې تشريح او همد ارنګه هغه مذهبي سندرې اوترانې وركښې ورانده شوي دی چه د عبادت په وخت كښې ويل كيدې .

مانی مذهب نه یوازې دایران پهلویدیځ کښې بلکې ختیځ ( دتور کستان په سوغد یانو ) کښې هم خپور وو . عبادتی مراسم هم په منځنی پارسی چه دد غه ځای خلکوته یوه پردی ژبه وه اجرا کیدل . ددې لپاره چه دمذهبی سندرو اوترانولوست او زده کړه اسانه شی لیکونکوبه غالبا په سوغدی الفبا لیکل او په دغه صورت دمنځنی پارسی دمتنونو تلفظ ( ترانسکر یپسیون )په سوغدی جوړ شوی ؤ چه اوس یې لویه اندازه کتیبې پاتی دی .

دمانی مذهب تورکی پیروانو دمانی اصولو او احکامو دلیکلوله پاره دتورکی ( رونی - Run ) لیك نه کار اخیسته .

دمنځنی پارسی په زده کړه د کلمو په لوست اود فونیتیك په اثبات کښې دپهلوی کتیبونه علاوه هغه لغوی پانګې ډیره مرسته وکړه چه منځنی پارسی له ګاونډیو ولکه آسوری ، ارسیانی او یونانی ژبو څخه اخیستی وه .

دمنځنی پارسی مطالعی او څیړنی ته داتلسمی پیړی په دویمه نیمایی کښې دلویدیځو ختیځ پیژندونکو پاملرنه واوښته . د هغی لومړنی لوستنه په پهلوی دزردشتی ادب دلوستنی په ژوندی عنعنه بنا وه . چه په هند او ایران کښې دفارسیانو سره ساتل شوې وه .

له ( ۱۷۵۵ تر ۱۷۶۲ ) کاله پورې یو فرانسوی عالم انکیتیل دوپیر ون Anketil Duperron په هند کی وا قع او هلته یې داوسیدونکو پارسیانو په مرسته اویستا او دهغوی مربوط دمنځنی پارسی څه متنونه ترجمه کړل . نوموړی چه کله پاریس ته ستون شو دختیځو ژبو ډیرې کتیبې یې له ځانه سره ویوړې .

نوسوړی په ( ۱۷۷۱ ) کال کښی داویستا او منځنی پا رسی تر جمی خپر ې کړی . له دی وروسته دمنځنی پارسی په باره کښی وخت په وخت په لو یه پیمانه کښی ښه آثار خپریدل .

دنو لسمی پیړۍ په نیمایی کښی دمنځنی پارسی دمتنونو خپریدل په لویه پیمانه کښی شروع شول اوپه دې با ب په کو پنها ګن ، ویانا ،اکسفورد ،بمبیی ، پاریس ، ستو ټګارات اونورو علمی مرکزونو کښی یو لړ متنونه اود هغو تشریحات خپاره شول خو بیا هم دهغی ډیرې خو ا وی له محققینو څخه پټی وې .

په ( ۱۸۵۰ ) کال کښی م ـ هاو ګ ـ M. Haug دې ته ملتفت شو چه دحاجی آباد کتیبی په دو ه د یا لیکتو نو لیکل شو ې . ده داسی نظریه وړاندی کړه چه دواړه دیالیکتونه دپهلوی پوری اړه لری مګر داچه یولړ لغات( لکه ضمیرونه کو مکی فعلونه او نور) په ایډیو ګرام ( یعنی لیکل کیدل آ را می لغا ت لکه ( لحم ) او ویل کیدل فارسی ( ګوشت )ړول لیکل کیدل ددې علت د اد ې چه پهلوی له آراسی نه راوتلی او دهغی په بنسټ ولاړه ده. په بل عبارت د هاو ګ په عقیده پهلوی یوه سامی ژبه وه چه ایرانی لغات یی له ایرانی ژبو اخیستی وو. دغه اشتباه یی دجرمنی عالم نولدیکی ـ Noldeke له خوا ورسمه شوه : هغه وښوده چه پهلوی یوه داسی نګه ایرانی ژبه ده چه غریز اړخ یی څه دتاریخی لیک دود او څه د کریپتو ګراف ـ Cryptographic (مخصوص اوسری لیک) له امله پوره څرګندنه دی . دنګه ایرانی دیالیکت په صفت ډ ارسترهم و ګڼله( ۱ ).

---

۱ـ Y. Darmsteter Etudes Irani ennes Voli, Paris 1883
( دمنځنی پارسی ) په حواله .

دنولسمی په وروستی څلو رمه کښی ( هو بشمن —H.Hubshmann) په ارمیانی ، آسوری او یونانی کښی یو لړ کلمی وښودی چه دمنځنی پارسی نه اخیستل شوی دی . دغه کارد ( ك .سلیمان ــ C. Salemann )سره سرسته وکړه چه په منځنی پارسی کښی د وه سرحلی وټاکی :

۱ ـ پخوانی سرحله چه داشکانی ( پارتیا نی) نه عبارت او په کتابی پهلوی دتاریخی کلمو له لیکنی او په ارمیانی کښی داخیستل شوو کلمو څخه عبارت دی.

۲ ـ وروستی سرحله دساسانیانو د کتیبو او دمنځنی پارسی نه په یونانی او آسوری کښی له اخیستل شوو کلمونه څرګند یږی . سلیمان دزند په سرسته دمنځنی پارسی غږیزه خوا تثبیته کړه او په دغه صورت په منځنی پارسی کښی ددوو سرحلو مفکوره منځ ته راغله .

دشلمی پیړی په سر کښی دچینی تورکستان په تورفان کښی یوزیات شمیر متنونه وموندل شول چه په مانی لیك په دری ( منځنی پارسی ، اشکانی او سوغدی ) ژبو لیکل شوی وو. ددغو متنونو څه ټوټی دلو سرې څل لپاره دف- مولیر له خوا په ( ۱۹۰۴ ) کال کښی خپر ې شوې .

ددغو متنونو یوه ژبه دمولیر له خو امنځنی پارسی وټاکل شوه، دویمه ژبه چه دمتنونو په څینو نسخو کښی دلوسړی سره کډه شوی وه ( داندر یپاس ) له خوا پارتیانی ( اشکانی ) وټاکل شوه او بیا همدغی نظریی ته ناستو ژبوه آ . سیمی هم ورسید ، داندر یپاس شاګرد ناستو ژبوه ( و . مان ــ O. Mann ) داشکانی او منځنی پارسی تر منځه شپږ بیلو نکی نښی تثبیت کړ ې .

داشکاني ( پارتياني ) او منځني پارسي ترمنځه پرېکړې پوې ت . د يسکو ( T. Desco ) او و. لينځ تثبيت کړي .

دمنځنې پارسي او اشکاني دفعل سيستم په بشپړ ډول و . هينينګ تثبيت کړ .

ساني متنونو چه په عنعنوي ارفگرافي په غير ايد يو ګرا م ليك ليکل شوي وو دمنځنۍ پارسي دفونيتيك او سانيمذهب په باب ئې په زړه پوري معلومات نړيوالو ته وړاندې کړي دي .

لکه چه ترمخه ورته اشاره وشوه دمنځنۍ پارسي( پهلوي )او پارتياني(اشکاني) په باب ډ ير په زړه پورې مواد په تورفان کښې سوندلشو يو سانيمتنونوور کړل. ددغو متنونو د ليکلو تاريخ چه ( ۸ – ۹ ) ميلادي پيړۍ تا کلشوي او په منځنۍ پارسي ، پارتياني او سوغدي ليکل شوي دي . دماني مذهب دچار و پوری اړه لري . ددغه مذهب پيروان دساسانيانو دحکومتي او زردشتي مذ هب دمشرانوله خوا له خپله هيواده وشړل شول او په دريمه ميلادي پيړۍ کښې يوي غلې او بې خطره سيمې ته تښتيدلي وو .

دماني متنونو فضيلت دادی چه په خاصه ( ماني ) الفباليکل شوي او فونيتيك يې دپهلوي دالفبا په مناسبت ښه څرګند د ي .

ماني الفباد پالميري(د ارامي الفبا يوډول دی ) په اساس ولاړه او ماني(۲۱۶- ۲۷۳ ميلادي ) دخپلو مذ هبي ليکنو دپاره په کار اچولې وه . دغه ليك دمنځنۍ پارسي دپاره لومړی شاپور ومانه بيادماني مذهب دخپريدو سره مم دغه الفبا يو لړ نورو منځنيو آريايي ( پار تياني ، سوغدي ) هم ومانه .

ماني متنونو دمنځنۍ پارسي په لو ست او مطالعه کښې ډير لوی رول لوباوه .

# نوی (دری)
# پارسی

دنو وآریایی ژبو تاریخ عموماً او دنوې پارسی خصوصا دمیلادی ا تمې نهمې پیړی نه شروع کیږی. داهغه وخت دی چه دد غو ژبو په سیمو کښی اسلام خپور شوی او دلیکک له پاره یی عربی الفبا منل شوی ده (۱). له همدغه وخته د (نوې پارسی) اصطلاح منځ ته راغله.

لکه چه تر مخه ورته اشاره وشوه منځنی پارسی دساسانیانو دوا کمنی په دوره کښې له خپل ټاټوبی (پارس) نه دشمال لوبدیځ او خراسان خواته خپره او په اوسه اتمه پیړی کښی یی بولې بوسی باختری ژبی او لهجی (خصوصاً له پاری او دولتی مقاماتو څخه) له منځه ویوړې او دیولې ژبو داستعمال ساحه یی ورتنګه کړه.

---

۱ــ اوسیتی ژبه له د ې وتلی دهچه هغی ته په (۱۷۹۸) کال کښی مذ هبی سلاویانی الفبا او بیا په (۱۸۴۳) کال کښی روسی الفبا وتاکل شوه. همدارنګه د پارسی ژبو یهود انولیک هم له دې وتلی دی چه په عبرانی لیکل کیدل ـ او د آثارونیته یی میلادی ا تمی پیړی ته رسیږی چه په ختن کښی مو ند ل شوی دی ایرانی ژبی ـ (۱۰۰) مخ.

له اتمې پیړۍ وروسته پارسي په ډېره چټکۍ سره په دغو پردیو سیمو کښې خپلې وغزولې د زرافشان د وادي سوغدي ژبه او دور ختیځه سیمو باختري ژبو او د لرغوني تخارستان ساکي - تخاري ژبو ویونکو باختري وګړو ورو په ورو خپلې ژبې هېرې او په پارسي یې خبرې کول شروع کړل. همدارنګه د دغو سیمو ځنې باختري ژبې او لهجې د تورکي ژبو په ذریعه هم له منځه لاړې.

البته یو لړ محلي ژبې له منځه لاړې خو د دغوی ځینې ژبني (لغوي او فونیتیکي) عناصر په پارسي کښې پاتې شول چه په دغو هم د محاورې او هم د ادب په ساحه کښې فارسي ژبه بډای شوه. مثلاً د پارتیاني ځنې: شهر (ښار) مهر (مینه) پور-پوهر (زوی) او داسې نور (۱) له سوغدي نه راغ (چغد)، فام د (بخن) په معنا لکه سیاه فام (توربخن) ګل فام (ګل غوندې) او داسې نور (۲).

د عربو له فتوحاتو وروسته د پهلوي لیک په ځای د پارسي له پاره د عربي الفبا مناسبه ومنل شو. او دا کار غالباً د اتمې عیسوي پیړۍ د نیمایي نه ترمخه نه دی شوی. له بلې خوا فارسي د عربي نه په سلګونو لغات واخیستل. د دغو باختري او عربي لغاتو په خپلولو سره د دغه وخت فارسي د لغت له پلوه ور مخکې (منځنی پارسي) نه ممتازه شوه. په نهمه او لسمه میلادي پیړۍ کښې چه د عربو د خلافت د قلمرو په ختیځو سیمو (خراسان، سیستان او ماوراءالنهر) کښې د ازادۍ نیلې مخ په غزیدو شوې دیوې

---

۱- سونبر په تیره مقاله کښې ووېل چه د زړې پارسي د (ذ) په مقابل کښې نوې او منځنې پارسي د (س) او پارتیاني د (هر) غږ لري.

۲- (ایراني ژبې) (۱۰۱-۱۰۲) مخونه و ګورئ.

دریاری ژبی په صفت دفارسی انکشاف هم ورسره سلگری‌شو اوپه عیسوی لسمه یوولسمه پیړی کښې ښه‌لیکوال،شاعران او مورخین منځته راغلل لکه‌رودکی ، سعد ی،حا فظ ،فر دوسی ،جامی ،ابن سینا ،بیهقی او نور.

ددغو تحولاتو سره په فارسی ژبه کښې یو لړ ژبنی اوښتنی هم د فونیتیک‌او هم دگرامر په ساحه کښې راغلی چه څه رڼا به پرې واچوم:

## فو نیتیك :

دفوفیتیک ( غږ)دجوړښت په باب هره‌ژبه‌خپل خپل خصوصیتونه لری: مثلاد(غ ) (ل) همدا رنگه دځینو پوهانو په عقیده د(ق)غږ ونه په زړه پارسی کښې سوجو د نه‌وو خوپه منځنی همدا رنگه په نوی پارسی کښې منځ ته راغلی دی.له دغه‌ځایه ده چه کله سونږ دو وژبو ته د(موراو لور) په صفت قایلیږود هغوی تر منځه څه فونیتیکی تو پیر هم وینو.

(لور) د (مور)فونیتیکی سیستم تر زیاتی اندازې سا تی خود تکامل په‌جریان کښې یو لړ غږونه له لاسه‌ورکوی‌اویو لړ نوی لاس‌ته راوړی.

په دغه اساس سونږ دمنځنی اونوې پارسی تر منځه دیو لړ غږ ونو بد او ن وینو چه د ښکارند وی‌په ډول یې دلته څه وړاندې کوو(۱) .

مثلا : دمنځنی پارسی د(چ ،و،ت، ه ،ج،س)غږونه په‌نوی پارسی کښې د(ز،گ، «کله ب »،د، خ ،ی،ه) په غږ ونوا وړی.

---

۱-دراتلونکوموا دوپه راټولونه کښې له (پهلوی، پارسی ،ارسیانی ،رو سی انگریزي )قاموس څخه استفاده شوې ده.

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| منځنی پارسی : | اچ | هنداچه | اواچ | نماچ | فراچ |
| نوې فارسی | از | اندازه | آواز | نماز | فراز |
| منځنی پارسی | وتاختن | ورگک | ول | وشاتك | وریختن |
| نوې فارسی | گداختن | گرگك | گل | گشاده | گریختن |
| منځنی فارسی | وزرگك | ویست | وید | وهشت | وات |
| نوې فارسی | بزرگك | بیست | بید | بهشت | باد |
| منځنی فارسی | برات | خریتن | خورت | خوت | دیتن |
| نوې فارسی | برادر | خریدن | خورد | خود | دیدن |
| منځنی پارسی | هوك | هیشم | هائیك | هورم | هردات |
| نوې فارسی | خوك | خشم | خایه | خورم | خرداد |
| منځنی پارسی | یامك | یوې | یاویتان | یاتو | یوان |
| نوې پارسی | جامه | جوی | جاویدان | جادو | جوان |
| منځنی پارسی | همراس | گاس | اگاس | اسین | نیگاس |
| نوې پارسی | همراه | گاه | اگاه | اهن | نیگاه |

بلەداچه دمنځنی پارسی په کلمو کښې د سر ( او ) په‌نوې پارسی کښې له منځه تللی دهغې دنفي سوفیکس ( ا ، ان ) په‌نوې پارسی کښې په ( بی ، نا ) اوښتي‌اودهغې دکلمو په‌پای کښې د ( ك ) غږ په نوې پارسی کښې حذف او په‌ځای یې فتحه پاتې ده اوداسی نورلکه :

| | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| منځنی پارسی | او شمار | اوشتاب | او شتافتن | | | |
| نوې پارسی | شمار | شتاب | شتافتن | | | |
| منځنی پارسی | ادان | اناپ | اکار | اکام | انبین | |
| نوې پارسی | نادان | بی‌آب | بی‌کار | ناکام | نابینا | |
| منځنی پارسی | خانك | نامك | یامك | اراستك | همك | |
| نوې پارسی | خانه | نامه | جامه | اراسته | همه | |

دګرامر په برخه کښې هم پردې باب‌څه‌رڼا اچوم :

## مورفولوژی :

دګرامرپه ساحه کښې نوې فارسی دمنځنی پارسی‌دودواوعنعنه ساتلی‌اوډیره ابره ورنه وړاندې تللی ده .

## اسم ذات :

پەدواړو ( منځنی اونوې پارسی ) ژبو کښې دګرامري حالت تغیر او جنس (مذکر اومؤنث ) وجودنه لري اودګرامري حالات اما ده دخدمتی اداتوداضافت دعلامی اوپه جمله کښې دکلمو دترتیب پەذریعه افاده کیږي .

په دواړو ژبوکښې داسم ذات اواسم صفت تر منځه کومظاهري‌ذاتی‌تو پیر نشته ډیرځله‌دغه تو پیر یوازې دمعناپه لحاظ کیږي .

## جنس :

په اینډو یوروپی کښې اسم ذ ت اواسم‌صفت‌پوشان ښېی لرلي چه مذکر اسماء په ( و ـo) اومؤنث په (ا ـA) پای ته رسیدل. بیاله‌دغه ژبی نه‌راوتلو نورو ژبوځینودغه کتیګوري له لاسه ورکړه اوځینو دغه ښېی اوحتی په‌ځینو کښې د

جنس (تذکیر او تانیث) تصور هم له منځه لاړ . دغه حالت په محینوژبو کې حتی په قبل التاریخ مرحله کښې پیښ شوی دی لکه په ارسیانی ژبه کښې اوپه ځینو کښې دتاریخ دپیل نه شروع شوی لکه په زړه پارسي کښې . دزړ ې پارسي په میځی کتیبو کښې په سرعت سره دجنس له منځه تللو مشاهده کیږي او په دې صورت په منځنی اونوی پارسي کښې دغه ګرامري کتګوري نوره نه لیدل کیږي .

په دواړوژبو کښې یوازې دجنس طبیعی کتیګوري شته لکه (مرد ،زن ، پدر، مادر، برادر ، خواهر ) .

## مفرد او جمع :

په دواړو ژبو کښې جمع اومفرد شته دتثنیې نښې چه په زړه پارسي کښې کله کله لیدل کید لې دواړې ژبې ورنه بې برخې دي .

دوسره توپیر شته چه په منځنی پارسي کښې دژوند یو دجمع له پاره د(ـ آن ) اودنا ژوند یودجمع دپاره (ـ ایها ) سوفیکسونه قیاسی وو .

لکه ( ګاوان، فرزندان، شپانان، سرتان) په ژوند یو کښې .

مګر دغه سوفیکسونو تر منځه داستعمال پولی پریکړې نه دي .

## داضافت علامه :

د مضاف او مضاف الیه (همدارنګه د صفت اوموصوف ) تر منځه د منځنی پارسي په لیک اوتلفظ کښې معروفه (ي) زیاتید له اوساسانیانوددوري ترپایه لیکله کیدله .په نوې پارسي کښې دغه غږ په تلفظ کښې په مجهوله (ې )لا تر اوسه موجود دی خولیکل کیږي نه .

## ګرامری حالات :

په اینډ ویوروپی کښې اووه ګرامري حالات موجود وو چه‌له هغې نه په‌ټولو ژبو کښې‌وروپه وروپو اوډیرله منځه لاړل . تر ټولوز یات‌دغه‌حالات په‌سانسکریت اویولږ نورو لرغونو ژبو کښې په ښه شان ساتل شوي وو . دغه ګرامري حا لات چه‌د بیلوبیلووروستاړو په‌ذریعه‌افاده کیدل د ژبودپر اختیا په‌یون کښې‌و روپه‌ورویو ه یاځوسحدودو روستاړوته‌راټول‌شول‌اوبیاد ګرا مری‌حالت‌په‌افاده کښې دغلطی دلیرې کولوپه غرض ددغو وروستاړوځای اداتواوخدستی کلموته‌پاتی شواوبالاخره‌ددغو اداتو استعمال حتمی شو . دغه حالت په انګریزی کښې‌چه یوازې یو(مجروري) حالت، په فرانسوی کښې چه‌دوه‌حالته همدارنګه په پښتو کښې چه‌دوه (مجروري اوندایی ) حالتونه یی ساتلی دي لیدل کیږي ( فاعلی حا لت چه د کلمی ا صلی حالت‌دی‌دلته‌نه‌د ی‌شمیرل‌شوی).په‌فارسی کښې یو ګرامري‌حالت هم وجودنه‌لري بلکی دټولو ګراسري حالا تو افاده داداتویه ذریعه کیږي . تر دي چه د زړې پارسی وروستی مرحلی په کتیبو کښې دحالتونو وروستاړی داسی ګډ وډدي چه انسان دحالت‌له‌منځه تللو اتکل‌ورته کولای شې اوپه منځنی‌پارسی کښې‌بیخی دغه سیستم له منځه لاړ ، په نوې پا رسی کښې‌هم دمنځنی پارسی‌دود سا تل شوی دی .

### اسم صفت :

په‌اینډو یورو پی کښې صفت هم له موصو فه ترمخه اوهم وروسته را تلای شو . همدارنګه په‌جنس (تذکیراوتانیث ) اوحالت کښې سمون‌ضروري‌ؤ .

دغه خصوصیت تقریباً په ټولوانډویوروپي ژبو کښې څه ناڅه لهمنځه تللی دی. پهمنځنی اونوی پارسی کښې نهد جنس کټیګوري شته او نهګرامري حالات.

دمقام په لحاظ کهصفت لهموصوفه پـه دواړوژبو کښې ترمخهوي داضافت علامه (ي) هم په لیك اوهم په تلفظ کښې وجودنهلري لکه دمنځنی پارسي (نیوك زن ـ نیکهښځه ) دنوې پارسي (خوبرو ،جوانمرد) اونور داسې توصیفی ترکیب له دوو کلمو څخه یوه کلمه جوړوي اود کلام دیوه غړي وظیفه اجرا ء کوي .

په دویم ډول کښې صفت له موصوفه وروستهوي داضافت علامه (ي) ددواړو ترمنځه اضافه کیږی لکه : کارنامكي پاپکان ـ د پاپکان کارنامه ) .

دصفت مقایسوي درجه پهدواړوژبو( منځنی اونوې پارسي کښې) د( تـر ) دسوفیکس په مرسته د( هچ ـاز ) پهمټیا ښوشان دهلکه دمنځنی پارسي ( هچ تودوشتر وزیشترنی دیت ـ لهتالابد اولابدرنګ ( سا)نه دی لید لی ) .

**ضمـیر :**

په منځنی پارسي کښې هم آریایی اوهم سامي ضمیر ونه ا ستعمالیدل آریایی ضمیرونه دوه ډوله وو: متصل اومنفصل .دغه ضمیر دفورم اوداستعمال له مخې د نوې پارسي دضمایروسره کوم مهماو اساسي توپیر نه لـري . دټولو څیړل د لته موضوع بیځی اوږدوي .البته سامي ضمیرونه لکه (یی، لك ،لنا ، لکم ) اونورچه په منځنی پارسي کښې ا ستعما لیدل په نوې پارسي کښې نشته .

### اسم عدد :

په اسم عدد کښی دنوې او منځنی پارسی ترمنځه دیادونې هیڅ لیریوالی نشته او کوم لږ توپیر چه شته هغه دادی :

مقداری‌عدد: ۱- دنوې پارسی (یك) په‌منځنی پارسی کښی د (یوك - evak) په بڼه‌دی چه په زړه پارسی کښی د (ا یوه - aiva) په پښتو کښی (یوه) دی .

۲- دنوې پارسی (شانزده - نزده - بیست - سی - هفتاد - هشتاد - نود - صد) په‌منځنی پارسی کښی د (شاژده- نوازده- ویست-سیه- هفتات- هشتات- نهوت-ست) په بڼه موجود وو .

### ترتیبی عدد :

دمنځنی او نوې پارسی ترتیبی عددیوازې په لومړیو دریو عددونو (لومړی دویم ،دریم) کښی توپیر لری او بس . په‌منځنی پارسی کښی له دغو دریو عددونو ترتیبی عددونه داسی جوړیدل :

| | | |
|---|---|---|
| ۱ - | یوك - | نخوست - نزیست - فراتوم = لومړی |
| ۲ - | دیتیکار | =دویم |
| ۳ - | سیتیکار | = دریم . |

په منځنی پارسی کښی دترتیبی عدد جوړولو بله لاره هم وه چه دمقداری عدد پورې د (ین - in ) دسوفیکس په مرسته جوړیدل لکه نخستین (لومړی) پنجین (پنجم) ششین (شپږم) او نور .

## فعل :

دخپل جوړښت په لحاظ فعل په منځنی پارسی کښې دوه ډوله ؤ :

الف-ساده : دانستن (پوهیدل) زاتن (زیږول) .

ب- مرکب: لکه اندر زینیتن (نصیحت کول) فرجامینیتن ( پا ی ته رسول) مصدری فـو ر می تولی په(تن) پای‌ته رسیدې لکه فرموتن (فرمایل) نیپیشتن (لیکل) . په نوې پارسی کښې ځای په ځای د اسوفیکس (تن) په(دن) اوښتی دی لکه (فرمودن) .

## فاعلی صفت :

دمنځنی پارسی فاعلی صفت داسی جوړیده چه‌دمصدری لاحقې (تن) حذف او دهغه په ځای (ندك ـ ndak ) اضافه کیده‌اوبیا په‌نوې پارسی کښې د(ك) غږ له منځه تللی دی لکه : خورتن ـ خورندك ـ خورنده .

په منځنی‌پارسی کښې‌فاعلی صفت‌بل‌ډول هم جوړیده اوهغه داچه دمصدری لاحقی دحذف نه وروسته (اِن ـ an) سوفیکس پرفعل اضافه کیده لکه خورتن ـ خوران . دغه سوفیکس‌په‌نوې پارسی کښې‌هم‌موجود دی لکه خندان،درخشان .

## دماضی نه اسم صفت :

دماضی اسم صفت په منځنی پارسی کښې دمصدری (ن) په‌ځای د(ك)دغږ په اضافه کولو سره جوړیده چه په نوې پارسی کښې ددغه (ك) په ځای د( ه) توری په لیك کښې اضافه شوی دی لکه اراستن ـ اراستك ـ اراسته ـ نیپیشتن- نیپیشتك ـ نوشته .

## حاصل مصدر :

په منځنۍ پارسي کښې حاصل مصدر دمصدري سوفیکس (ن) په ځای د(ایشن) په اضافه کولو سره جوړیده چه په نوې پارسي کښې د(ایشن) د(ن) غړ له منځه تللی او(ایش) پاتې دی لکه: پرورتن ـ پروریشن ـ پرورش ـ مینیتن ـ مینیشن ـ منش .

## فعلی زمانی :

دزړې پارسي یولړ زماني تصریفونه په منځنۍ پارسي کښې بیخي له منځه لاړل او په ځای یې نوې فورمې ر اغلې . د بسیطو ـ Synthetic فعلونو ځای مرکبو ـ Compound فعلونو ونیو .

**حال:** په منځنۍ پارسي کښې دحالیه فعل د(همی ـ Hamay) په مرسته چه دفعل نه ترمخه راته جوړیده لکه همی داریت ـ (تاسو) لرئ .

دمنځنۍ پارسي دغه (همی) په نوې پارسي کښې لومړی په (همی ـ Hamiy او بیا په (می) اوښتی اودمنځنۍ پارسي له (همی داریت) نه(میدارید) جوړشوی دی.

## مستقبل :

په منځنۍ پارسي کښې مستقبل د(به ـ Be) ادات په مرسته جوړیده چه دفعل نه به ترمخه ذکر کیده لکه: هگر پوسخ نی دهی پت همزمان په وژنم ـ اگر پاسخ ندهی درین زمان (ترا) خواهم کشت. په نوې پارسي کښې په داسې مواردو کښې د(به) ځای د(خواستن) دفعل ماضي صیغو نیولی دی .

## ماضی مطلقه :

په منځنۍ پارسي کښې ماضي مطلق دوه تیپه تصریفونه لرل :لازمي اومتعدي .

## لازمی ماضی مطلقه :

لازمی ماضی مطلقه دماضی لازمی صفت (رفت ، مرت) څخه دفعلی رابطی په ذریعه چه ریښه یې (ه) وه جوړیدل . دغه فعلی رابطه چه په زړه پارسی کښې د(اه - Ah) په بڼه سوجوده وه د(موجودیت او شتوالی)معنایی لرله.دغه فعلی رابطه یوازې په مفرد غایب کښې نه وه . دهغی په سرسته مثلاً د(رفتن) نه ماضی لازمی مرکب فعل تصریف داسی جوړیده :

مفرد : رفت هم (لاړم) رفت هی (لاړې) رفت (لاړ) - جمع - رفت هیم (لاړو) رفت هیت (لاړیء) رفت هند (لاړل) .

لکه چه لیدل کیږی دماضی لازمی فعل په ټولو احوالو کښې دفاعل سره درابطی په ذریعه مطابقت موسی او دغه صیغی په نوې پارسی کښې په داسی بڼه اوښتی دی چه فعلی رابطه له نظره لویدلی ښکاری : (رفتم ، رفتی ، رفت، رفتیم ، رفتید ، رفتند) .

## متعدی ماضی :

متعدی ماضی کټ مټ دپښتو دمتعدی ماضی په شان ایرګاتیف سیستم لاره یعنی لازمه وه چه فعل دصریحی مفعول تابع وی نه دګرامری فاعل . فاعل دټولو صورتونو له پاره بس یوه صیغه وه چه دمصدری فورمی د(ن) له لیرې کولو عبارت وه مثلاً : د(ګوفتن) نه ماضی مطلقه داسی جوړیده : من ګوفت (ساوویل) تو ګوفت (تاوویل) اوی ګوفت (ده و ویل) اماه ګوفت ( موږ وویل ) شماه ګوفت ( تـاسو و و یـل ) او یشان ګـوفت ( دوی و ویـل )

په‌نوې پارسي کښې لکه چه‌ليدل کيږي په تصريف کښې د ماضي لازمي اومتعدي توپيرله‌منځه تللې اومتعدي کټ مټ دلازمي په‌شان تصريفومانه .

## ماضي استمراري :

ماضي استمراري په منځنۍ پارسي کښې د ماضي مطـلقې ترمخه د( همي- Hamay ) په‌اضافه کيدوجوړيده‌لکه: (همي‌خورت، همي کرت ـ ميخورد، ميکرد).

## امـر :

په منځنۍ پارسي کښې دامرصيغه په‌دې ډول جوړيده چه دفعل نه‌به‌مصدري لاحقې ليرې شوې لکه خورتن ـ خور انديشتن ـ انديش ـ اوکله کله به دفعل ترمخه د ( به ) ادات هم اضافه کيده لکه ( بخور ! بانديش ) د جمع له پاره به‌دامر په‌آخر کښې ( ايت ) اضافه کيده چه‌په‌نوې پارسي کښې و رنه ( ايد ) جوړ شوې دی لکه بخوريت ! با نديشيت= بخوريد ـ بانديشيد !

## قيد :

په منځنۍ پارسي کښې دغه قيدونه‌موجودوو : ايتر ( دلته ) پيش (په‌مخکښې) پس ( وروسته ) اندر ( په کښې ، په منځ کښې ) ايمروچ ( نن) فراژ ( پاس) پيرامون ( ګيردچاپيره ) ' « کو » نون ( اوس ) اندر ون ( د ننه ) بهر و ن ( بهر ، دباندې ) ميان ( منځ ) .

## ادات :

پەمنځنی پارسی کښې سربیره پرسامی ( من ، سا دا م ا و نو رو ) خدمتی کلماتو دغه ځایی ادات هم استعما لیدل : هځ ( له )اپر ( پر ) ازیر(لا ندې ) به ( . . . ته ) تاك ( تر ) اونور . پەمنځنی پارسی کښی د فعل د نفی له پاره دنوې پارسی پەشان د ( نی ) او ( مه ) سوفیکسونه استعمالیدل .

نوې فارسی خصوصا دفعل پەګرامري ساحه کښې لږ څه وړاندې تللې ده خاصتاً دغه وړاندې تګ دماضی متعدي په تصر یف کښی چه تقر یباً په ټولو آریا یی ژوند یوژبو کښی ( غیر له پښتو) لږ اوډیرمنځ تەراغلیدی ښه څرګندد ی . دزاړه تیپ چیرته چەپەماضی متعدي کښی دعمل فاعل دګرامري مفعو ل ځا ی نیوه ( لکه پەپښتو کښې ) پەځای نوی تیپ منځ تەراغلی ( ز یات تفصیل یی دا یر ګاتیف سیستم ترعنوان لاندی تیر شوی دی ) .

یعنی پەمنځنی پارسی کښی دپښتو پەشان فعل د مفعول تا بع او د ا سی تصر یفیده :

( ایم دیذ،ایت دیذ ، ایش دیذ۔ ساولید ،تاولید ، هغەولید ).د د غه تیپ تصریف پەځای د کوسکی فعل د ماضی لەاساسه جوړشوي صفت پەمرسته دمر کب فعل تصریف منځ تەراغی چەد عمل فاعل ګراسري فا عل هم شو. من د یذ م ( دید ۔ هم ) توديدي ( دید هیه ) او ...

همدارنګه د کوسکی فعل په ذ ریعه د فعل د تر کیب سیلا ن په نوې پارسی کښې بیخی ځرګند د ی : نو شته ا م ، نو شته بو د م ، خوا هم نو شت نوشته شد او نور .

په‌نوې پارسی کښې لکه په‌نورونو و آ ریائی ژبو کښې چه یو بل لو ی تغیر راغی هغه داچه دعربی نه‌یی خپله لغوي خواپه اعظمی ډول بدای کړه . د غه اخذ دنورو ټولو ژبو په‌نسبت په پارسی کښی ډیر زیات ؤ ( ۱ ) .

دنوې پارسی ګرامري فورسی په پریکړې ډول د سامانیا نو په و خت کښی قایمی اوبشپړې شوې چه‌ددغو فورسو په دراولو کښی مخصوصاً رو د کی ا و دده همعصر و شاعر ا نو لوی لاس لاره ( ۲ )

دلته غوارم د ښکارندوی په ډ و ل د منځنی پا رسی یو بشپړ متن د نوې پارسی‌سره دمقایسی په‌غرض وړاندې کړم ( ۳ ) .

---

۱ ـ په‌دې باب د زیات تفصیل له پاره(ایرانی ژبی) او رانسکی‌له ۱۰۱ ترنه ۱۱۱ مخونو پورې .

۲ ـ د ( تاریخ سیستان ) ژ به نوسی رساله دشوروي دعلوسو د ا کا ډ سی خپرونه ستالین آباد ۱۹۵۹ کال، مقدمه.

۳ ـ دغه متن ا و تر جمه یی له «منځنی پا رسی ژ به»څخه ا خیستـل شو ې د ي .

دا دی په پهلوی د کتابی‌الفباء لیکل شوی پاسنی متن ترانسکر یپسیون په لاتینی الفباء :

*1. rōč-ē Ardavān apāk asvārān ut Artaxšēr ō naxčīr šut būt. 2. gōr-ē andar dašt bē vitart u Artaxšēr ut pus i mas i Ardavān hač pas i ān gōr tāxt. 3. ut Artaxšēr andar rasīt u tīr-ē ētōn ō gōr zat kū tīr tāk par pat aškamb andar šut u ditgar sōk bē vitart ut gōr apar gyāk murt. 4. Ardavān u asvārān frāč rasīt hand ut kē-šān zaniśn pat ān ēvēnak dīt apd sahist ut pursīt kū ēn zaniśn kē kart. 5. Artaxšēr guft kū man kart ham. 6. pus i Ardavān guft: nē čē man kart ham. 7. Artaxšēr xešm grift u-š ō pus i Ardavān guft kū hunar ut martānakīh pat stambakīh u dušxrattīh u drōž (ut) adātastānīh ō xᵛēš kartan nē tuvān. 8. ēn dašt nēvak ut gōr ētar vas. 9. man u tō ētar ditkar āzmāyišn kunām ut nēvakīh u dilīh ut čāpukīh pat dīt āparēm. 10. Ardavān hač ān dušxᵛār sahist ut pas hač ān Artaxšēr nē hišt ō asp nišastan.*

ترجمه :

۱- یوه ورځ ارداوان دسپرو او اردشیر سره ښکار ته روان شو ۲- یو ګورا (دشتی خر) په دښته کښی وزغلید اواردشیر او داردوان مشر زوی دهغه ګورا پسی و زغا ستل ۳ ـ او اردشیرور ورسید او(په) داسی غشی (یی) ګورا وویشت چه غشی تر بڼکو (د ګورا) په خیټه ننوت او بلی خواته ووت‌او ګورا (ځای) په ځای سړ شو ۴ ـ اردوان اوسپاره ورورسیدل او کله چه (یی) داسې ګوزارولید

حیران شول او پوښتنه (یی) وکړه چه دغه ګوزار چاوکړ ۵ـ اردشیر وویل چه

ما کړی دی ۶ـ داردوان زوی وویل چه نه ما کړی دی ۷ـ ار د شیر په قهر

شواو داردوان زوی ته یی وویل چه هنراو میړا نه په زور، تېښکار، دروغ اوبی

انصافی نه شي خپلولی ۸ـ دادښته ښه ده او ګوړا دلته ډیر دی ۹ـ زه اوته دلته

دویم ازمایښت کوواو ښاغلیتوب اوزړه ورتوب اوچابکی ښکاره کوو . ۱۰ـ اردوان ته

داخبره ستوغه وبریښیده اوله هغی وروسته یی اردشیر ته په اس د کښینا ستواجازه

نه ور کوله .

دادی دمقایسی په غرض دمتن دلومړیو څلورو جملو په مقابل کښې دنوي

پارسي څلور جملی تکی په تکی وړاندې کوم .

منځنی : روچی ا رذ و ان اپاك اسو ار ا ن اوت ار تخشير و نخچير شوت

ايستات .

نوې : روزی اردوان باسواران وارد شير به شكار ايستاده شد (رفت) .

منځنی : ګوری اندر دشت بيويتارت او ارتخشيراوت پوسی ې سرې ارذوان

هچ پس ې ا ن ګور تاخت .

نوې : ګور دشتت بګذشت ( بدوید ) اردشیرو پسر بزرګک اردوان اژ پسی آن ګور تاخت .

منځنی : اوت ارذوان اندر ریست وتیرې یتو وګور زت ګوتیر تاك پرپت اشکمب اندر شوت ودیتیګر سولك بی ویتارت اوت ګور اپرګیباك سورت .

نوې : واردوان رسید وتیرې طورې به ګور زد که تیر تاپر به شکم داخل شد وی دیګر بګذشت وګور برجای (جابرجا) سرد .

منځنی ـ ارذوان واسواران فراچ رسیت هنداوت کوشان‌زنیشن پت‌انا یونیك دیت . ابد سهیست اوت پور سیت ګواین زنیشن کوکرت .

نوې ـ اردوان‌وسواران فرار سیدند که شان‌زنیشن (ضربه) به آن قسم دیدند حیران شدند پرسید که این که کرد .

## ددری اصطلاح :

(دری) (نوې‌فارسی) همدارنګه (فارسی دری) دیوې ژبی بیل بیل مترادف نومونه دی چه دمنځنی پارسی سره ددغی ژبی دامتیاز له پاره وضع شوی دی .

ددری اصطلاح لومړی په ساسانی مرکز کتیسیفون ـ Kteseton (مداین ـ دموجوده بغداد په ځای یوپخوانی ښار) کښی منځ ته راغلی ده . عربی مؤلفینو داسلام نه ترسخه ددغه‌ښار دساسانی دربارژبه‌د(دری) په‌نامه سره یاده کړی‌ده. چه‌بیا وروسته‌دغه اصطلاح په نورو معناوهم استعمال‌شوې ده . مثلاً په‌میلادی لسمه ، یولسمه پیړی کښی دپارسی هغه سبك ته (دری)ویل کیده چه له هغو سلګونو عربی اخیستل شویو لغاتو خلاص و چه داوخت په ادبی فارسی کښی منل شوی وو .

ددری په اصطلاح به کله کله دیزد، کرمان ، سواندی اونوری لهجی‌هم یادیدلی (۱)

په افغانستان کی هم بیا وروسته دغه ژبه د (دری،فارسی دری) په نامه کله کله یادشوی ده .

نوې پارسی (دری) په یوه لحاظ دزړې او سنځنی پارسی یوه نوې فورمه ده نو دنړۍ په علمی حلقو کښې‌د پارسی دنوې فورمی یعنی (نوې پارسی ، فارسی)سره یادیږی او په بل ملحوظ هم رنګه چه په خراسان کښې ددغې ژبې موجودیت او پرمختګ‌دتاریخ له مخه دایرانی شاهانو درباروته منسوب دی او دعام‌اولس له پاره داسې ژبه وه چه څوك نه پرې پوهیدل ځکه نود باختری اولسی ژبو په مقابل کښې ددرباری (دری) په نامه یاده شوې ده .

دهمدغه مطلب یادونه عربو سو رخینو هم کړې ده لکه :

۱ - الفهرست دابی الفرج بن اسحاق بن یعقوب الند یم ا ال را ق متو فی ( ۳۸۵ ) تا لیف .

۲ - مفاتیح العلوم د ابی عبدالله محمد بن‌احمدبن‌یو سف کاتب‌خوارزمی متوفی( ۳۸۷ ) تا لیف .

۳ - احسن التقا سیم فی معرفة الاقالیم د شمس ا لد ین ابو عبدالله بن محمدبن

---

۱- په دی باب (مقدساتی فیلالوژی) (۲۶۷-۲۶۸) مخونه همدارنګه (شهنامه‌فردوسی) لوسړی‌توك (۶۱۳)مخ دمسکود(۱۹۵۷) کال چاپ‌وګوری .

احمد ابی بکر متوفی ( ۳۸۰ ) تالیف ( ۱ ) .

دغه عرب مورخین په خراسان کښې دفارسي ژبې څولهجې یادوي اودهغوی په جمله کښې ضمنا د ( دری ) نوم هم دیوې لهجې په صفت ذکر کوي اوليکې چه دا ددربار ژبه ده .مثلادالفهرست مولف د(دری)په باب لیکي چه(....وبها کان یتکلم من بباب الملك فهي منسوبة الی حاضرته الباب . . . . . ( ۲ ).

ترجمه ( . . . . . او په هغې ( دری ) د پادشاه ددربار وګړو خبرې کولې نو دا دربار ته منسوبه ده . . . . )

په دې باب غواړم دیو لړ ایرانی محققینو نظریات هم وړاندې کړم :

په دې باب دیوه ایرانی پوه محمد تقی بهار ( ملك الشعرا )دلیکنې لنډمطلب دادی :

د دری ژبې د(دری)د کلمې دحقیقی معنا په باب اختلاف موجودا و په قاموسونو کښې دتسمیې مختلفې وجهې ورته یادې شوی دی .

یوه داچه دا دخوښارونو بلخ ،بدخشان بخارا . . . . ژبه وه . دځینو په خیال داد ( کیان ) ددرباریانو دخبرو ژبه وه ـ ځینې وایي چه د بهمن اسفندیار

---

۱ ـ ددغو عربو مورخینو مفصل روایات په ( تاریخ ادبیات ایران ـ جلد اول ) د داکتر ذبیح الله صفا په تالیف کښې ـ تهران ۱۳۳۲ کال همدارنګه دافغانستان د ۱۳۳۱ کال په کالنۍ کښې دښاغلي جاوید په مقاله ( افغانستان یا مهد زبان دری ) کښې وړاندې شوی دی .

۲ ـ تاریخ ادبیات ایران مولف داکتر ذبیح الله صفا .

په وختو کښې څه رنګه چه ا و لسی وګړی دربار ته راتلل اویو دبل په ژبه نه پو هېدل بهمن وفرمایل چه پوهان دې یوه‌ژبه وضع کړی او هغه یې ( دری ) وبلله یعنی هغه ژبه چه دپادشاه په دربار کښې پرې خبرې کیږی‌او حکم یې وکړ چه په ممالکو کښې دی په همدغه ژ به خبرې کیږی .

( در ی ) ته هم ځینو منسو به کړی ده‌لکه : ( کبك در ی ) (۱ ).

په دې باب د برهان قاطع دلیکنی لنډ مطلب داسی دی :

(د ری ) دلومړی توری په زور د ( پری ) په وزن دباستانی پارسی‌لغت‌دی او دتسمی وجه یې ځینو فصاحت ښوولی ده او هر لغت چه نقص و نه لری هغه ته (دری ) وایی لکه په ( اشکم ) او ( شکم ) ا و . . . ) ( ۲) برهان قاطع ددغی نظریی له ښکاره کولو وروسته هماغه روا یتو نه و ړا لدی کوی چه دملك الشعرا له خواوړاندې شوی دی .

په دی باب‌بل ایرانی محقق داکتر ذبیح ا لله د یر څه لیکلی د ی ( ۳ ) چه لنډ مطلب یی د ادی:

---

۱ ــ په دی باب ( سبك شناسی یا تاریخ تطور نثر فارسی ) اومړی ټوك د محمد تقی بهار ملك الشعرا تالیف دتهران چاپ ته مراجعه وکړیء.

۲ ــ برهان قاطع دابن خلف تبر یزی تالیف د ( دال )ردیف‌وګوریء .

۳ــ تاریخ ادبیات ا یران ــ جلد اول ــ مولف ډ اکترذبیح الله‌صفا‌ــ تهران ۱۳۴۲ کال له ( ۱۶۳ نه تر ۱۷۵ ) مخونه و ګوریء.

( په دری ) ( فارسی دری ) سره ددغی (فارسی ) ژبې دتسمیې وجه دا ده چه هغې دشاهانو په دربار پوری تعلق لاره . . . دغه‌قاعده له قدیمه معمو له وه‌چه ددربار ژبې ته دری ویل کیده . دالفهرست مولف ابن‌الند یم د المقفع له نقله روایت کوی‌چه‌دساسانیانو ددربار ژبې ته(دری ) ویل کیده . . . .

بل ځای لیکی : . . . این ( پارسی ) که در تسمیه فوق بکار رفته‌است بیشتر برای مقابله باعربی ( تازی ) وترکی بکار رفته وبمعنی اعم ( ایرانی ) است.

دری هماغه درباری ژبه وه‌چه په هجری دریمه او څلو رمه پیړی کښې درباری شاعرانو او لیکوالو په کاراچوله . . . . ددریمې څلورمې هجری پیړی نه وروسته دغه‌لهجه ( دری ) چه دخراسان په اسلامی‌دربارونو کښې رسمی ژبه شوه د (دری ) ( فارسی ) یا ( پارسی ) په نامه یاده شوه او د عربی ( تازی ) ( او پهلوی ) په مقابله پرته ده . . . .

ډاکتر ذبیح الله صفا لیکی : « دلته ( پارسی ) د ( ایرانی ) په معناده نه دا چه نسبت یې کومې‌خاصې قبیلې ته یا قبایلو ته شوی‌دی » . نوموړی‌ډاکتر د خپلې ادعا داثبات له پاره یولړ شواهد وړاندی کوی او لیکی:« په تفسیرطبری کښې چه دمنصور ابن نوح سامانی په امر له عربی نه په فارسی ترجمه شوی دی په هغه کښې لیکل شوی دی‌چه « این کتاب بزرگ از روایت . . . ترجمه کرده وبزبان فارسی دری راه داشت » څو کرښې وروسته لیکی« و چنان خواست که این را ترجمه کنند بزبان پارسی » .

دډاکتر صفادا استاد څرګند وی چه د ترجمه شوي تفسیر له پاره دلته (پارسی دری) او (فارسی) دوه مترادف نوسونه دی .

دفارسی ژبی معتبر شاعران او ایکوال چه تیر شوی دی دهغو په لیکنو کښی داسی شواهد نشته چه (دری) له نوي فارسی (یعنی دري) او سنځنی پارسی څخه له راوتلی او دهغو په مقابل کښی پرتی (فارسی) ژبې نه جلاوښئی .

ددغو شاعرانو په جملو کښی دمثال له پاره فردوسی وړاندې کوو . فردوسی چه دنصر ابن احمد په امرد عبدالله ابن مقفع کلیله او دمنه په فارسی ترجمه کړې ده څپله ژبه کله (پارسی دری) او کله (پارسی) بولی فردوسی وایی :

بتا زی همی بو د تا ګاه نصر　　بدانګه که شد درجهان شاه نصر
بفر مو د تا پا رسی د ری　　نبشتند و کـتاه شـد دا وری

فر د و سی بل ځای لیکی :

بسی رنج بردم درین سال سی　　عجب زنده کردم بدین پار سی

بل ځای(دری) او (پارسی)دپهلوی په مقابل کښی په مترادف ډول یادوی :

کجا بیورا ز پهلوا نی شمار　　بود بر ز با ن د ری ده هزا ر
نګر آ نکه ګفتار او بشنوی　　اګر پارسی ګو ید ا ز پهلوی

ددې موضوع زیات تفصیل د کابل مجلی د (۱۳۳۹) کال په ګڼو کښی وګوریء .

یادونه : دفارسی په باب له دغو مأخذونو څخه زیاته استفاده شوی ده :

۱- (ایرانی ژبې) د ی . م . او رانسکی تالیف - مسکو (۱۹۶۳)

۲-«ایرانی مقدماتی فیلا لوژی » . . او رانسکی - مسکو (۱۹۶۰)

۳- (منځنی پارسی ژبه) مولفه و . س . راستور گویفه - مسکو (۱۹۶۶)

۴- (دپهلوی - پارسی ، ارمیانی ، روسی او انگریزی قاموس) مولف پروفیسر ابرامیان ایروان (۱۹۶۵) کال .



## پارتیانی (اشکانی پهلوی)ژبه :

پارتیانی ژبه د(پارتیا) لرغونی تاریخی ایالت ته منسوبه ده چه د کسپین د بحیری په جنوب ختیځ کښی واقع و. په لرغونو او منځنیو پیړیو کښی دغه ژبه دمنځنی آسیا په‌جنوب‌لویدیځه برخه (دتور کمنستان جنوبی برخه اوخراسان) کښی خپره وه. خراسان دمنځنی‌آسیا دیوې پراخې سیمې تاریخی نوم دی چه په‌لویدیځ کښی‌ددشت‌کویر اوپه‌شمال کښی‌د هند وکش اودآسود غارو پورې‌یی لمن غزیدلې وه. دمعاصر افغانستان یوه زیاته اندازه سیمه دتاریخی خراسان په حدود و کښی شامله وه. دخراسان معنا (ختیځ ، مشرق) دی (۱) دغه نوم ایرانیانو په‌دغه‌برخه‌ایښی‌ؤ.

---

۱- ایرانی ژبی (۷۱) مخ .

دپارتیا تاریخی سیمه دهخامنشیانو دامپراتورۍ په قلمرو کښی داخله وه خودمقدونی سکندرد تهاجم په اثرد هخامنشیانو امپراتوري تو ته ـ توته شوه او بیا دسکندر له مړ ینې وروسته دده امپراتوري هم په خپل حال پاتې نه شوه او دده دفوځی مشرانو په مشرتوب واړه واړه دولتونه منځ ته راغلل . ختیځي برخې دیوه فوځی مشر سیلیوکس دوا کمنی لاندې راغلې چه په (۳۱۲) قبل المیلاد کښی جوړه شوې وه . مګر په دغه وا کمن کښی دوسره قدرت نه وچه خپلې وا کمنۍ ته ادامه ورکړی . تقریباً په (۲۵۰) قبل المیلاد کښی له دغې وا کمنۍ څخه دوه نوی ایالتونه (باختریا او پارتیا) خپلواك شول .

دباختریا په قلمرو کښی دغه وخت دسوغد ، مرګیانه (سرغاب) ، اریا ، ارا خوزیا ، درنګییانا (سیستان ، هیلمند) اونور او همدارنګه دهند دنیمی قارې دشمال لویدیځ سیمی او تاریخی ولایتونه شامل وو . دباختریا دخپلوا کۍ سره سمه په یوه وخت کښی پارتیا هم داولسی یوه لوی قیام په نتیجه کښی خپلوا که شوه . ددغه قیام مشرارشك (۱) نومیده چه دقیام دبریالیتوب په اثر دی دټولی پارتیا وا کمن او دده کورنی تقریباً پنځه سوه کا له وا کمنی وکړه . وخت په وخت یی وا کمنی پراختیا وموند له او ټول ایران یی هم په خپل سیاسی

---

۱ـ د (ارشك) له نومه وروسته د (ر) غبرلویدلی چه (اشکانی) دهمدغه نوم اوښتې بڼه ده .

قلمرو کښې شامل کړ. پایتخت یې موجوده عشق آباد ته نژدې په (نیسه) کښې واقع وچه بیاد نظامی بریالیتوبونو په اثر لویدیځ ته نقل شو. لومړی د کسپین په جنوب ختیځ کښې، بیا په اکباتان او بیا د معاصر بغداد په سیمه کښې پخوانی ښار (کتیسیفون ـ Ktesefon مداین) ته د غه پا یتخت نقل شو. (۱) په دغه وخت کښې پارتیانی دولت هم په اقتصادی او هم په نظامی لحاظ دومره قوی ولکه په اروپا کښې د روم ـ امپراتوری د پارتیانی امپراتوری دقوت یوسبب داهم وچه د مدیترانی په غاړو دهند او چین خواته دجهانی تجارتی لو یې لا ری یی په خپل واک کښې وې مگر دغې مقتدری امپراتوری دمیلادی دریمی پیړی تر پیله پوری دوام وکړ نور بې دساسانیانو له خوا ماتی وخوړه (۲).

داشکانیانو په عصر کښې دغه ژبه دټولی پارتیا او داشکا نیانو د سیاسی قلمرو دولتی ژبه وه خو دعربو تر فتو حاتو ددغې ژبې دنفوذ ساحه دمنځنی پارسی په ذریعه (خصوصاً په ښارونو کی) ور تنګه اوو رو په ورو له منځه لاړه تردې چه د (پهلوی) کلمه عربو سو لفینو ته په دغه معنا نوره څرګنده نه وه.

دموندل شو یو کتیبو له مخی اشکانی دوسره بهایه نه وه، ددې په باب دخیړنو اساسی لیکلی مواد یوازې ساني متنونه دی چه په دغه ژبه لیکل شوی دی (ددغو متنونو بحث د ساسانی پهلوی په بحث کښې وکوریء).

---

۱ ـ دغه ښار عربو د (مداین) په نامه زیات مشهور کړی دی.

۲ ـ مقدماتی فیلا لوژی (۱۳۵ ـ ۱۳۶) مخونه.

دنسبي خپلوي له مخې دغه ژبه دسيديك ګروپ( بلوچي، كوردي، تاليشي او نورو ) په كتار كښې دريږي مګر پارتياني ژ به په خاص ډول دباختري ژبو نه لغوي لويه پانګه اخيستې ده . ددې دليل دمحققينو په عقيده دادی چه پارتياني دباختري ژبو سره نژدې ګاونډي وه اوډيرې اخيستني يې ورځخه كړي دي اوبله داچه ددې ژبې ويونكي ( پارتيان ) په ختيځ باختريان وو ( ۲ ) .

اشكاني ( پار تياني )چه دسيد يك له ګروپه ده البته دپيرسيك ګروپ(منځنۍ پارسي ، دری او نورو ) په مقابل كښې بيل ګروپ تشكيلوی او ددغه بيلتون په اساس مثلا د ( دری ) سره دغه مشخص تو پيرونه لري :

۱ - پارتياني داضافي او صفتي تر كيب له پاره د (ي ـ e ) غبرګونه لري مګر ددغه مقصد له پاره په منځني پارسي كښې د ( ي ـ i ) او په نوې پارسي كښې د ( ې ـ e )غبرګونه موجود د ی چه په خپل وارد زړې پارسي د ( هيه ـ hya ـ نسبتي ضمير)ا و ښتي بڼه ده .

۲ - دمفرد متكلم ضمير په پارتياني كښې د( ز ) په بڼه دی حال د ا چه په منځنۍ پارسي او دری كښې ( من ) دی چه په زړه پارسي كښې ( ادم )و .

۳ - دفو نيتيك په ځينو بر خو كښې لكه څر نګه چه نو ری سيديك ژبې له پير سيك ګروپ نه ليری او دباختري ژبو سره نژدې كيږي ، دغه شان پارتياني هم دمنځنۍ پارسي او دری نه لرې اوباختري ژبوته نژدې ده لكه په لا ندې مثالونو كښې:

| پښتو | نوې پارسي | منځنۍ پارسي | الف : پارتياني |
|---|---|---|---|
| زړه | دل | ديل | زيرد ـ Zerd |

۱ - ايراني ژ بې ( ۷۷ - ۷۸) مخو نه .

زن دان د ان(دانش ) پی+ژندل
ژن ( ژیوندک ) زن ( زند غان ) زن-زنده ژوند،ژوندی
ژنین زن زن جنی(پنځه )

ب : -د پارتیانی د (س) دغږ په مقابل کښې منځنی اونوي پارسی د( ه) غږ لری .
پارتیانی ( د س ) نو ی او منځنی پارسی (ده) .
ج : - د پارتیانی د(ز) دغږ په مقابل کی منځنی اونوې پارسی د ( د) غږلری:
پارتیانی ( زوش ) منځنی او نوی پارسی ( دوست ) .
د : - داویستا اوزړی پارسی د ( ذ ر ) غږ په پارتیانی کښې د (هر ) په غږ منعکس دی .

مگر په منځنی او نوی پا رسی کښې د ( س ) په غږ . پارتیانی(هری ،پوهر) منځنی پارسی ( سی ، پوس ) نوی پارسی ( سی ،پسر ) ( ۱ ) .
داده په اشکانی دمانی دمتن دیوې برخې لوست اوتحلیل وړاندې کوم(۱) .

---

۱ - په دی باب ( دپهلوی پار سی. . . ) قاموس ( ۱ ۳۰- ۲ ۳۰ ) مخونه همدا رنگه ایرانی ژبی (۱۸۳ - ۱۸۴) مخونه وګوریء .
۱ - دد غه متن لوست ، تر جمه او تفصیل بناغلی اورانسکی په دغه حواله وړا ندی کړی د ی .
M. Boyce' The Manichaean Hymn—cykles in Parthian , Oxford University Press, 1954.
ضمناً باید وویل شی چه غږیز توری په ترانسکر یپسیون کښې نه د ی ښوول شوي .

'z pd zwš št'n'n

'wd frwz'n pd b'xwr

'br'ž hrw z'wr'n

'wd xšynd'n [w] ystmbg'

تفصیل :

ز ( Z ) دمفرد متکلم فاعلی ضمیر دی داضمیر په پښتو کښی د (زه) په اویستا کښی د ( آزم ) په سوغدی کښی د ( ز ـ ZW ) په سانسکری کښی د ( ازو ـ Azw ) په اوسیتی کښی د ( از ) او په ټولو باختری او حتی لرغونو اینډو یوروپی ژبو کښی د ( ز ) په غیر داضمیر موجود و . پد ( Pd ) خدمتی کلمه ده د پښتو د ( په ) په معنا . داادات په باختری او حتی اینډویوروپی ژبو کښی ثابته ریښه لری . خو دلته یی را سپړل موضوع بیخی اوږدوی . ددغه ادات له پاره په نوی پارسی کښی د ( به ) خدمتی کلمه موجوده ده .

زوش ( Zwsh ) د ا اسم ذات دّی . د ( هیلی ) او ( مینی ) په معنا . ددې کلمی ریښه په اویستا کښی ( زوش ـ Zaosh ) په زړه پا رسی کښی ( دوشتر ـ daushtar ) په منځنی او نوی پارسی کښی ( دو ست ) ده.

ستن (St'n'n) مستشرقینو دد غه فعل رابطه دپا ر سی د(سیستا ن ـ اخیستل نیول ) سره ورکړی ده زماپه عقیده د پښتود ( ستنول – ستنیدل ـــستنه، ستو ن ) سره دریښی خپلو ی اری یعنی ( له زمکی آسمان ته ستنول)دامعنا دلته موزو نه بر یښی .

ود( Wd )دعطف ادات د ی چه په پښتو کښی د(او ) په فارسی کښې(و)اوپه زړه پښتو (باختري )کښی د(اوته ) په بڼه دی . بشپړ تفصیل ئـی دسر ه کو تل د کتیبی ددریم پراګراف په تحلیل کښی ورا ندې شوی دی .

فروزن-( frwz'n ) دادحال له اساسه دمستقبل دمفر دمتکلم صیغه ده دا کلمه په اویستا کښی (فراواز) په منځنی اونوی پارسی کښی (پرواز) ده .

بزور- ( b'zwr )د اسم ذات د ی دپښتو د (وزر) پارسی د(با ل )په معنا.

بر- brد (بر ، پورته ،هسك ) په معنا ـ بشپړ تحلیل یی د سره کوتل د کتیبی په دویم پراګراف کښی د( برغه ) په تحایل کښیو ګوری ء .

ژ( Zh )داخد متی کلمه دپارسی د(از)دپښتود (له )په معنادې کلمی ریښه په اویستا کښی (هچه )په زړه پارسی کښی(هچا)په منځنی پارسی کښی ( اچ )ده. اودپښتو په (زما=ز+ ما) (چخه = څه +خوا ) کښی دا ر یښه سو جو ده د ه .

هرو ( Hrw ) د(هر- ټول ) په معنا .دا کلمه په اویستا کښی (هور وو ا ـ Haourva ) په زړه پارسی کښی (هرووا- Haruva ) په پښتو اوپارسی کښی (هر ) ده .

(زورن ـ Z'wr'n )اسم ذات د (زور)جمع ده (ن)چه غالباً (و)یا(الف)یی ترسخه

شته دجمع سوفیکس دی دغه سوفیکس (الف+ن) دسالرونکواو(و+ن) دسانه‌لرونکوله پاره په پښتو کښې ژوندي دي .

خشیندن Xshydd'nاسم ذات جمع د (خاوند او پاچا) په معنا. ددغی کلمی بشپړ تحلیل دسره کوتل دکتیبی په دویم پراګراف کښی د(بغه شاو) ددویم توکی په تحلیل کښی وړاندې شوی دی. (و، یستمبګ ystmbg "W")اسم صفت د(یاغی اونا-مطیع) په معنا. (ستم) اود اویسنا (ستمبه) ته ددغی کلمی سره دخپلوی ربطور کړشوی دی.

**ترجمه :**

زه په سینه (تا) له ټولوزوروئو او یاغی پاچایانو ستنو م او په وزرورا الوزوم .

یادونه : په دې برخه کښی زیاته استفاده له دغو کتابونوشوې ده :

۱- (ایرانی ژبی ) دبناغلی م . اورانسکی تالیف مسکو ۱۹٦۳ کال .

۲ -(منځنی پارسی ژبه ) مولفه و . س . راستور ګویفه مسکو۱۹٦٦ کال .

۳ -« دپهلوی، پارسی، ارسیا نی روسی او انګریزی قاموس» دپروفیسورابرامیان تالیف دایراوان چاپ ۱۹٦٥ کال .

۴ -مقدماتی فیلا لو ژی - داورانسکی تالیف.

## بلوچ او دهغو ژبه:

بلوچستان دیوې لوېې سیمې نوم دی چه ختیځ خواته یې دپښتونستان څه برخې او د پاکستان دسیندایالت دی، دشمال خواته یې افغانستان، لویدیځې خواته یې ایران او د جنوب برخې ته یې دعرب بحیره پرته ده .

دبلو چستان نه علاوه یوزیات شمیر بلوچان دافغانستان په جنوبی ولایتوا و دایران په جنوب ختیځوایالاتوکښې هم ژوند کوي. دافغانستان په خاوره کښې لهاتیازره ، په ایران کښې له (۳۲۰) زرو، په عربی ټاپو ګانو (مسقط ، عمان اونوروکی ) له (۲۵) زرواوپه بلوچستان کښی له یوسلیون څخه زیات بلوچا ن ژ و ند کوي . په شوروي کښی هم ددوی شمیر له پنځه زره زیات د ی چه ټول بلوچی ژ بی تقریباً یونیم میلیو ن ته رسیږي ، (۱) . . .

---

۱ - مقدماتی فیلا لوژي (۳۲۴) مخ .

بلوچستان ډیر وخت دباختر په یونانیانو ،موریانانو او کوشانیانو پورې تړلشوی ؤ اوپه اخر کښې دسامانیا نوپه لاس کښې کښېووت اوبیا پهاومه پیړی کښې عربو خپل تصرفته راوو ست وروسته بیا بلوچستان دصفاریا نواوغزنو یانوددولت جزء وګرزید .دمغولو د امپراتوری لهسنځه تللووروسته چه بلوچستان یې هم په لاس کښې ؤبلوچستان په ابدالی دولت پورې وتړل شو .

دافغانانواوانګلیس دلومړی جګړې پهوخت کښې انګریز انو دبلوچستان په مر کز (کلات) باندې یرغل وکړ اودهغه ځای مشردوم میرمحراب خان یې وواژه .

دګندمک دتحمیلي تړون نه وروسته دبلوچستان زیاته برخه دافغانستان څخه جلااو دبرتانیې داداري لاندې راغله (۱) .مګر بلوچانو خپله رابطه دافغانستا ن سره نه شلوله .

همیشه لکه په (۱۸۵۲-۱۸۶۲) (۱۸۹۷، -۱۸۹۸ -۱۹۰۱ ) کلونو کښې یې دانګریزانو سره سخت جنګونه کړي اودانګریز په مقابل کښې یې همیشه د افغانستان ملاتړ کړی دی (۲) .

## دبلوچو لرغونی تاریخ :

دمیلاد نه ترمخه په وروستیو پیړیو کښې دمیلادي لومړیو زرو کلو نولومړی نیمایی پورې دبلوچستان اوسیدونکی له دریو اساسی قومونوڅخه مرکب وو :

---

۱- آریانادایرة المعا رف د(بلوچ ) کلمه وګو ری ٠ .

۲- مقدماتی فیلا لوژي ( ۳۲۵) مخ .

۱ - آریایي - پهلوید یځ او شمالي بلوچستان کښې .

۲ - اینډوآریایي قوم - پهجنوب ختیځ اوپهختیځ بلوچستان کښې.

۳ - دراویدي - چهاکثره یې پهمرکزي بلوچستان کښې میشته و و البته ځینې یې دبلوچستان پهنورو سیمو اوهمدارنګه دکرمان پهختیځ اوجنوب کښې هم اوسیدل .

دبلوچي ژبې دویونکې ټولنې تشکیل پهکرمان اومکران کښې دهغو آریایي کوچیو بلوچانو دنهضت سره اړه لري ، دکومولوسړنې تاتو بي چه دکسپین دبحیرې غاړوته نژدې سیمهوه . لههغهځایه ددوی دمهاجرت نیټه او علت لاتراوسه پهبشپړه ډول څرګند نه دی . امکان لري علت یې دلومړي خسرو نوشیروان هغه یرغلونه وی چهدګیلان اوآزربایجان په اوسیدو نکو یې کول اویا دیفتلیانو هغه حملې وې چهدایران پهشمال یې کولې ( ۱ ) . په دغه صورت دبلوچو دیوه ګروپ مهاجرت دځینو مؤرخینو په خیال تقریباً په میلادي پنځمه اوشپږمه پیړۍ کښې شوې دی . مګرغالبه دا ده چه دمهاجرت علتونه یې نوروي اودغه مهاجرت لهدغه وخت ډیر پخوا شوی وي . په دې باره کښې دسترابون روایت هم پهزړه پورې دی چهوایي : دکرمان اوسیدونکې بیل کړه وړه اوداسې ژبه لري چهزیاته برخه یې پارسي اوسیدي ده . دبلوچانو ژبه دیوه هغه لرغوني آریایي توکم ژبهده چهپهمیدیا اوپارتیا کښې اوسیدل .

---

1. M. Longworth Dames, the Baloch race P 29.

د غه روایت ددغه تکی تقویه کوي چه دبلوچانو لو سړنی تا تو بی د کسپین جنوبی سواحلوته نژد ي سیمه وه . دغه لرغونی ژبه له یوې خوا د پا رتیانی ژ بی سره نژدې خپلوي لري اوله بلی خوا دځینو ژبنیو خصوصیاتو له مخې و ر نه لیري کیږي . د کسپین جنوبی سواحلوته له نژدې سیمونه دبلوچانو سها جر ت د ا هم ښیی چه ددوی ژبه د هغه ځا ی دنوروآریایی دیالیکتونو( فاروي ) ا و ( خور ي ) سره زیاته خپلوي لري .

د( بلوڅ —بلوچ ) د کلمی ا یتیمو لوژیکه ریښه اودهغی معنا څرګندهنه ده . دي . هیرڅفیلډ (۱) په عقیده د ( باو چ ـ بلو څ ) کلمه له د و و تو کوجوړه ده:

(برز-لوړ، بر، هسك+ واچیه ـ ویل) یعنی (لوړغږی، د لوړ غږ خاوندان) په میدي ژبه کښی (برزه واچیه ( brza—Vaciya )دلوړغږمعنا ورکوی.

د کوثر غوریاخیل دتحلیل لهمخی (بل) د(قوت) او(سیك) معنا ورکوي ، چه په سانسکریت کښی همدغه کلمه په همدغه معنا ده او (اوچ) د(اوچت) په معنا یعنی غښتلی، قو ی اواوچت وګڼی. زما په خیال دا کلمه د پښتو (بړیڅ) سره ډیر نژد ې ورته والی لري.

لا نګورث دیمس دا کلمه دچرګ د کر کرې په معنا ا خیستی ده . دد غی نظریی خاوندان وایی چه پخوا به بلوچانو خپلی خولی دچرګانو په بڼکو ښکلی کولی .له دغه ځایه دغه خلك په دغه نامه یادشول (۲).

1— E.Herzfeild, zoroaster and his world. vol.11,pp. 734—735 princeton 1947.
2— M.Longworth Dames, the baloch race.p.22, londen 1904.

داسلامي دورې مؤرخينو لا داووسي پيړې په نيمايي کښې په دغو سيمو کښې دعربو دفتوحاتو دیادونې په ترڅ کښې ( د کوفيچيانو - د دغه ځای د ارغونو اینډ و آرويايي قبايلو دپاتې شونو سره ) د کرمان دغرونو او درودسحدودی سيمې اوسيدونکو په نامه یاد کړي دي دلسمې پیړۍ ترآخره پورې دوی يوازې د کرمان اوید يځي اوشمالی سيمې فتح کړې وې ( ۱ ) حال داچه زيات شمير بلوچان داوخت هم په سيستان اوپه لويد يځ مکران کښې میشته وه ( ۲ ) .

دبلوچانو ژوند اساساً د کوچيانو یا نیم کوچيانو په توګه روان ؤ . عربو فاتحانو وروپه وروپه دوی کښې اسلام خپور کړ ، مګراسلام ددوی په خاوره کښې ډير په تدريج ريښې وغزولې .

دلسمې پيړۍ سورخينو دهغه وخت دبلوچانو په باره کښې ليکلي دي چه دوی تش په نامه مسلمانان دي ( ۳ ) په بلوچستان باندې د عربو فاتحانو او اکمني ( دبلوچستان په يوازې مرکزي او محکمو کلابندو سيمو کښې ) د لسمې پيړۍ ترپايه موجود وه .

---

۲ - ابن خرداذ به ( کتاب المسالك و المما لك ) ۹ ۴ - ۴ ۵ مخونـه ( حدودالعالم ) ( ۲ ٦ ٦ ) مخ ، الاستخري ( کتاب المسالك المما لك ) ۱٦۳-۱٦۴ مخ .

۲ - جوز جاني په ( طبقات ناصري ) کښې دسيستان په يوې ختيځې برخې کښې ديوه اولس يادونه کوي چه د کوسبز(اوبلوچ ) په نامه ياديدل لومړی توك ۴۹ ۱ مخ .

۳ - المقدسي( احسن التقاسيم ) ۷ ۸ ۴ ) مخ .

په ( ۹۷۶ ) کال کښې دعربو په لاس کښې دبلوچستان لوې برخې وې . ابن‌حوقل دعربو په تصرف کښې یوازې د کیکانان (معاصر کلات) یادونه کوي .

له هغې وروسته ډیرژر دغزنی حاکم سبکتګین د بلوچستان شمال ختیځ په خپل تصرف کښې راووست .

په یو لړښنا بعو کښې سونبر د هغه د خلف ( خوزدر ) نوم په جالوان کښې سوندلای شو چه دسختو جګړ ونه وروسته د غزنوي محمود له لاسه ماتې وخوړه اود ده تابعیت یې ومانه داهم څرګنده ده چه دمکران حاکم دغه سلطان ته مالیه ورکوله ( ۱ ) . په سیستان اوخاران باندې دبلوچانو یر غلونه ددې سبب شول چه دیوولسمې پیړی په سر کښې د غزنویانو کرمان ته لیږل شویو لښکرو د حابس په سیمه کښې بلوچان سخت وزپل ( ۲ ) .

دغسې پهښې دیوولسمې پیړی په نیمایی کښې دسلجوقیانو له خوا تکرار او ددې سبب شوې چه دبلوچانو یوه برخه دسیستان اود کرمان د شمال نه د لویدیځ خوا سکران ته ولیږي اوپه لویدیځو سیمو هنجګوره کښې یولړ بلوچان میشته شی(۳) .

په معاصر بلوچستان کښې دبلوچانو میشته کیدل ددوی دملیت دتشکل مهم تاریخی عصر دی .

---

۱- ابوالفضل بیهقی ( تاریخ مسعودی ) ( ۵۳۳ - ۵۳۶ ) مخونه.

۲ - نظام‌الملك ( سیستان نامه ) ۶۸ - ۷۲ مخونه .

۳ - المقد سی ( احسن‌التقاسیم ) ( ۳۷۸ ) مخ .

په دغه ځای کښې په لسمه- دیارلسمه پیړیو کښې دبیلوبیلو توکمونود ګډون اوپه یوه ځای ډېروخت راتولیدل دیوې ګډې تولنې اوشریکې ژبې دمنځ ته راتلو اوتشکل سبب شول اود ( باوچ ) یواولس جوړ شو .

په دې ځای کښې د پښتونکو په لاس و رغلی فولکلوري روایات هم په زړه پورې دي چه دهغو له مخې د بلوچانو په یوولسمه ، دولسمه پېړی کښې پخوانی نیکه میرجلال خان څلور زامن ( رینه ، لشر، خوت او کورای ) اویوه لور ( جاتو ) درلودل اوله دهوشخه دبلوچانو لويې څانګی خپرې شوې ( ۱ )

داسې ښکاري چه په دغه وخت کښې د ( بـلـوخ ) داولس دجوړو ونکو اولسونو یووالی منځ ته راغلی وي .

دغزنویانو ، غوریانو اوخصوصاً دمغولوله خواچه ددیارلسمی پیړی په نیمایی کښې اساساً دافغانستان په لویدیځو اودایران دختیځو سیمو په اوسیدونکو بلوچانو یرغلونه کیدل ددې سبب شول چه دبلوچانو نه ډیرې زراعتي ځمکې تشې شي - او څوسلوك الطوایفی لکه توران ( په ختیځ بلوچستان کښې چه مرکز یی (خوردر ) ؤ ، کند ابیل ( معاصره ګنداوه ) او کیچ ( په جنوبی مکران کښې ) او نو رې له منځه لاړې شی .

دغه پیښې ددې سبب شوې چه بلوچی قبایل له مکرانه وزاندې د شمال او شمال ختیځ په لور داباسین اوپنجاب ترپولو خپاره شول .

په مرکزي بلوچسان ( کلات ) کښې د بلو چو مهاجر ت چه دبرا هو ی دقبا یلو د

1— M.M.Longworth Dames,the baloch race P 34.

سخت مقاومت سره‌مخامخ شو په‌دوو بهیرونووو یشل شول . یوبهیر یې دځوارلسمې پیړ ی په پېل کښې لا ند ینی ابا سین اوبل یې دمعاصرو دیره جاتو سیمو ته‌وو .

په ( ۱۳۷۰ ) کال کښې دملتان‌وا کمن شاه‌حسین لنگه ( ۱۳۶۷ - ۱۵۰۲ ) دغه‌بلوچان دهند په‌لویدیځو غاړو کښې میشته کړل.دپنځلسمې پیړی په پای کښې اسماعیل‌خان ، فتح خان اوغازي خان ددریوبنارونو اساس هلته کیښود چه تراوسه دغه‌ښارونه ددوی په‌نومو نویادیږي ( ۱ ) .

ددوی دنفوسو ډیرښت اودځړځایونو کمی ددې سبب‌شول چه‌دوی وخت‌په وخت‌نوي نوې سیمې لاندې کړي مغلو بو وگړو به‌ددوی اسارت مانه او یا به نورو‌سیموته کوچیدل .

دبلوڅو سره دهغو جگړو فکراو احساس ډیرزیاتیده چه‌په‌لسمه، یوولسمه‌پیړی کښې‌یې ددوی په‌مقدراتو کښې‌ډیر نقش لوباوه اوپه‌نتیجه کښې‌بلوچ دیوه تورزن قوم‌په صفت‌تبا رز و کړ .

دمغولو او دهغوی داخلافو ملوك الطوایفی حکمرانانو د سختو او بی رحمه یرغلونو اوخرابیو په‌نتیجه کښې چه‌دبلوچو زراعتی ځمکې شاړې شوې د ځړوبولو کانالونه وران اووچ شول‌اوله نفوسو‌ډکې سیمې تشې شوې . د دې پیښو په‌اثر بلوچانو دکوچیانو یانیم کوچیانو په‌دول ژوند روان کړ اودځمکو دکرلو په ځای یې‌ مالداری په‌ملی اقتصاد کښې ځای ونیواو دبلوچانو ژوند تقریباً خپله پخوانی بدوي بڼه غوره کړه .

1— J.W.H. Tolbort, the di- strict of Deve Ismail Khan.

دیوه حکومت اوقوي مرکز نشتوالی دد ې سبب ؤ چه بلوچ ن په دخپلو ځانو او مالو دساتنې اودفاع له پاره په قومی بدوي روا بطوتکیه ولري ، د دوی ددفاع وسیله تکړه اوتورزن ځوانان وو .

داسی تصور کیږي چه دبلوچی فیودالی ټولنې تشکیل په دیارلسمه ، پنځلسمه پیړی کښې شروع شو . داهغه وخت دی چه په معاصر بلوچستان کښې دهغو بیلو بیلو تیپوترمنځه یووالی راغی چه دځایی ( بومی ) خلکو ځمکې یې تر لاس لاندې کړې وې . دځمکو اشغال د دې سبب شو چه د دوی دقومی اتحاد ځای سیمه ایز اتحاد و نیسی .

د م . ک پیکولین په عقیده دشپاړسمې پیړی په پای کښې دختیځو سیمو بلوچو یوه مجاور تی ټولنه جوړه کړه ( ۱ ) قومی هغه واکمن کسان چه ښی زراعتی ځمکی اوودان خړځایونه یې په لاس کښې وونه یوازې د آبادو زراعتی ځمکو خاوندان بلکه غریب شوي کوچیان یې هم دخپل لاس لاندې کړل . او په دغه ترتیب په بلوچستان کښې یوه ملوك الطوایفی ټولنه جوړه شوه .

اولسی واکمنی دڅوکورنیو په لاس ورغله چه دبلوچی په اصطلاح ( پخاك لوگ ـ دپګړی دخاوند کور ) چه دخانی سیمبول دی دیوه نسل نه بل ته په میراث پاتی شوه .

د ( پگړ یو د کو رنیو ) په مشری اودبلوچو زلمیانو په هغه مهارت چه په جګړو کښی یې لاره د کرمان اود کیرتهار اودسلیمان دغرونوترمنځه په داسې یوه سیمه

---

۱ ـ م . ك . پیکولین ( مسکو ـ ۱۹۵۹ کال، بلوچان ) ۲۷ مخ .

کښې دمعاصر بلوچستان په نامه یوه ځانله سیمه اوځان ته ملت ورو وروسته ته راغلی.

بلوچستان چه له ځوړو وړو خانیو او ملوك الطوایفی ټولنو څخه جوړ ؤ دنفوسو تمرکز یې له بله هره ځایه زیات دکلات په شمال ختیځو اوجنوب لویدیځو سیمو باندې ؤ. دبلوچستان په جنوب لویدیځ کښې دژوند اقتصادي اوکلتوري مرکزونه بې دباسپور، کسرکند، کیچ اود پنجګوړه حاصل خیزې سیمې وې.

مارکوپولو چه څوکاله په ختیځ کښې ګرزیدلی اودغو سیموته هم ورغلی ؤ په خپلو یادداشتونو کښې ددغو ځایونو په باب یادونه کوي چه «دخلکو شغل یې کرنه (دغنمو او وریجو پالنه) اوهمدارنګه مالداري ده، تجارت او کسبونو هم ورکښې ښه پراختیا موندلې ده، دنړۍ ډیر سوداګرهم دوچې اوهم دبحر له لارې دلته خپل مالونه دتجارت له پاره راوړي او له دغه ځایه نور مالونه له ځانه سره وړي دي» (۱).

د جنوبي بلوچستان ډیرلوی ښارونه په دغه وخت کښې له پنجپور (پنجبور)، بناجبور اوفنازبور (معاصر - پنجګوړه) وو.

داسلامي مؤرخینو په قول دبلوچستان په اقتصاد کښې زیاته برخه دخورماو حاصل لرله کرنه اساساً للمي نه، بلکې دویالو او کانالونو په ذریعه وه. دبلوچستان په شمال ختیځ کښې اقتصادي او کلتوري مرکز هغه وخت (کج - ګنداوا) حاصل خیزه سیمه وه چه دختیځ له خوانه دسلیمان دغرو نو لمنې ورغزیدلې وې. د دغه ځای مرکز کندابیل (معاصره ګنداوه) وه.

---

۲ - دمارکوپولو کتاب - (۱۸۸) باب.

په دغو مرکزونو کښې دبلوچانو دتمرکز سره څنګ په څنګ دنورو ځایي قومونوجذب او بلوچ کېدل Assimilation هم روان وو. دیروآر یايي قومونو: (پښتنو، اورمړو، تاجيکانو) ډیر واينهوآر يايي قومونو: (سينديانو، پنجا بيانو) دراويدي ژبو (براهوی) او حتی دعربو پاتی شونو خپلې ژبې هيرې کړې او دبلوچانو دټولنې جوړوونکي عناصر وګرځيدل (۱).

دیو زيات شمېرمحققينو په عقيده دبلوچانو دیوی موجوده لويي ټبې - (ماری) په تشکیل کښې هغه پښتانه او کهيترانی ډيره لويه برخه لري چه دبلوچانو دتصرف نه مخوا دسليمان دغو کي په جنوبي لمنو کښې اوسيدل (۲).

دبلوچو دمزاری ټبې په جوړو لو کښې دبراهوی ټبې یوه څانګه (کيرد) برخه لری. په دغه متعلق بايد وويل شی چه بلوچان دبراهوی ژبه د (کير- کالی = کور کالی) په نامه یا د وی دبراهوی قبيلی بله څانګه (رو خشانی) دبلوچو په باله قبيله (ريند) کښې جذب به شوې ده. دبلوچانو دیوې بلې مهمې څانګې (ګيجکی) او (دو دای) په جوړولو کښې سينديان ګډون کوی. او د (بوليد) څانګې په تشکيل کښې دعربو پاتی شونی برخه لری (۳).

---

۱- د (پاکستان اولسونه) ۱۵۳ مخ وګوری.

۲- په دې باب دم. لونګورث (دبلوچانو تراکم) نومې تاليف (۱۶ - ۱۷ ۵۸ - ۵۹) مخو نه، همدارنګه دسار ګينسترين تأليف (دهندشمال مغرب ته دژبپوهنې دهيئت رپوټ) (۱۳) مخ وګوری.

۳- په دې باب: Mockler E. Orgin of the Baloch JASB, vol. LXIV, pt i, 1896

دد ې تو لوڅا نګو یوه سته د(بلوچ) اوهیوادیې د(بلوچستان) په‌نامه یادیږ ی
بلوچ په خپل سنځ کښې په‌دوو نژادي‌لو یو اویو ګروپونو ویشل کیږي :

الف :شمال ختیځه څا نګه (سلیماني) .

ب : جنوب لو یدیځه څا نګه (مکراني).

دلوسړ ی څا نګې په تشکیل کښې یوشمیر بلوچ شوی پښتانه، اورسړی اوهم دار نګه یوشمیر سندیان اوپنجا بیان‌هم شامل د ی.

ددویمې‌څانګې په جوړښت کښې دافغا نستان لو ید یځ او د ایران د ختیځ نوراولسونه برخه لری. ددغې پیښې انعکا س‌نه یوازې‌دد وی په کړووړ و ، اجتما عی روابطو ، کلتور اودو دونو کښې ،بلکې‌په ژبه کښې هم‌لیدل کیږی.

دما ر ګینسټر ین په عقیده دبلوچې‌په‌شمال‌ختیځو د یا لیکټو نو داورسړی‌ژښته لویه اغیزه پر ته‌ده (۱).ددوی په لغوی‌اړخ دجنوب ختیځودیالیکټونو په نسبت داینډ وآریا یی‌ژبولغو ی‌اخیستنی زیاته اغیزه کړې‌ده بالمقابل په‌جنوب لویدیځو دیالیکټو نو دفارسي‌لغو ی‌اغیز ه‌ډیر ه د ه.دختیځوبلو چانو علمې، تخنیکي،معیاری د کرنی او داسې نو راصطلاحات دسیندی او پنجا بی نه اخیستل شو ی‌د ی،مګر دلوید یځو بلو چا نو دغسې‌اصطلاحات له فارسي‌څخه‌اخیستل‌شوی‌دی( ۲).

---

1— G. Morgenstierne, repo rt on....p.14

۲- په د ې باب:

(A.W.Hughes, The country of Baluchistan) pp. 316—317

(۱۸۶-۱۸۷)مخونه همدار نګه دکلا ت دخانی‌دتاریخ‌لنډ یادداشتو نه‌دم. ګ پیکو لین تألیف (۶۶-۷۱)مخونه وګوری.

## د بلوچستان معاصر تاريخ ته يوه کتنه :

په شپاړسمه اوولسمه پيړ ی کښی په بلو چستان کښی يولړ سيمه ايزحکومتونه منځ ته راغلل چه په سر کښې يې د بلوچو نيم خپلواك خانان او سشران ووچه دمغلواونورو وا کمنو دلاس لاند ې وو .

د(۱۸) پيړ ی په نيما يی کښی دنادر شاهدسقوط او دمغو لو داسپراتو رۍ د کمز ور ۍ په نتيجی کښی داسی شرايط منځ ته راغلل چه د کلات دلو يو ا و مقتدر وخا نانو او دټول بلوچستا ن په يو والی او اتحاد تمام شول.دغه يووا لی د کلات دهغولويو او مقتدرو خانا نو اوداحمد زيو د کورنی سؤسس په ختمه براهوئی اول سير احمد او په (۱۶۶۶-۱۶۹۵) کښی وا کمن يا کمبرانی وو(۱) .

دد غو تو لو په لړ کښی مقتدرخان نصيرخان بلوچ ؤ د نصيرخان دفاعی او نظامی اتکاء دبراهو ی د هغو پنځوتپو په کونفيديراسيون باندی وه د کوموسردارانو ته چه په سراوان اوجالوان کښی حمکې ورکړ شوي وې . په لويد يځ کښې بامپور، کسر کنداود يزك په شمال کښی شا ل(معاصره کويټه )، همدارنگه(دغازي خان جنوب ته)په شمال ختيځ کښی خراسان اوداجل دنصيرخان په تصرف کښی وو. همدا رنگه په جنوب

---

۱ ـ دبلو چو په باب ددغومعلوماتو زياته برخه (د پا کستان اولسونه) نومی کتاب د۱۴۷-۱۵۸ مخو نو څخه اخستل شو ی ده.

کښېږي دلاس پیلا او کیچ خانان هم دنصیر خان دلاس لاندېوو (۱) .
خپله نصیرخان که څه همد د راني دولت دوا کمنوترلاس لاندې ؤخودي همدوسره مکلف ؤ چه د د رانیانولښکر اوعسکري خدمت ته خپل یوشمیر تکړه زلمیان وروليږي . ددغه مکلفیت په بدل کښې دراني دولت نصیرخان ته دشال (کویټې) ،مستونګ خاران اوداجل اداره ورپریښې وه اود کلات دخانانو په کورنیو چارو کښې درانیانو لاس نه واهه . داتلسمې پیړۍ په دویمه نیما یي کښې دنصیر خان دسرکټ نه وروسته دبلوچو دسر دارا نو ترمنځه اوضاع خړه پړه شوه اود کلات لو یه خانی ړنګه او په وړووړو خانیووو یشله شوه .علت یې هم داؤ چه هرخان غوښتل دخپل لاس لا ندې سیمې ته پراختیا ورکړي . دنصیرخان کالنی عایدات چه له درې سلیونه رو پیوڅخه زیات وو دده دزوی محمود خان (۱۷۹۵-۱۸۱٦) کالنی عایدات (۳۰۰۱) زره روپۍ کیدلې ځکه چه داوخت د کیچ ،پنجګوړه، لاس دیزک اوخاران خانانو دمالیاتو له ورکولو ډډه وکړه او په خپلو سیموېي خپله وا کمنی قا یمه کړ ه .
داتلسمې پیړۍ په پای اودنو لسمې په پیل کښې دبلوچستان لوی خصوصیت داؤچه دغه تولنه په وړووړو تپه ایز وتپینګو روابطوولا ړه وه .بلو چان که څه هم لکه چه ترسخه ځرګنده شوه له یو ه تو کم او یوې وینې څخه نه وو ، خوبیاهم په تپه ایزوډلو ویش ورکښې بیخي ځر ګندؤ. یوازې په سینداوپنجاب کښې دمیشته شووبلوچو ترمنځه دغو تپه ایز ورواېطو خپل ار زښت ترز یا تی ا ند ا زې له لا سه ورکړیؤ ، دهرې ډلې په سر کښې داسې مشران واقع وو چه دنوروله تسلطه خپلواك اودخپلې تپې اداره یې په خپل لاس کښې و ه .

---

۱ ـ په دې باب دشال په تو که دغه ا ثرو کوری :

H.Pottinger' Travels in Bal ochistan and Sinde P.63.

دشمال ختیځ بلوچستان د ټپو ترمنځه وخت په وخت ځمکې سره بدلیدلې. د ځمکو بدلون د جرګو په ذریعه کیده د جرګې غړي به د کورنیو او ټپو مشران وو.

په مکران کښې ټول اقتدار د لویو خانانو پورې منحصر ؤ. د ټپو وړو مشرانو به اکثره خپل واک له لاسه ورکاوه او د لویو خانانو (رعیت) او (همسایه) به ګڼل کیدل.

په ختیځ بلو چستان کښې بلوچان د هغو غیر بلوچو ټپو او خیلونو د مشرانو یعنې د هغو تاجیکانو، سندیانو او پنجابیانو تر لاس لاندې وو چه یا خو اصلاً د غو سیمو او سیدونکي وو او یا د هغو پنجابیانو او سیندیانو له نسله وو د کومو نیکونو چه په سیند او پنجاب کښې د محلي واکدارانو له ظلمه بلوچستان ته پناه راوړې وه.

د تاریخ په اوږدو پوړیو کښې بلوچان (لکه پښتانه) په مالداری بوخت او د اقتصادي او کلتوري مرکزونو څخه لرې وو د بلوچانو د غه مرکزونه او ټولې حرفوي چارې د تاجکو، سندیانو او پنجابیانو په لاس کښې وو. په ښارونو او کلتوري مرکزونو و روپه ورو غیر بلوچو ګړ یو تمرکز پیدا کړ. تجارتي چارې یې غالباً د هندوانو په لاس کښې وې چه د سلطانانو او شکارپور نه راغلي وو او د نولسمې پیړۍ په سر کښې یو ازې د کلات په ښار کښې د دوی د کورنیو شمیر څلور پنځه سوه ته رسیده. او په دغه صورت د کلتوري او اقتصادي مرکزونو څخه د بلوچو لرې پاتې کیدل د دې سبب وچه د بلوچانو اکثریت نالوستی او بیسواده پاتې شول. ژبه او ادب یې د بروختونه له لیکه محرومه او وروسته پاتې شول او یوازې په فولکلوري ډول یې ادب ژوندی و، د لیک او دفتري ژبې په حیث یې پردی (فارسی) یا (اردو) ژبه استعمالوله خپلې ژبې یې دفتر ته لاره نه لرله.

په دغه ژبه غیر له فولکلوري متونو لرغوني آثار څه نشته مګر د فولکلور له مخې بلوچي بډایه ژبه ده.

## بلوچي ژبه :

دغه ژبه دسیدیك شمال لوید یخ ګروپ یوه‌سهمه‌ځانګه ده.ددغه ګروپ دژبوا و دیالیکتو نو اصلي ټاټوبې د(سید یا )تار یخي هیواددی دسیدي ژبې نه‌یو ازې یو څو کلمې پاتې دي اوبس . دځینو په عقیده او یستاهم‌دمیدي ژبو سره نژدې شباهتونه لري .ددغه ځای ژ بواو دیالیکتو نو ته کله کله په پوهنه کښې د( پا رتیا نی دیالیکتو نو) نو سونه هم ورکول کېږي .

دغه ژبې دډیرو ژ بو خصوصیاتو له‌مخې دباختري ژبوسره خپلوي لري .

محققین عقیده لري چه‌دغه ( میدي ) یا ( پارتیانی‌دیالیکتونه ) چه‌دباختري ژبو سره نژدې خپلوي لري دآریایي ژبو په منځنی عصر کښې د جنوب لو یدیځ ( پارسي ژبو ) دګروپ په‌ذریعه هم‌په خراسان اوهم په مر کزي ایران کښې له منځه وویستل شول ، ځای‌یې پارسي‌اود هغې خپلوانودیالیکتونو ونیو . اودوی چیرته په‌ګوښه اوله مر کزونو په لیرو ځایو کښې پاتې شول .

دغه‌ژبې له کوردي ، زازاني ، تالیشي ، ګیلاني ، مازندراني اوبلوڅي‌څخه عبارت دي . د دغو ژبو ډیر لږ خصوصیات په پراچي او اورسړی کښې هم لیدل کیږي ( ۱ ) .

بلوچي ژبه په‌پاسني حساب که څه هم د پښتونه په ځینو ملحوظاتو بیلیږي خوبیا هم‌ډیر فونیتیکي او لغوي خپلوي ورسره لري .

---

۱ - ( ایراني ژبې ) داورانسکي تالیف ( ۱۷۳ - ۱۷۵ ) مخونه وګورئ .

د پښتو ژبې دغه لاندې یوشمیر لغات چه خصوصاً د ترکمنستان د بلوچو په ژبه کښې سروج دي دلته یې دمثال په ډول راوړم . ( ۱ ) .

پښتو : ته ( شخصی ضمیر ) -توکه- تـول- تمپ - تکی - هډ - کوټ ( فلز ) لنډ ( لنډی ) - پنډي ( باروړونکی ) پسه - نن - سپین - ناست ...

بلوچی : ته - توك - تو ( لوی ) تمپ - تیك - اډ - کوټ - لنډی - پنډی ( خر ) پس - نون - سپیتین - نیست ...

## د بلوچی ژبې دیالیکتونه :

لکه چه څرګنده ده ژبې خپل قوم اوخپلوویونکوته منسوبیږي . بلوچی ژبه هم خپل لوی قوم او خوراخپور تبر بلوچ ته منسوبه ده .

اوس د بلوچو یوه برخه په پښتونستان، بله په ایران، بله په عربي ټاپوګانو ( مسقط، عمان او نورو ) او بله د افغانستان په جنو بی سیمو کښې ( ۲ ) او همدا رنګه څـه یې د پنجاب پـه جنو ب لو یدیځ کښې

---

۱ - دامثالونه د ( ایرانی ژبو فونیتیك یاد داشتونه ) نومی کتاب نه اخیستل شوی دی .

۲ - بدخشان ته دسفر په لاره کښې مونبرد یوزیات شمیر کوچیو کورنیو سره مخامخ شوو چه ځانونه یې بلوچان بلل، ژبه یې پښتووه اوداوړي د تیرولو له پاره د بدخشان په لوړه سطحه کښې دشیوه دښتی ته کوچیدل ( لیکونکی ) .

پرته د ه ، په نولسمه پیړۍ کښې یوشمیر کورنۍ شوروي تورکمنستان ته هم لیږدیدلی دي ( ۱ ) .

دبلوچي ډیرواړه ګروپونه په دوولویو دیالیکتونو ویشل کیږي :

الف : شمالي ( یا شمال ختیځ ) دیالیکت چه د ( سلیماني ) په نامه هم یاد ېږي .

ب : جنوبي ( یاجنوب لویدیځ دیالیکت ) چه د ( مکراني ) دیالیکت په نامه هم یا دیږي .

ختیځ دیالیکت دبراهوي دقبایلو داوسیدلو دسیمو دلیکې ( د کلات ، بیله په کر ښه ) په ختیځه اوشمال ختیځه خوا کښې موجوددی . لویدیځ د یا لیکت د دغې لیکې په لویدیځه خوا کښې خپور دی چه دافغانستان دجنوبي سیمواوهمدارنګه په شوروي تورکمنستان کښې داوسیدونکو بلوچو ژبې هم ور کښې شامله دي .

ختیځ د یالیکت نسبت لویدیځ ته خپل لرغوني ژبنی خصوصیات ترزیاتې اندازې ساتلی دي .

دلویدیځ دیالیکت سره دختیځ دیالیکت دبیلتون ځواساسي خواوې دادي :

۱ - دغه دیالیکت په خپل ځان کښې تنفسي - Aspirate صامت غږونه ساتلی دي . مقابله وکړیء :

ختیځ دیالیکت : پذ ( پښه ) کوفګګ ( اوږه ) .

لویدیځ دیالیکت : پد ( پښه ) کوپګګ ( اوږه ) .

---

۱ - د ( ۱۹۵۹ ) کال داحصائیې له مخې په شوروي کښې تقریباً اته زره بلوچان شمیرل شوي دي ( ایراني ژبې - اورانسکي ) ( ۱۲۱ مخ ) وګوریء .

۲ ـ د لو یدیځ د یالیکت ددغو ( ت ، د ، پ ، ب ، ك ، ګ ، چ ، ج ) غږونو په‌مقابل کښې ختیځ د یالیکت په ترتیب سره د ( ث ، ذ ، ف ، و ، خ ، غ ، ش ، ژ ) غږونه موجود دي .

مثلاً : لو یدیځ د یا لیکت : اپ ( او به ) ، دته ( دود ، رواج ) او ده ( هلته ) نزیك ( نژدې )، پیګ ( وازده ) ، اچ ( د فارسی از ) .

دغه کلمې په‌ختیځ د یالیکت کښې په‌ترتیب سره په‌دې ډول دي :

اف ( اوبه ) ، دثه ( دود ، رواج ) ، او ذه ( هلته ) ، نزیخ ( نژدې ) پیغ ( وازده ) اش ، د فارسی ( از ) .

## بلوچی ته پاملرنه :

لکه چه تر مخه وویل شول دبلوچی لیک‌اولیکلی ادب دنامساعد و شرایطو له اسله پراختیانه ده مو ندلې . که څه هم یو ه‌ بره‌اندازه قلمی آثارنی‌موجوددي خو هغه دومره نه دي چه ددغې ژبې په باب لازمه اوقناعت‌ورکوونکې‌تشریح وکړای شی . یوازې په دې وروستیو وختو کښې دبلو چې ژبې چاپی محد ود آثار په بلو چستان کښې منځ ته راغلی . دبلوچی مطالعې او څیړنې‌ته په‌نولسمه پیړۍ کښې د ختیځ پوهانو پاملرنه واوښته . په دی باب د و. ګیو ګر ا ئر په نو لسمه پیړۍ کښې ، همدارنګه دشلمې پیړۍ په(۱۹۲۳) کال کښې‌په‌انګلستان کښې دبلو چی ګرامر په انګریز ی ژبه او ورپسی دبلو چی انګریزی قامو س په ( ۱۹۲۵ ) کال کښې دهلیبر تسن له خوا خپاره شوی آثار د یادونی و ړ دي .

ناروېژي‌ناستو ژبپوه مار ګینسترین هم په بلوچی ژبه یولړ دقدرور آثارخپاره کړي دي. په روسیه کښې پرو فیسری .ی زا روبین دبلوچی‌ژبې‌دمطالعې اوڅیړنې

ښه اساس اېښی او دغې سلسلې ته شوروي نورو محققینو ادامه ورکړې ده. اوس دبلوچي ژبې په‌باب تحقیقات دنړۍ په ډېرو هیوادو کښې لیدل کیږي.

دمحققینو پلټنې په دې شاهدي ورکوي چه بلوچي‌ژبې دریاتو آریایي ژبو په نسبت خپل ډېر لرغوني ژبنی خصوصیات لاتر اوسه ساتلي دي، تر دې چه داخصوصیات دومره لرغوني دي چه دا ژبه‌د اینډو آریایي ژبو سره نږدې کوي. دغه خصوصیت د غږیزو لنډو او اوږدو غږونو دساتنې په باب ښه څرګند دی. دبلوچي مورفولوژیک سیستم انالیتیک ( (Analytical) ) دی. یعنی د کومکي کلمو په مرسته افاده کیږي. فلیکتیف — Inflexional یعنی‌فورمې چه دوروستاړو په‌مرسته افاده کیږي، لږې دي.

اسم یې جمع او مفرد لري خو د جنس (تذکیر او تانیث) کتیګوري‌نه‌لري. په بلوچي کښې درې ګرامري (لومړی، دویم او مفعولي) حالتونه موجود دي. وصلي ضمایر هم داسم او هم دفعل پورې تړلي خو داستعمال دومره ډېر موارد نه لري.

دفعل په لړ کښې هم دبسیطو ریښو څخه جوړشوي فعلونه لري چه د اساس پورې دشخصي ضمایرو دنښتلو په مرسته دماضي او حال (همدارنګه دمستقبل) صیغې ورنه جوړیږي او هم مرکب فعلونه لري چه‌دفعلي‌اسمونو پورې د کومکي فعل په مرسته جوړیږي.

دبلوچي بل لوی خصوصیت دایرګاتیف سیستم دی یعنی دپښتو په شان

په ما ضی متعدی کښې فعل دمفعول تا بع د ی نه د فا عل ( ۱ ) په ختیځو دیا لیکتونو کښې دمفعول او فعل تر منځه ممون نه لیدل کیږي (۲) .

دلته دبلو چی دیوه واړه فولکلوری متن تحلیل ا و تر جمه د ښکا ر ند وی په ډول وړا ندی کو م ( ۳ ) .

Yak roče būt ki mozanen
brās šut pa kārā ganok want
bi gisā go wati masā.

### تشر یح ا و تحلیل :

یك ـــ ( یو ) عدد دا کلمه په نوې فارسی کښی ( یك ) ، منځنی پار سی کښی (ایو غ ) ، په زړه فارسی کښی ( ایو وا که ــ Aiva Ka ) په ښهه ه په پښتو کښی(یو)،شوغنانی کښی( یو)په واخانی کښی(ایو)په مونجانی کښی(یو)ده

رو چی ـ ( ورځ ،روځ ) . دا کلمه په زړه پارسی کښی (رواچه) په او یستا کښی (راوچه) په سکیقی دیا یکتونو کښی ( راوکه ، روچه ) په سو غـد ی (روچ ـ Rwc )په کور مانجی اومو کری کښی( روژ )ده. (ې)دتنکیرله پاره.

---

۱ ـــ دایر کاتیف سیستم بحث دباختري ژبې په بحث کښی وګوریء.

۲ ـــ ( پا کستان ، نومی کتاب ( ٦۲ ) مخ .

۳ ـ دامتن دی . زارو بین د ( بلوچی افسانی ) په استناد وړاندې شوی دی ( او ر ا نسکی ).

بوت ـ ( و ) دماضی مفر دغایب د کومکی فعل صیغه ده چه په او یستا کښی د Buta په بڼه‌وه ـ کی ـ ( چه ) دنوې‌فارسی د ( که ) سره‌سمون‌خوري .

مزانیـن: ( مشر ) د ( مـزان ـ مشر ) د صفتی نسبتـی ( ـ یـن ) پـه لاحقه دپښتو د ( مشر ) دریښی سره څه‌خپلوي لیدل کیږي .

براس ـ ( ورور ) اسم ذات په‌لومړي حالت کښی ـ فاعل .

شوت ـ ( شو ، لاړ ) دماضی فعل دمفرد غایب صیغه ده . دایتیمو لوژیکو پلټنو په‌رڼا کښی د پښتو ( شو ل ) ، دفارسی ( شدن ) اوپه‌آریایی‌نوروژبو کښی دغه ریښه اصلاً د ( تللو ) معنا لري . دلته دغه فعل خبرواقع شوی دی .

په ـ ( په ) دغه ادات دپښتو د ( په ) سره سمون خوري چه په آریایی اوحتی په اینډو یوروپی ژبو کښی ثابته ریښه لري .

کاره ـ ( کار ) اسم ذات دی . ددغې ریښې‌فعل په‌پښتو کښی ( کړل ) په‌فارسی کښی ( کردن ) دی . دغه اسم ذات په پښتو کـښی د ( کـا ر ) په فارسی کښی د ( کار ) په‌زړه پارسی کښی ( کاریه ـ Karya ) اوپه سانسکریټ کښی هم ( کاریه ـ Karya ) دی .

دلته دبلوچی په ( کاره ) کښی ـ فتح د د ویم حالت ښو ونکی نخښه ده .

کنوك ـ ( بوده ، احمق ) اسم ذات مفرد فاعلی دی .

سانت ـ ( پاتی ، شو ) د ماضی فعل دمفرد غایب صیغه ده چه خبر واقع شوی دی .

بی ـ ( په ) دظرفیت یادعمل دسمت د ښوولو ادات دي .

گیس ـ gıs ( کوره ـ جوس ) ـ اسم ذات دی . د ا کلمه په ا و یستا کښې ( ویس ـ Vis ) په زړه پا رسی کښې د ( و یذ ) په سا نسکر یټ کښې د ( ویش ) په بڼه ده .

کـو لا ی شو چه د ( میر و یس ـ د کو ر کو رنی مشر ) په کلمه کښې داریښه وتپا کو .

په گیس ـه کښې ( ـ ه فتح ) ددویم حالت علامه ده .

گو ـ ( سره ) ادات دی چه دپښتو د ( سره ) دعربی ( مع ) د فار سی د ( با ) په معنا د ي .

و ت ـ ي : ( خپـل ) د ا کلمه په پښتو کښې ( خپل ) په پا رسی کښې ( خود ) په اویستا کښې ( خواتو ـ xvato. ) ده . ( ي ) د د و یم حا لت نخښه د ه .

ماس ـ ( مور ) اسم ذات مفر ددی . دا کلمه په سوغدی کښې د ( مت ـ Mt ) په بڼه او په اینډویو روپی ژبو کښې د ( م ) په غیر ثابته ریښه لري .

تر جمه :

یوه ورځ مشر ورور ( په ) کا ر (ته ) لا ړ ا حمق په کور کښې د مو رسره پـا تی شو .

## یادو نه :

دبلو چو اوبلوچی په باب له دغو منابعو اساسی استفاده شوې ده :


۱- ( ایرانی ژبی ) دي . م . اورانسکی تالیف په مسکو کښی د ( ۱۹۶۳ ) کال چنپ .

۲ -( ایرانی مقدماتی فیلا لو ژي ) مولف اورانسکی - مسکو- ۱۹۶۰ کال .

۳ - ( دپا کستان اولسونه ) دیو. وکا نکوفسکی تا لیف په مسکو کښی د ( ۱۹۶۴ ) کال چاپ .

۴ - ( دایرانی ژ بو په فونیتیك یا دداشتو نه ) دو. س.سو کـو لو وا تـ' لیف په مسکو کښی د ( ۱۹۵۳ ) کال چاپ .




# براهوی ژبه

کله چه سونږ دبلو چۍ اوبلوچو یادونه کو و بیځایه نه ده چه دبلوچستان په یوه بله ژبه هم څه ناڅه رڼا و اچو وچه اوس دیو زیات شمیر بلوچانو سورنۍ ژبه گرزید لې ده دا ژبه د (براهوی) څخه عبارت ده .

دتاریخی اسناد وپه شهادت براهو یان دبلوچستان ډیر لرغونی او سیدونکی دی .براهوی یوازینی دراویډی‌ژبه ده چه هم په بلوچستان اوهم په‌افغانستان کښی ژوندی د ه. ددی ژبې دو یو نکو اکثریت د کوټی په جنوب اودمستو نګ‌په‌ساحه کښی میشته او دبلو چی د دواړو لهجو تر منځه واقع د ه . د غه ژ به دافغانستان په جنوب کښی له شورا وکه تر چخا نسو ره ځا ی په ځای دبلو چی سره په ستو ازی‌ډول و یل کیږی.

ترمخه مو یا دو نه وکړه‌چه دبلوچستان وگړی‌اصلاله‌دری‌بیلوبیلو ټو کمو نو.

الف۔ (ا ینډ وار یا یی) (د بلو چستا ن په جنو ب ختیځ کښی

ب۔آر یا یی (په‌لوید یځ او شمال کښی ) .

ج - دراویدی (په مرکزی بلوچستان کښې) څخه جوړه وو. دریم توکم له براهوی څخه عبارت دی.

الاستخری دخپل (مسالك الممالك) نومی کتاب په (۱۷۶) مخ کښې لرغونی بلو چستان کښې کیچ، ګنداوه ته نژدې د (البدهه) په نامه دیوه کوچی بدوی قوم دموجودیت یا دونه کوی. دیولړ مستشرقینو لکه اکا ډمیك و. و. بر تولد او نورو په عقیده موجوده براهوی قوم هماغه دی چه الاستخری د (البدهه) په نامه یاد کړی دی.

براهوی ژبه چه اوس یو شمیر بلوچان ور باندی خبری کوی اساساً کلات په ولایت کښې او څه ناڅه دخیرپوراوحیدر آباد په سیمو کښې خپره او تقریبا (۳۶۵) زره وګړی ور باندی خبرې کوی (۱). له دغو سیمو پرته تقریبا (۸۷) زره نور وګړی چه په خټه بلوچ او څه یی سیندیان دی هم دغه ژبه یی دمورنی ژبې په حیث منلې ده.

دغه ژبه چه په عصرونوعصرونو له خپلو سکنیودراویدی ژبوڅخه چه تاتوبی یی جنوبی او مرکزی هند دی جلا شوې او د آریایی او اینډوآریایی ژبو دسختی اغیزې لاندې راغلی ده. دغه اغیزه له هرڅه زیاته په لغوی پانګه کی لید له کیږی. دفو نیتیك له مخی براهوی ژبه د آریایی او اینډوآریا یی ژبو سره ډیر ورته والی لری. په ګرامری

---

۱- دغه شمیر دمقدماتی فیلالو ژی (۳۲۵) مخ د (۱۹۳۱) کال دا حصائیې له مخی یوازی (۲۲۵) زره ښو ولی دی.

جوړښت کښې یې دراویدی سیستم هرګند دی‌اوپه دی‌باب‌دبراهوی‌خپلوی‌دهند دمرکزی دراویدی (کوروه)او (ملتو)ژبو سره ښکاره ده.

براهویان علاوه‌پرخپلې ژبې په بلوچی‌او په ځینوسیمو کښې‌پښتوهم پوهیږی .دبراهوی‌لیک له پاره له عربی الفباءنه‌کاراخیستل کیږی . او لیکلی ادبی آثار یې په دی وروستیو وختو کښې منځ ته راغلی او پراختیاکوی.(۱)

(۱)دپا(ګستان )نومی کتاب (۶۳ )مخ.



# کوردی ژبه

کوردی ژبه په میدیک گروپ کښې شامله ده . په افغانستان او پاکستان کښې د کوردانو شمیر ددوسوه زرو پورې اټکل کیږی ( ۱ ) یقینی احصا ئیه ئې نشته .

دافغانستان کوردان دهرات دولایت مربوط په غورا تو کښې د ایران سره سرحدي پولوته نژدې میشته دي . دلرغونو موافینوپه جمله کښې کسینوفونت Kcinofont ( قبل المیلاد پنځمه پیړی ) لوسړی یونانی دی چه د کورد نوم یې د ( خردوی خوت ) ( ۲ )په نامه یاد کړی دی. اوبیا نورود ( گوردوی توت)(۳) په‌نامه یاد کړی دی . دغه نوم بیا لرغونو ارمنیا نو د ( کوردوك ) ( ۴ )

---

۱ — مقدماتی فیلالوژی ( ۶ ۱ ۳ ) مخ

(2)xardoynot
(3)gordyatot
(4)korduk

او سوريانو د ( قاردوك ) په‌نامه یا د کړی دی . په‌منځنيو پېړ یو کښې عر بو جغرافيه پوهانو د ( کورد ) په‌نامه یاد کړی چه‌جمع يې د ( ا کر ا د ) په بڼه ليکلې ده . دتورکيې په‌ختيځو ولايتونو کښې کوردان په‌ميلا دي‌لسمه‌اويولسمه پېړی کښې خپاره شوي دي ـ په‌شپاړسمه ميلا د ی کښې د کوردانو يوه بر خه دتورکيې په‌امپراتوری کښې شامله او بله دصفوي دو لت په قلمر و کښې و ه . دلوسړی جهاني جګړې نه‌وروسته هغه سيمه چه کوردان پکښې‌شامل‌وودتورکيې ایران ، عراق اوسور يې ترمنځه وويشله شوه .

د کور دانو ا کثريت اوس هم په‌مالداری بوخت‌او کوچي ‌د و له ژ و ند لري . کوردانو د پښتنو په‌شان دعشيروي اوقبيلوي ژوند دودونه اوخپلوی سا تلی دي . کوردان غالباً سنيا ن دي ډير لږيې شيعه دي .

په‌منځنيو پېړ يو کښې د کوردي ژبې دليك له پا ر ه د عر بي ا لفبا ء ا سا س منل شوی اودژبې خاص توري ورته پکښې جوړ شوي و و . د کور دی د د غه وخت ښه شاعران ا حمد جزيري ( د ميلا د ي يو ولسمی پېړ ی دويمه‌نيما يې ) اواحمد خاني ( دشپاړسمی پيړی لوسړی نيمايی ) دی .

کور دي ژبه په‌فولکوري ادب ښه بډايه ده ، ليکلی ادب د و مره نه لري . دنولسمی پيړی په‌سر کښې په کورد ی ژبه طباعتي‌خپرونو پيل و کړ . په کوردی ژبه لوسړ ی ورځپانه په قاهره کښې د ( کو ر دستان ) په نا مه په ( ۱۸۹۸ ) کال کښې خپر ه شوه .

له ( ۱۹۲۰ ) کال څخه په‌عراق کښی ، له(۱۹۳۰) کال څخه‌په‌سوریه اولبنان کښی په کوردی ژبه دادبیاتو خپریدل شروع شول . په‌تورکیه او ایران کښی په کوردي ژبه خپرونی رسماً ممنوع شوي وی . دکوردانو ددې دوسره سیمه ایزبیلتون اوجغرافیوی‌ویش‌په‌اثر کوردی ژبه‌تقریبا په همدومره وړووړو دیا لیکتونو ویشل‌شوې‌ده‌خوبیا هم دغه‌ژبه په‌دوولویو دیا لیکتونوو یشل کیږی :

۱ — کورمانجی ( شمال لویدیځه لهجه ).

۲ — کوردی ( جنوب ختیځه لهجه ).

په کوردی کښی دا سې لهجې هم شته چه ځینې محققین یې ځا نګړې ژبې ګڼی ، لکه دکرمانشاه‌دغورانی کوردانو اوزازالهجې .ډیرمعتبریې‌دکورمانجی دیالیکت دی چه دترکیې ، دعراق په شمال ، دسوریی ، دافغانستان د هرات او دشوروي اتحاد کوردان پرې خبرې کوی .

دکورمانجی دیالیکت‌د سیاسی جغرافیې د ویش په موجوده شرا یطو کښی بیا هم ګرامري خواص یو شان ساتلی دی ، خولغوی پانګه‌یې سره یوشان نه ده . دایران کوردی په‌فارسي لغاتو ، دتورکیې کوردی په‌تورکی لغاتو ، د عربی کوردانو ژبه په‌عربی لغاتو اودنورو کوردانو ژبې د نورو ژبو د لغاتو په پانګه بډای شوې دی .

دکوردی ژبې دوهم معتبر دیالیکت دجنوب شرقی کوردانو پورې اړه لری چه‌دکوردستان په‌مرکزی سیمو ، دعراق په کوردستان ، کرمانشاه اونورو کښی خبری پرې کیږی .

په‌ژیړو هنه کښې چه د کور دی ژبې نوم یادیږی مطلب ورنه د کورمانجی دیالیکت دی ځکه چه‌دعامی تحقیقاتو د پاره‌نسبت‌جنوبی شرقی‌ته زیات‌مساعددی . دغه دیالیکت دپښتو په‌شان گرامری لرغونی خواص ساتلی دی اماجنوبی شرقی د یالیکت‌دمعاصرې فارسی‌په شان د غه خواص له لاسه ور کـړی دی : مثلا دتذکیر اوتانیث نښې ور کښې چندان نه‌لیدل کیږی .

داسم ذات دتصریف مراعات ور کښې نه کیږی د لازمی او متعدی فعل ترمنځه چندان توپیرنه لیدل کیږی او داسې نور .

همدارنګه په کرمانجی کښې د پښتو په‌شان متعدي فعل‌دماضی په‌زمانه کښې دمفعول تابع دی امادانوپیر په‌مقابل دیالیکت کښې نشته اوداسې نور .

**الفباء :** دنورو ملی نهضتونو په‌څنګ کښې د کورد ی ژبې‌لیك په‌نواسمه او شلمه پیړی کښې‌د عربی الفبأ په اساس دلازمو فونیتیکی زیاتوالی او سمون سره انکشاف وکړ ، خوبیاهم ولیدل‌شوه چه عربی الفباء دکور دي ژبې دغږونوافاده نه‌شی کولای نوځکه په دې وروستیو کلونو کښې د د و ولارونه‌دلاتینی الفباء استخدام شوي دي : دلاتینی ـ تورکی الفباء په‌اساس ( په‌دمشق اوبیروت کښې) دوهمه هم دلاتینی الفبأء په‌اساس‌خود انګریزی ژبې د لیك دود د اغیزې لاندې ( په عراق کښې ) .

په‌شوروي اتحاد کښې داوسیدونکو کوردانو د پاره په ۱۹۲۷ کال کښې دلاتینی الفباءپه‌اساس توري جوړشول خو په ۱۹۴۵ کال کښې د شوروي د نورو اولسونو دپاره‌دالفبأپه شان کوردا نوهم‌دروسی الفباءاساس‌دخپل لیك‌دپاره وټاکه .

سګردغه الفباء وې کەدعربی پەاساس دي اوکه دلاتینی د کوردي ژبې دغږونو پوره افاده نەشی کولای ځکەچه پەکوردی کښی علاوه پرغږو نونیمغږي فونیمی همشته چەدتەواو دپاره دتوري تاکل اوتورل ژبه لاسختوي .

دلته د کوردی ( کورمانجی ) یو وړوکی متن د ښکارندوی په دول وړاندې کیږي :

( شمو ـ ) خاص‌نوم دی ، ( کورمانج ) د ( کورد ) پەمعنا اسم ذات‌دی او ( اك ) دتنکیروروستاړی دی (ي) داضافت نخښەدەچەدصفت‌اوموصوف‌ترمنځه همراځی . ( کسیب ) اصلا دعربی ( کاسب ) دی چه په کوردی کښی د (بې وزلی ) معنا ورکوي . ( بو ) کومکی فعل د ماضی صیغه چه مصدر یې په ( بویین ) دي . ( ژه ) د ( له ) پەمعنا چەپه فارسی کښی ( از ) دی . ( آل ) دعربی له ( آل ) څخه اخیستل شوی چەدلته د ( توکم ) معنا ورکوي . ( آ ) دښځینه اسم ذات داضافت نخښه ده ( حسنی ) ( حسن ) تەمنسوبه کلمەده‌چه ( حسني ) دکوردانو یوه تپەده . ( آ ) ددویم حالت نخښه ده .

**ترجمه :** شمو بیوزلی کوردو ـ له حسنی تپی څخه و .

یادونه : پەدغه مقاله کښی علاوه پرنوروماً خذونو له ( مقدماتی فیلالوژی او ( ایرانی ژبی ) داورانسکی تالیفونو څخه زیاته استفاده شوی دکوردي ژبی دګرامر په باب مفصل معلومات دکابل مجلې د ( ۱۳۴۸ )کال په اوګڼو کښی وړاندې شوې دي .

# داردي ژبې :

داردي ژبې داینډو آریایي ژبو هغه ګروپ دی چه دافغانستان دشمال ختیځ په غرنیو سیمو اوبرخه یې دپاکستان پهشمال اودهند د شمال لویدیځ په څو سیمو کښې موجود ې دی .

ددغو ژبودژوند ساحه دهندي اوباختري ژبوترمنځه واقع ده . ددغو ژبو د پیدا ینښت اوپراختیا پهباب دآریایي ژبومحققین بیل بیل دول نظر یات لري .

درابرت برکلي شاوپه عقیده داردي ژبېدپامیري ( چهدباختري ژبوپه ګروپ کښې شاملې دي ) ژبوپه شمول دشرقي آریائي ( هندي ) اومرکزی او لویدیځ آریائي ( باختري اوایراني ) ژبوترمنځه موقعیت لري. دده پهعقیده د دوه ګروپ سره هم دخپلوۍ رابطه نهلري یعنې نهپه هندي ګروپ اونهپه باختري اوایراني ګروپ کښې شاملې دي .

د رابرت‌شاو په‌عقیده پامیري اوداردی ژبی ډیر وخت له نورو اینډو آریایی ( هندي ، باختری ، ایرانی ) ژبوڅخه ګوښه وې نوځکه یې‌دنورو ژبو سره دوسره رابطه نشته اویوتر بله یې په‌خپل منځ کښی روابط سره ساتلی دي .

په‌دې باره کښی بله نظر یه دستین اکانا و ده . دده په عقیده داردی ژبی خصوصاً نورستانی ګروپ د آریایی ژبو ( باختری او ایرانی ) ګروپ سره نسبی خپلوی لری . مګردلته دی ،هم داسی وایی چه ددغه باختری او ایرانی ګروپ سره دداردی ژبوښاخ یونه دی ، بلکی له‌هغوڅخه په دوسره لرغونو زمانو کښی بیل‌شوی دی ، لکه‌څوسره پخواچه تقریباً دهندی ژ بو ښاخ له آر یایی ( باختری اوایرانی ) څخه بیل شوی و .

ګ . ګریرسون ( ۱ ) لوسری دشاو او کاناو دنظریاتو ترمنځه یوه متوسطه نظریه ښکاره کړه په‌دې معناچه دنوموړی په‌عقیده دداردی ژبوښاخ دپامیری‌ژبو سره څنګ په‌څنګ اوپه متوازی ډول دمرکزی ( باختری ) اوپیرسیك ژبو له ونی جلاشوی او ځانګړی انکشاف یی کړی دی ، مګر دغه جلاتوب که څه هم‌ډیر لرغونی دی خودآریایی ژبو څخه دهندی ژبوله جلاتوب وروسته‌د ی .

ګریرسون بیا په خپلو وروستۍ و آثارو کښی‌داسی نظریه ښکاره کړه چه‌داردی ژ بی د ختیځ ( هندی ) او لویدیځ ( با ختری او ایرا نی ) ژبو تر منځه یوه بله ځانګړی در یمه څانګه ده .

---

(1)G.A.Grlerson, LSI LS,VOL. I, 1, calcutta, 1927, p.100

دناروېژې نامتو محقق مارګين سترين ( ۱ ) په‌عقیده ددارد ی ژبود بیلوبیلو ګروپونو وضع په بیل بیل شان‌ده . ددغو ژ بو ختیځه څانګه ( کشمیري ، مایانی تورالی ، بشکاریك اونورې ) چه‌دی ته ( خاصې د ا ردی ژبې ) هم وا یی یقیناً دآریائی ژبود هندی ګروپ سره خپلوي لري .

لویدیځی داردی( نورستانی ) یعنی ( وایګلی ، کاتی ، دا ملی ا و نو ری ) داژبې ځانګړ ی اوسخصوصه وضع لري . مګر په‌دغو ژبوکښې د لر غونوبې غږ ه Consonant ګروپونو موجودیت دباختری اوپیرسیك ګروپ په‌نسبت دهند ی ژ بوسره ددغو ژبو دنسبی خپلوی شاهدی ورکوی .

ددغو ژبو په‌باب که‌څه‌هم دمحققینو نظریات سره یوشان نه‌دی خوپه دغه با ب سره ډیر نژد ی‌دی‌چه‌وایی دار دی ژبی‌دیولړ داسی ژبو مخصوص ګروپ‌دی چه مخصو ص تاریخی فونیتیك اوسورفو لوژیك ګډخصوصیات لری .

او س داسی ګنل کیږی‌چه‌ددار‌دی‌ژبو‌ګروپ‌دآریائی‌ژبود‌یوه هغه دیالیکت په اسا س انکشاف کړی دی د کوم ویونکی چه‌لرغونی آریایان‌اوپه خپله همدغه معاصره سیمه کښې میشته وو .

دځینورو‌ایاتو سره سم ددار دی ژبو سیمه پخواد موجوده سیمی په منا سبت ډیره پراخه وه ،دغه سیمه پخوا دمعاصر افغانستان په شمال ختیځو په غرنیو بر خو اود هند دنیمی قارې په‌ټول شمال‌شامله وه چه بالتیستان ، پنجاب ، لهانده ا و حتی دتبت‌لویدیځه برخه ورکښې شامله‌وه دد غوسیمو په ژبو ددارد ی ژ بو څر ګند ه اغیزه ددغې موضوع د ثبوت یوښه دلیل د ی .

1— G.Mergenstierne, Repo rt on a linguistic mission to Afghanistan, Oslo, 1926, P. 52.

ددار دی ژبوگروپ دهندی ، باختری‌اوایرانی گروپ نه‌جلا اووتلی نه‌دی بلکې دا ددغو ژبو ترمنځه یودریم گروپ‌دی چه د وصل دکړی حیثیت لری چه له‌یوې‌خوادلویدیځو آریائی ژبو گروپ سره تماس‌لری چه‌ورځیرمه یی نو رستا نی گروپ دی اوله‌بلې خوا دهندی ( له‌هرځه زیات د لهندی ، سندی ، پنجا بی ) ژبوسره تماس لری .

بیل بیل ایزوگلاسونه داردی ژبی کله دختیځو آریایی‌ژبوسره‌یوځای کوی اوکله دلویدیځو آریائی سره او دوصل دکړی په‌حیث دغه زنځیر لاسزبوتوی .

ددار دی ژبو طبقه بندی اوکلاسفیکاسیون له‌د‌ی مشاجروا و دنظریاتو په‌کهوډی بنا دی‌لکه‌څرنګه‌چه‌دآریایی ژبو په‌منځ کښی‌ددوی دمقام‌تثبیت‌دی .
( مثلا دنورو داردي ژبو په‌لړکښی دکهوواری ژبی دمقام په باب‌دگریرسیون او دمارگین سترین دنظریاتو اختلاف ) په‌معاصروخت کښی دغه نظریه قوی‌ده چه‌داردی ژبی په دغو راتلونکو څانگوویشی :

الف — لویدیځی داردی ( یانو رستانی ) ژبی .

ب ـ مرکزي داردي ژ بی .

د ـ ختیځې داردي یاخاصی داردي ژبی .

## لو ید یځی دارد ی ژ بی :

دداردي ژبو د غه څانگه ( لو ید یځی د ا ردی ) چه د ( کافری ژبو ) په نامه هم کله کله یادیږی ددوی دژوند ځا ی‌دافغانستان دنورستان‌خاوره‌ده .
په‌دغه گروپ کښی شاملی مشهورې ژ بی دادي :

کاتي ( یا کتائي ) ـ ددغې ژبې دژوند ساحه د کتائي دره ( چه سین یې دپیچ دسین دښي اړخ دی ) دټولو د یالیکټو نو اصلي ټاټوبی او زانګو د ه او درامګیل او کولوم ( د ـ الیګار معاونین ) د سینونو دمنځ سیمه ده .

ددغو سیمو ژبه د کاتي اویدیځ دیالیکت دی . ختیځ یې دباشګل په دره کښې دی چه دباشګل سین په یاسني جریان ( چترال کښې ) د کونړ دسین معاون دی . دغه ژبه هم ددغې درې باشګلي په نامه یادیږي .

**وایګلـي :**

( د ګریرسون په اصطلاح ( وائي ) یا ( وائي آیي ): ددغې ژبې دموجودیت سیمه اساساً دوایګل دره ( دپیچ دسین دکین اړخ معاون سین ) د ه . د پیچ ددرې په نورو وړوسیمو کښې هم ددغې ژبې اویادهغې دخپلوانو د یا لیکټونو څرك لیدل کیږي .

**اشکو ني :**

ددغې ژبې دموجودیت سیمه دالینګار اوپیچ دسیندونو ترمنځ سا حه د ه . کا تي ، وایګلي او اشکوني ژبې یوتربله سره نژ دې خپلوي لري .

**پراسو ني یا ( پارو ني ) ژبه :** ددغې ژبې دموجودیت ساحه دپارون دره ده د کومې سین چه دپیچ دسین کیڼ مرستیال دی . دغه ژبه له پورته یادوشویو درې ژبو څخه له دې کبله ډیره لرې ښکاري چه په هغې کښې دیوې غیر اینډو آریائي غالباً مغلو بې (سوبستراټ)ژبې څرګند عناصر موجوددي .

**دامیلي ژبه :**

دغه ژبه دنورستاني او داردي مرکزي ژبو ترمنځه دوصل د کړې صفت

لري او کیدای شي چه دځینو زیاتو خصوصیاتو له مخې په مرکزي داردي ګروپ کښې شامله وګڼله شي .

دهغې دموجودیت ساحه د (داسیل) دره ده چه دچترال دسین په ښې خوا کښې پرته ده .

## داردي مرکزي ژبې :

په دغه ګروپ کې ډیرې او ډیرې بیلې بیلې ژبې شاملې دي چه تقریباً له بیلو بیلو کورنیو څخه دي .

هم په جغرافیوي لحاظ اوهم دفونیتیکي اوسورفولوژیکي خصوصیاتو په اساس دغه ژبې په د وو څانګو ویشل کیږي :

الف ـ شمالي څانګه.

ب : جنوبي څانګه .

شمالي څانګه له دوو ژبو یعنی (کهووار) او (کلیشي) څخه عبارت ده چه تاریخي او ګمنت Augment (۱) لري .

جنوبي څانګې بیخي بیل بیل ډولونه لري .

په هغه کښې ګواري ، شوماشتي ، وته‌پوري او دهغو خپلوان دیالیکتونه او ژبې کلانګلي او ننګلاسي همدارنګه دپشه ئي دیالیکتونه‌اوتیرایي شامل دي .

---

۱ـ دکلمو دمختاري چه دکلمې له ریښې څخه نه وي او ورسره یو ځای شوي وي لکه په پښتو کښې (اچول، اغوستل) چه په (وابه‌چوم ، وابه غوندم) کښې ئې بیلتون ددې نخښه ده چه دکلمې جزء نه دي .

Lateral consonant ځینې فونیتیکي خصوصیات خصوصاً دژبې یوا ړخیز صامت دغږونو (دتیرائي په استثنا) موجودیت دغه ژبې سره یو کوي .

**پشه یي :**

داد یو لړ سره لرې وتلو دیالیکتونو(اسکان لرې دژبو) یوه ځانګه ده چه په هغې دنورستان په جنوبي برخو الیشینګ، الینګار دسیندونو په لاندنیو برخو ، په دره نور، د مزارد رې په کینې ا رخ ، د کونړ دسین په ځینو نورو غاړو کښې لکه د کاپیسا په الله سای، درنامه، بولغین، ځینو نورو وړو وړو سیمو کښې وریاندې خبرې کیږي .

**شوماشتي ژبه :**

دغه ژبه دشوماشت ددرې په پاسنې برخه دمزار درې په کینې اړخ د کونړ دسیند دښي سرستیال سیند په غاړه خپره ده (دشوماشت ددرې په لاندینې برخه کښې پشه یي مروجه ده) .

**د ننګلامي دیالیکتونه :**

دغه دیالیکتونه چه اوس مړه دي (او دشوماشتي سره یې نسبي خپلوي لرله) په هغو دننګلام اوسیدونکو خبرې کولې او د پیچ او وایګل دسیندونو د یو ځای کیدلو په سیمه کې ژوندي وو .

دامې ښکاري چه ددغو دیالیکتونو سره ګلانګلي دیالیکتونو (یاژبې) زیات ګډ خصوصیات لرل (ګلانګل) د پیچ دسیند په ښي اړخ کښې چیرته چه دوایګل سیند ورسره یوځای کیږي پروت دی .

### وټه پوری ژبه :

په وټه پوراو ګټر (ګټرګل) کښې یعنې د کونړ په سیند د پېچ دسیند، دتونیدلو دځای نه لږ څه پاس دغه ژبه ژوندۍ ده .

### ګواری ژبه :

(ډېر محققین دغه ژبه د ګوار باتی په نامه یادوي) مګر خپله دژبې دخلکو په اصطلاح (ګواري) ژبه ورته ویل کیږي . د (نرساتی) په نامه هم یادیږي دغه ژبه دچترال په سیمه کښې دباشګل دسینه په کښتني برخه کښې مروجه ده .

شوماشتی ، وټه پوري ، ګواري ژبې او د ننګلامی او ګلانګلی دیالیکتونه یو تربله سره ډیر شریك خصوصیات لري او په سر ګزي دار دي ژبو کښې یوه ځانګړې ځانګه ده . ددغې ځانګې بوشمیر دیالیکتونه د(دیګانو) په نامه یادیږي .

### تیرایی ژبه :

دغه ژبه دجلال آباد په جنوب ختیځ د(ګوټ) په دره کښې د پښتو ژبو وګړو ترمنځه ژوندۍ وه خواوس سره او یوازې منفرد لغات یې دخلکو په یاددي دتیرایی ژبې ویونکو د کونړ دد رودنسورو دارد یا نو د اکثریت په شان په دوه ژبوخبرې کوله چه دویمه ژبه یې پښتووه .

### کلشی ژبه :

دغه ژبه دچترال او باشګل دسیند و نو د یو ځای کید لو په سیمه کښې د (بوسبوریت) (ګلشګوم) او(بیرار) دچترال په جنوب لوید یځ کښې ژوندۍ ده .

### خو واری ژبه :

دغه ژبه چه د(چترارۍ) (چترالی) همدارنګه (ارنیه )په نوم ونویادیږي دچترال

ددې په پاسینۍ برخه کښې ژوندۍ ده.ددغې ژبې یوا برشمیرویونکي په‌شوروي بدخشان کښې هم موجوددي .

## ختیځې داردي (یاخاصې داردي)ژبې :

دغه ژبې په خپل وارپه دریوڅانګو ویشل کیږي :

لومړۍ څانګه-دغه‌له هغو داردي ژبو څخه‌عبارت‌ده‌چه د پنجکوړې ،سوات او اباسین دسیند ونو په غرنیو بر خو کښې چه‌په (کوهستان)سره‌شهرت‌لري‌ژوندۍ ده ددغې څانګې اساسي ژ بې دغه دي :

### بشکاریك :

دغه ژبه دیوه د یالیکت له‌مخې ( دیرۍ) هم نومیږي، دغه‌ژ به د د بر په کوهستان د (پنجکوړې دسیند په پاسنۍ برخه کښې ) ژوندۍ ده .

### کارویژبه :

دغه ژبه دسوات دسیند په غرنیو برخو کښې ژوندۍ اودبا شکاریك ژ بې سره ډیر ه نژ دې ده‌دانژ دیوالي دومره زیات دی چه عملا باشکاریك اوګا روی د دیوې‌ژبې‌دومښاخونه‌دي. ددې‌ژبې‌دژوندساحه‌دباشکاریك په‌لویدیځ کښې‌واقع ده.

### توروالي‌ژبه :

ددې ژبې دژوند ساحه دسوات او پنجکوړې د سیندو نو په غرنیو برخو کښې دګارویې نه په لاندینۍ سیمه کښې‌پر ته ده .

### مایاني ژبه :

ددې ژبې‌ساحه داباسین‌په غرنیو برخو کښې‌اودباسین اودسوات‌دسیند ترمنځه له یوې خوااو له بلې خوا دا باسین او د جیلم دبیلتون‌نه تر یوځای کیدلو پورې

په د غوسیمو کښې د غه ژبه ژوندی ده .( ما یا نی ژبه ) د هغی ژبی د ویونکو له خوا نومیږي اوزیات شهرت په ( کوهستانی) ژبه لري مایانی ژبه په یولږ دیالیکتونو ویشل کیږيچه دهغوپه جمله کښې یو مشهور یې (کانیاوالی) نومیږي چه د ( تانګیر) په (بانګاري) نومی کلی کښې ژوندی دی . دغه کلی د شینې ژبی په چا پیر یال کښې پروت دی .

## شینې ژبه :

داژبه د یولږ دیالیکتونو مجموعه ده چه یو تر بله سره لږ شوي او دژوند ساحه یې اساساً په کشمیر کښې د ګلګیت ،تانګیر ،چیلاس، دراس اوداهانو څو ځایونه دي .

## پهالوری یا ( پالولی ) ژبه :

په دغه ژبه دچترال په ختیځ کښې دخوړووړو(شریت ، بیړي ، باشګل، ګهوس ، ګومادانو )اوسید ونکی خبرې کوي .دژبنو خصوصیا تو له مخې د غه ژبه شینی ژبی ته ډیره نژدې ده .

## کشمیری ژبه :

ددې ژبې دژوند ساحه کشمیر دی چه دزیاتشمیر وګړو ژبه ده .

## ددارد ی ژبو وګړی :

دداردي ژبو دویونکو شمیر په یقینی ډول نه دی هرګند .دا ټکل له مخې یې شمیر دريسلیونو وګړوته رسیږي چه یو ازی تقریبا دوه ملیو نه یې (دهند د ۱۹۶۱ کال داحصایی لهمخې ) په کشمیري خبرې کوي . داټکل لهمخې په ګهوواری( ۱۲۱) زره په پشه یې (۱۰۰) زرهپهشینی (۷۰) زره په کو هستا نی

(۶۷) زره په وايګلي - (۵) زره په پرا سوني - (۲۸۰۰) په پهالوري(۱۰۰۰) تنه خبرې کوي .

دنورود اردي ژبو ويونکو احصائيه نه ده ا تکل شوې .

دمذهب له مخې دد ارد يانو اکثريت مسلمانان دي دنورستان او سيدونکود شلمې پيړۍ په سر کښې اود کشمير خلکو په څوا رلسمه پيړۍ کښې اسلام منلی دی . په کشمير کښې په سلو کښې (۷۷) خلك مسلمان(۲۰) بود ايان اود(۱/۵) سکان دي.

## ددارد ی اصطلاح :

د( دار دي) اصطلاح له(دارا ده )څخه اخيستل شوې چه په سنسکريټ کښې دغه اصطلاح ډيره لرغو نتيالري(هم په جغرافيوی آثارو اوهم په حماسي نژادی قصايدو کښې)د هغه اولس يااولسونو دپاره استعمال شوی چه هغه وخت دهند دنيمې قارې دشمال غرب په سيمو کښې اوسيدل .دغه اصطلاح لرغونو رخانو او مؤلفينو هم استعمال کړې ده .بطليموس د دارادريی (۱) سترابو ن دديردا يی (۲) پلينوس دد ار دا( ۳) اوداسې نورو په همدغه شان ورته کلمو ذکر کړی دی .

دهندی لرغونو مأخذ ونود روا ياتو له مخې داردی او لسو نو په تحريف شوی آريا يی ژبه خبرې کولې .

له دې روا يا تو څخه داسې معلومېږ ی چه دوی دآر يايي ژبو په کوم ديا ليکت خبر ې کولې چه وروسته دغه ديالیکت په د ياليکتونو اوبياپه ژبو وا وېښت . له

(1)Daradria (2)Derdai (3)Darda

دغه ځایه داهم معلومیږی چه ددارډی اوهندی ژبو ترمنځه ښه پیلتو ن موجو دو چه یادو نه یی په هندی لرغو نو مأخذ و نو کښی شوې ده .

دمورخینو په عقیده دا باسین دحوزې په مرکزی بر خو کښی دقبل المیلا د د زرو کلو نو په منځ کښی هغه ملیت یا ملیتونه تشکیل شول چه په دارډی ژبو یی خبرې کو لی . د ځینو محققینو لکه ګریرسو ن اونورو له خواددارډي په ځای ددغو ژبو ګروپ ته د پیشاچه یا پیشاچی (۱) اصطلاح منل شوې چه داهم دهندی لرغونو ماخذ ونو په استناد ده . دغه اصطلاح دیوې پرا کا ریتی ژ بی نو م و چه دتاریخی فونیتیک له مخی کیدای شوه دیو لړ دارډي ژبو نیا و ګڼل شی .

مګر دهندي تاریخی مأخذ ونوله مخی دغی اصطلاح یوه بله معنا هم لرله دغه اصطلاح دهرې غیرآر یائی محاوروي ژبی په مقا بل کښی استعمالیدله چه دآریایی ژبو دمنلو تر وخته په موجوده وه او له هغی و رو سته ددارډي اولسونو د پاره محققینو د دغی اصطلاح استعمال پریښود .

## یوه تاریخی کتنه :

دمورخینو په عقیده هغه خلک چه په دارډي ژبو یی خبرې کولی داباسین دحوزې په سر کزي برخو کښی یی دقبل المیلاد د زرو کلو نو په نیما یی کښی ګرو پونه تشکیل شول . مورخین دیونانی مورخ هیرودیت د(دادیك) د کلمی سره ( دارډي ) ته سمون ورکوي . د کوم هیواد چه د ( ګند ها را ) د شمال

(1) Pishacha, Paisachi

په غرونو کښې و ( ۱ ) ( دادیك ) او د ګندهاریانو ، اپارتییانو ( اپرید یو ) او ستا ګید یانو ( خټکو یا سیټکو ) دقبایلو په شمول یې د هخامنشیانو د امپراتورۍ او م سالیاتي ولایت ( ساتراپ ) تشکیل کړی و. داردیانو ( دادیکانو ) د ګندهاریانو سره د هخامنشیانو په لښکر کښې یو ه شریکه پلټن جوړه کړې وه او یو شریك سر لښکر یې درلود .

دا چه ( دادیکان ) له ( دارد یانو ) څخه عبارت دي بل شاهد یې دا و چه د کشمیر او هغه ته دور څېرمه غرنیو سیمو او سیدو نکی هم ( داد یکان ) وو چه نن په ( داردي ) قبایلو کې شامل دي ( ۲ ) .

## دداردی ژبو څېړنه :

دداردي ژبو علمي څېړنه عملاً د ( ۱۹ ) پېړۍ په ( ۳۰ ) کلونو کښې شروع شوه چه په اتفاقي ډول دداردي ژبو په باب د سیاحینو له خوا په اینو ګرانیکو ( تو کم پېژندنو ) او جغرافیوي آثارو او همدارنګه د عیسوي مبلغینو په

---

(۱) - یو لړ اشخاص خیال کوي چه ( دادیك ) د ( تاجك ) سره سمون لري مګر دا خبره تاریخي سندونه نه لري . ځکه نو دا نظر په هیڅ سمه نه ښکاري . په دې باب دې دما کسي ګلیمبورګ اثر ( افغانستان دمنځنۍ آسیا په بحراني مرحله کښې ) دویانا د ( ۱۹۶۶ ) کال چاپ ( ۱۲۳ ) مخ و ګورئ چه تاجك څوك دي ؟

(۲)- په دې باب د زیاتو معلوماتو له پاره ( دپاکستان اولسونه ) د ګانګوفسکي تالیف د شوروي د علومو داکاډمۍ د ( ۱۹۱۳ ) کال خپرونه ( ۵۸ - ۵۹ ) مخونه و ګورئ .

خپرو نو ( چه دتېرې پېړۍ په‌لو سړ یوشلو کلو نو کښې دانجیل یوه بر خه په کشمیر ی لو سړې په نگارې الفباء او بیا په ( ۸۰ - ۹۰ ) کلونو کښې په عربي الفباء) کښې دداردي ژبو لوسړنې شوا هد چاپ شول .

په دې باب لوسړنې آثار ډېر بسیط وو چه په هغو کې دیوې یوې ژبې یاد ژبودځانگو په باب ابتدایي معلومات ، لنډ قاموسونه، گرامري لنډمعلومات او د هغو دژوندجغرافیوي ساحې ښوو ل کیدې .

دد غې دورې آثار او س یوازې تاریخي ارزښت لري چه دژبوعلمي بریدونه نه وو دړول شوي او اساسي څیړنې نه وې شوې او ډېرې ژبې لانه‌وې څرگندې شوې او دیو شمیر ژبو د یا لیکتونه لاد ځانگړو ژبو په حیث پېژند ل کیدل.سربیره پر دې دتراسکر یپسیون سمه افاده او دفو نیتیک درست جوړښت هم موجود نه ؤ . په هر صورت ددغې دورې آثارود راتلونکو علمي پلټنو او څېړنو له پاره لاره خلاصه کړې وه او دمحققینو دپاملرنې دجلبولو سبب وو.

دداردي ژبو په باب د ( ۶۰ - ۸۰ ) کلونو آثار نسبتا په لو ړه سویه وو ، په دغه دوره کښې د کشمیري ژبې داو لسي ادب ( فو لکلور ) دمتنونو خپر ید ل شرو ع شو ل .

دداردي ژبو په باب ددغه وخت په آثار دترومپ، راورتي، او ستین، کیمپیله ایلمسلي ، لینتر ، بیشون ، تراین ، نو پلیس ، بر هارډ او نو رو محققینو له آ ثا ر و څخه عبا رت دي .

د همدغو مو لفینو په آثارو کښې د نورو اینډو آریایي ژبوسره‌دداردي ژبوژبنۍ پرتلنه اومقایسه شروع شوه . ددغې مقایسې ابتد ا یي پلا ن په دې ډ و ل و :

۱ - یو معنا لرونکي ستن د تولو ژبو په عبارتي قالبونو کښې اچول او سره مقایسه کول.
۲- په ټا کلي ژبه کښې د هغې داصلي فولکلوري آثار و وړاندې کول .
۳ - معیاري لغات او جملې د ژبو دواحد په ډول په هغو کښې وړاندې کول .
ددارد ي ژبو دبشپړې مطالعې او د هغود کاملې کتنې په باره کښې جارج اتر هام کرير سون ډیر لوی لاس لري . ده دخپل اثر په اتم ټوك کښې د افغانستان په دارډي ژبو هم بشپړه رڼا اچولې او د هغولغات یې دنورودارډي ژبو دلغاتو سره په یوه مقایسوي قاموس کښې وړاندې کړې دي .
ده په دې باب د تیرې پیړۍ په ( ۹۰ ) کلونو کې په خپرونو پیل وکړ ا و زښت ډیر کتابونه ، علمي مقالې او آثار یې خپاره کړل .
د نورستاني ژبو په باب درابرټ سون کتاب ( د هندوکش کافري ) هم بشپړ ارزښت لري چه د یوه سیاحت په ترڅ کښې ی دغه ژبې مطالعه او بیا یې دنورستان دخلکو دنژاد او ژبې په باب دغه کتاب خپور کړی دی .
دشلمې پیړۍ په سر کښې ددارډي ژبو یولړ نور محققین منځ ته راوتلي دي چه د هغو په جمله کښې ستین کونوف د کرير سیون همکار ښه شهرت لري. ددغو محققینو په جمله کښې بل تو ماس گریهیم بیل دی چه د شینې ا و کشمیري ژبو په باب ښې خپرونې لري .
په ( ۱۹۲۴ ) کال کښې د ناروې د کلتوري مقایسوي اینستیتوت نا متو ناروېژي محقق مارګین ستر ین افغانستان ته راولیږ ه چه ددارډي ژبو بشپړه مطالعه و کړي . ددغه محقق آثار ددغو ژبو په باب د محققینو او دعلاقه لرونکو له پاره

ډير ګټور او مفيد ثابت شول .

ده وکړای شول چه ددار دي ژبو بشپړه طبقه بندي تکميله اودا ينهو آريا يي ژبو په منځ کښې ددوی ځای داسی تثبيت کړي چه دسنلو وړ وي . خصوصاً دپشه ئی په باب دده بشپړ ګرامري او فو نيتيکی تحليلونه او کامل قا موس ډير ارزښت وړ دي .

دروانی پيړی په ( ۵۰ - ۶۰ ) کلونو کښې يولړ نورو محققينو د( داردي ) ژبو په مطالعه پيل وکړ چه د هغو په جمله کښې يوجرمنی عالم ګيورګ بود روس ديادونی وړ دی چه دوته پوری ګرامر او قا موس ، دپشه ئی ګرامر او قاموس او داسی دنورو وخو دار دي ژبو په باب يی ښه آثار خپاره کړي دي .

په ( ۱۳۴۰ ) کال کښې د کابل دادبياتو په پو هنځی کښې دافغانستان د ژبو اطلس جوړول شروع شول چه په هغه کښې ددار دي ژبو بريدونه هم طبعاً ملحوظ دي . همدارنګه په ( ۱۳۴۰ ) کال کښې ښاغلی دوريا نکوف پشه يی او د ( ديګانو ) په ګروپ کښې ښه مطا لعه کړې او ز يات سواد يی ورکښې را ټول کړي د ي .

دنورستانی ژبو په باب د ا . ل . ګريون بيرګ له خوا راټول شوی او خپا ر ه شوي معلومات هم ډير په زړه پورې دي .

ددارد ي ژبو په باب دډيرو محققينوله خوا څيړنی شوی او خپرې شوي چه دلته يی يو څه مهم ټکی وړاندې شول .

ددغو ټولو څیړنو لنډیز د ( داردی ژبی ) په‌نامه کتاب کښی وړاندې شوی چه مولف یی د .ی ایدیلمن دی داکتاب ددوریانکوف په مسئو لیت د شوروی دعلومو اکاډمی دآسیایی اولسونو داینستیتوت له‌خوا په ( ۱۹۶۵ ) کال کښی په مسکو کښی چاپ شوی دی اوسا هم له‌دغه کتابه زیاته استفا ده کړ ی‌د ه زساداستفادې‌نورماخذونه هم ځای په ځای‌ښوول شوی دی.

## داردی ژبی داینډو آریایی ژبویوه څانګه :

دژبو یوتربله‌خپلوی باید ددوی دفونیټیک،ګرامر او دلغت د خپلوی‌په‌رڼا کښی ولټول شی داردی ژبی‌په‌دغو ریو اړو برخو کښی یو لړ دا سی ځانګړی خصوصیات لـری چه ددوی دنسبی خپلوی شهادت ورکوی .

### فونیټیک :

دداردي ژبو یولوی خصو صیت دا دی چه یو لړ صا یت غنوی ( ۱ ) غږونه لری . که‌څه‌هم ددغو غنوی صایتو غږونو موجودیت په ټو لو دا ردی ژ بو کښی یوشان نه‌دی ـ مثلاپه ځینو ژبو لکه :په (داسیلی،اشکونی،ګوواری) کښی دصایتو دغنی سبب دادی چه‌غنه‌یی دبی غږه ( صامتو ) ترمخه واقع‌وی په ځینو نورو کښی دغه غنه ډیره کمزوری ده .

غنه معمو لا دکلمو دپای ( د یرلږ دکلمو دمنځ )په‌هغو صایتو کښی وی چه‌تلفظ یی واضح نه‌وی ( لکه‌په‌شینی، پهاً لوری او نو رو کی ) . په ځینو نو روژ بو کښی‌غنوي صایت‌په‌یولړ هغو ټا کلو کلمو کښی دایماً مو جو د وی په کومو کښې چه‌دمعنا لرونکی کلمی د جوړولو خصو صیت لری یعنی په د غو

(1) nazalized....

کلمو کښې که صایت په غنه سره افاده نه شي د کلمې معنا اوړي . ( دغه ډول غنه په یولړ هندي ژبو کښې هم شته‌اود پښتو یوازې په ( ڼ ) موجوده د ه ) .

دا ردي ژبو دختیځې څانګې ( کشمیري او کوهستاني ) او د مرکزي ګروپ دیو لړ ژبوبل ګډخصوصیت دادي‌چه دفنو لوژۍ له‌مخې‌د (ي ـ معروفه ) او (ې — مجهوله ) توپیرنه لري .

دبې غږو ( کونسونانت ) اوازونو په‌باره کې‌دتړلو ( ۱ ) مخرجونو د غږونو ددرې لړیوموجودیت ددغو ژبو یوه خاصه ده چه د غه لړ ی له غږ یز و ګونګو تنفسي او ګونګو غیر تنفسي مخرجونو ( ۲ ) څخه عبارت دي . په آریا یي بیلو بیلو ژبو کښې‌غیرله‌هندي ژبود کوردي، پراچي‌اودبلوچي‌دلویدیځ دیالیکت نه پرته دتنفسي اوغیر تنفسي تقابل خاصه نه‌ده .

په دې باره کښې نورستاني ژبې ( اشکونې ، وایګلي ، کاتي او پراسوني ) اوپشه‌یي ژبه استثنادي چه‌تنفسي غږونه نه‌لري . په‌نورستاني ژبو کښې دتنفسي مخرجونو له‌منځه تلل د (س . خ . ه ) دلرغوني‌بدلون سره سمون لري ،

چه په لرغو نو عصر ونو کښې‌په‌باختري او ایراني ژبو کښې لید ل کیږي او دا تا ریخي‌بدلون‌ددې یوه‌نخښه‌ده‌چه‌دغه‌لویدیځې (نورستاني او پشه یي ) ژبې له‌هندي څانګې څخه باختري اوایراني څانګوته زیاتې نږدې دي .

ددار دي ژبو بله فونیټیکي لویه خاصه داده چه په دوی کښې د سیربیرال ( ۳ ) ( ځ ، ټ، ڼ، ډ ، ړ ، اونورې‌غږه‌اوغیرسیریبرال‌بې‌غږه‌مخرجونه

1—Obstrued.

2 —Voiced, unvoiced, aspirate, unvoiced unaspirated.

3 —Cerebral.

لکه په تهو لو هندي او ځينو باختري ژ بو ( لکه پښتو) کښې مو جو د دي مگر دځينو سير يبرال اوغير سيريبرال مخرجونو دتقابل موجوديت په د غو ژ بو کښې مثلا ( ځ ، چ ، ج ، ژ ) دغه ژبې د هندي ژ بو په نسبت با ختري ژ بـو تـه نژ د ې کوي .

همدار نگه د ( ځ ) غږهم چه په دار دي ژ بو کښې موجود دی اوپه هندی گروپ ژبو کښې نشته دا يوبل دليل دی چه د ا ر د ي ژبې د هندي گروپ په‌نسبت مر کزي آريائی ( باختري ) ژبوته نژ دې دي .

په دا ر دي ژبو کښې د د ووا ويلونو ( ۱ ) تر منځه همد ا رنگه‌د کلمو په پاي کښې دغږيزدبې‌غږه کولو قانون چه‌لا په منځنيوپيريو کښې‌په (پايشاچې) کې‌موجو د وواونن هم په‌دغو ژ بو کښې لکه(تبيپ،ربا پ ) مـو جو د دی او په هندي ژبو کښې نشته اوپه‌مر کزی آريايی ( با ختري لکه پښتو ) او ا يرانی ځينو ژبو کښې‌ليدل کيږي‌دا پيښه هم‌داردي‌ژبې باختري‌ژبوته نژدې کوي .

ددارد ي زياتو ژبوبل لوی‌خصوصيت داد ی‌چه د (ي ـ مجهوله اومعروفه ) تر منځه د سراو پای بی غږه توری په فشار سره سخت اداء کيږی . چه دې ته پلا تاليزاسيون ( ۲ ) وائی دغه خصوصيت د باختری په پاميری ژبو کښې هم موجودد ی او په هند ی گروپ ژبو کښې نشته . دداردی ژبوپه يولړ ( خصوصاً په نورستانی‌اوهغوته په‌ورځيرمه) ژبو کښې‌په‌زغرده تلفظ کښې د (ن ـ راونې + ړ) ترمنځه بدلون اوريدل کيږي دامحکه چه په خيشوم کښې ا دا کيږی ا و غنه

1 —Intervocalic.
2 —palatalization.

ورکښې زیاته وی مثلاداشکونې په ( انیك ـ اړیك ـ ستا سو ) کلمه کښې همدارنګه په پراسونې ، ګواری او نوروکښې د ( ړ ) دغږ په ځای ( ډ ـ ټ ) اوربدل کیږی .

په داردی ژبوکښې اصلا د ( ف ، خ ، غ ، ق ) غږونه نشته . دا غږونه یوازې په اخیستلو شویوکلمو کښې اوربدل کیږی . د ( ف . خ ) دغږونو په بدل کښې اکثره د ( پ . پهه ) او ( ك ـ کهه ) غږونه اوربدل کیږی . د لرغونو آریایی ( ت ـ ر ) ( ۱ ) په داردی یولړ ژبو کښې ساتل شوی په ځینو کښې په ( چ ) په ځینوکښې په ( ش ) اوښتی دی او ډیر لږ د ( ت ) په غږ ( په هندی ژبو کښې ) پاتی دی .

مثلا : سانسکریت ( پوتره ـ زوی ) ، هندی ( پوت ) ، وایګلی ( پیوتر ) ، کلشی ( پوتر ) ، کشمیری ( پوتر ـ په مجهول واو ) ، شینی ( پوش ) ګاروی ( پوخ )، مایانی ( پوچ ) .

دګواری ، وته پوری ، شوماشتی اوپاشکاریك ژبوپه ګروپ کښې د کلمو د سرلرغونی ( ت ـ ر ) غږ په اړخیز ( ل ) چه ( د خولی په یوه اړخ کښې ادا کیږی ) بدل شوی چه دې ته ( لاتیرال ) ( ۲ ) مخرج وایی ، چه د محققینو له خواپه ( ه ـل ) ( ۳ ) ورنه تعبیرشوی دی ـ لهدغه غږه په پشه یی کښې تعبیر په ( ث ـ ل ) شوی دی . لکه لرغونی آریایی ( بلکی اینډو اروپا یی ) تری ـ

(1)tr

(2)Lateral

(3)HL

درې ) ، په پشه يي کښې ( ثلی ) ، ګوا ری ( هلې ) ، وته پوری ( تا ) ( هله ) , شوماشتی ( هیله ) ' ننګلاسی ( شلی ) ، باشکاریك هله .

همدارنګه دسانسکریت ( پوتر - زوی ) کلمه په باشکاریك کښې (پوهله) پشه یی ( پوټل ) ' ( پوتر ) ، وته پوری ( پور ) شوماشتی اوګواری ( پوهل ) .

دنورستانی ژبو د ( داسیلی په‌شمول ) یوخصوصیت داد ی‌چه دایندو اروپایی ژبو د ( ك ) غږ د ( خ ) په‌غږور کښې او ښتی دی . مثلا د سا نسکریت شا کهه ( ښاخ )( ۱ ) کاتی ( ښاو ) وایګلی او پراسونی ( ښاو ) اشکونی ( ساو - ښاو ) همدارنګه سانسکریت ( کیشه - ویښته) (۲) وایګلی (کیخ) ' دامیلی (کښ)، پراسونی ( ایش - کیخ ) ( ایش - خوله ، کیخ - ویښته ) د ( بریت ) په‌معنا، کاتی ( کیخ ) . داسی ښکاری چه د ښتو په ( کوڅی ) کښې هم دغه ریښه موجوده ده .

## مور فو لوژی :

دمور فولوژی په‌ساحه کښې کیدا ی شی چه‌ددارد ی ژبولنه خصوصیات په راتلونکی ډول‌وړاند ی شی .

په‌داردی زیاتو ژبو کښې مذ کراومؤنث دواړه موجود د ی‌چه په اسم ذات او صفت کښې دغه‌ژبې دمؤنث له‌پاره د ( ي - معروفه ) نخښه‌لری . ددغی خاصی موجودیت له‌یوې خوا دداردی ژبو یوتر بله دخپلوی لو ی ثبوت دی او له بلی خوا دغه ژبې د هندی ګروپ سره نژد ی کوی .

دمفرد اوجمع کتیګوری د هندی ژ بو په شان دګرامری حالت د کتیګور ی سره نژد یوالی لر ی .

په داردی یولړژبو کښې اسم ذات جمع اومفرد دبیلتون له پاره کومې خاصې ګرامری نخښې موجودې نه دی . جمع او مفردیې یوازې له قرینې (ګونتیکست) څخه څرګندیږی . دغه خصوصیت په نورستانی او یولړنورو ژبو (وایګلی ، پراسونی، دامیلی ) او په مرکزی ګروپ :

(شوماشتی، تیراهی، ګهوواری- غیرذیروحو، کلشی- داسم ذات په یوه خاص ګروپ کښې ) اوپه خیځ ګروپ (توروالی، مایانی په یوه خاصه ډله اسمای ذاتو کښې) کشمیری (په هغو اسمونو کښې چه په بی‌غږه‌پای ته رسیږي) لیدل ګیږي چه یادحالت د وروستا ړو په مرسته او کله دپامیري ژبو په شان دخدمتی کلمو په مرسته یې دجمع افاده کیږي لکه د( کیلی، ګیله- تول، واړه) خدمتی کلمه دجمع معنا افاده کوي .

د ګرامري حالتونو افاده‌دنوروا کثرو اینډو یورو پی ژبو په شان دخدمتی وروستیو کلمو (پوسلی لوګ) په‌مرسته کیږي .

دصفت په برخه کښې داردي ژبې دمؤنث له پاره د(ي - معروفه) وروستاړي لري او مذکر په نورو مختاړویا وروستاړو (افیکسونو) سره افاده کیږي .

په زیاتو داردي ژبو کښې صفت هم جنس (مذکر ، مؤنث )هم جمع اومفرد او هم ګرامري حالتونه لري البته ټولی ژبې په دې باب سره توپیر لري .

دپښه یې ددیا لیکتونو څخه پرته په‌نورو داردي ژبو کښې دصفت درجې (مقایسوي ، مبالغوي) تقریباً نه لیدل کیږي .

داردي ژبې معمولا د قید له پاره خاصې صیغې نه لري . دا وظیفه غالباً صفت او ډیر لږ اسم ذات اجراء کوي .

دار دي ژبې دشخصي ضميرونو په برخه کې يوازې دمتکلم او مخاطب دجمع سفرد او جمع ضميرونه اري دغايب ضمير وظيفه داشارې اسمونه اجراء کوي .

اشاري ضميرونه دواتن له مخې حتی ترپنځو درجوپورې ضميرونه لري. په داردي زياتو ژبو کښې (دويدي او منځنيو هندي ژبو په شان) دمتصلو خپلوا کو (۱) ضميرونو استعمال زښت ډير دی .

دشمير په برخه کښې د(کشميري نه پرته) تولی داردي ژبې يوشان دي په دې معنا چه په شمير کښې د(شلگونو)سيستم لري . مثلاء (ديرش) په(شل اولس)، (پنځه ديرش ) په (شل اولس او پنځه) ، (څلويښت) په(دوه شلی) ، (پنځوس) په (دوه شلی اولس) او داسې نورو افاده کيږي . په کشميري کښې د (شل) په ځای (لس) استعمالوي .

دداردي ژبو دفعل په برخه کښې يوشی چه دمحقق له پاره زيات په زړه پورې دی هغه دپښتو په شان اير گاتيف سيستم دی په دې معنا چه په داردي زياتو ژبو کښې ماضي متعدي دمفعول تابع ده نه دفاعل . په شينی ژبه کښې دغه سيستم نه يوازې په ماضي متعدي بلکې په متعدي حال کښې هم معمول دی . مگردار گاتيف سيستم په بيلوبيلو ژبو کښې يوشان نه دی د گرامري حالت له مخې يو تر بله سره تو پيرلري.

---

(1)Inclitic

# مرکزی داردی ژبی :

داردي ژبې د محققينو له خوا په دريو څانګو ويشل کېږي :

۱- مرکزي داردي .

۲- نورستانی يا ويديځې داردي ژبی .

۳- ختيځې يا خاصې داردي ژبې .

ختيځې يا خاصې داردي ژبی دلته نه څېړم چه د هغو موجوديت زمونږ په هيواد کښې يقيني نه دی .

دلته لومړی مرکزي داردي ژبی او بيا نورستانی ژبی څېړل کېږي . مرکزي داردي ژبی له پشه يی، تيرايی، وته پوری، ګواری،شوماشتی،خواری او کليشی څخه عبارت دي . د کليشی او خواری موجوديت هم دلته يقيني نه دی ځکه يی له څېړلو څخه تيرېږم . نوری ژبی دلته وړاندې کېږي :

دلته په هغو داردي ژبو لنډه رڼا اچول کېږي چه د پښتونخوا په خاوره کښی

ژوندی دي . ترټولو دمخه دلته دافغانستان یوه لرغونی ژبه پشه یی وړاندې کیږي :

**پشه یی ژبه :** په سرکزي ګروپ کښی ځای لري چه په دغه ګروپ کښی ورسره ګاواري، وته پوري ، شو ماشتی، تیرایی ، کلشی او خواري ژبی شاملی دي . پشه یی د خپل جغرافیوي موقعیت د تشتت له سخی په څلورولهجو ویشل شوې چه هغه دادي :

۱ـ شمال لویدیځه لهجه ( ګلبهار او شوتل) .

۲ـ داوزبین ددرې لهجه (دلغمان لویدیځ اوالیشنګ ددرې لهجه) .

۳ـ دتګاواو نجر او لهجه .

۴ـ دالینګار ، کونړ او دپیچ ددرې لهجه (۱)

لویدیځو محققینو هم پشه یی یا په دوو یا څلورو دیا لیکتونو ( یا ژبو )ویشلی ده . ددغو دیا لیکتو نو ( یا ژبو ) یو تر بله تو پیر له ګرامر او لغوي خوا څخه زیات په فو نیتیك کښی مو جود د ی. په ژبه کښی ددغی ګډودی سبب له یوې خوا دادی چه دلیك ژبه نه ده ،لیکلی آثار نه لري او دغی ژبی ته خد مت نه د ی شوی . له بلی خوا پشه یان ډیر ګډوډ او په بیلو بیلو سیمو کښی ژوند کوي چه دغه سیمه ایز بیلتون ددوی په ژبه کښی هم داختلا فونو سبب شوی دی .

دپشه یانو دتاریخ په باب مفصل لیکلی آثار نشته‌چه دتاریخ په‌پوړیو کښی‌ددوی په ژوند رڼا واچول شی .

لرغونو هندي منابعو چه د ( پیشا چه ) یا ( پایشاچی ) کلمه قید کړی ده

---

۱ـ داویش په آریانا دایر ةالمعارف کښی هم وګوریء .

او د ګرير سون او ځينو نورو محققينو له خوا په همدغه نامه بياټول داردي قومونه ياد شوي دي . زما په عقيده دا کلمه داوسنۍ ( پشه يي ) سره ډير سمون لري خو نورو زياتو محققينو ( لکه چه بحث يي په تيره بر خه کښې تير شو ) دا کلمه د پراکريتانو له پاره منلې ده .

د پشئې ويونکو په ژوندانه کښې خيرنه ډير مشکل کار دی ځکه چه دوی په خپله ژبه کښې کوم ليکلې آثار نه لري چه مستند ژوند يې بيا ن شي . بې له رواياتو چه خلك يې کوي بل شی نه موندل کيږي . په دغو روا يا تو کښې د درويش محمد خان غازي جنګنامه ياصفت نامه زيات شهرت لري چه هغه هم ډيره نه موندل کيږي ( ۱ ) .

په هغه کتاب کښې ددرويش محمد خان غازی ټول فتوحات اوحماسي تاريخ ليکل شوی دی . دی دميرزا محمد حکيم ( ۹۹۰ ه ) هم عصر دی.

درويش محمد خان غازي چه په اليشنګ او الينګار کښې اسلام خپور کړ په جنګ نامه کې يي مفصل معلو مات ور اندې شو ي دي.

درواياتو له مخې داليشنګ او الينګار اوسيدونکی اصلا د ا لينايانو په نا مه يادشوي دي . الينايان دويدی دزماني يوه مهمه قبيله وه دريګ و يد ا له ترانو

---

۱ — ددغه کتاب مؤلف قاضي محمد سالم نوميږي چه د کتاب نوم يې (صفت نامه غازي محمد درويش خان ) او په ۱۹۶۰ عيسوي کال کښې په روم کښې چاپ شوی دی د ( ۱۳۵۰ ) کـال کابل مجله ـ شپږمه ګڼه ( داليشنګ او الينګار ننداره ) مضمون وګوريء .

چه‌د آرئیانو له‌مهاجرت څخه ور وسته د هند و کش جنوب خوا ته و یل شوې سغلوسیږي چه‌الینایان دآریائی قبائیلو لکه پکتها ( پښتانه ) اوبهلان ا و داسې نور غوندې دی چه‌دلسو قبا یلو په‌جګړه کښې یې ګډه ون کړې دی کله چه ( وزایو مترا ) د ( یو دا سا ) پا چا منشی له خپلی‌وظیفی څخه‌ګوښه کړی شو ځان یې دلسوآریائی قبا یلو سره یوځا ی کړ اود ( یود اسا ) سره یې سخته جګړه وکړه ، جګړه دغه په‌نفع پای ته‌ورسیده د وی څه هند ته لا ړل ا و څه‌یې پا تې شول .

الینا یانودالیشنګ او الینګار په دروکښې‌د هندوکش‌په‌لمنو کښې هستوګنه غو ره کړې او بیا یې د نفوس ددیروالی له کبله نورو ځایوته‌حرکت کړی دی اوډیریې دهندوکش په‌جنوبی لمنو کښې لرو بر خپاره شوی دی.

الیشنګ‌او الینګار همدا معنی اری چه‌دالینا یا نو هستوګنځی دی . دوی مالد ار اور سې به یې روزلی له‌وړیونه به‌یې جا مې جوړولې ا و له پوستکو به یې د ( ګتاك ) په‌نامه‌جامه‌جوړوله . دوی‌اکثر په‌غرونو کښې اوسیدل تول‌خلك‌یې غښتلی اولوړ قدونه یې لرل له همدغه کبله د ( تورودیوانو ) په نامه یادیدل .

قاضی محمد سالم په‌خپل کتاب ( صفت‌نامه غازی محمد د رویش ) کښې له‌درونتې څخه ترپرچ غانه‌اوپچه غانه ( ٦٦ )لویی‌اووړې د رې یادې کړی‌دی اولیکې چه « غا زی محمددرویش ددغو درو له کافرانو سره ډ یر جنګونه کړي اودوی‌یې اسلام ته رابللی دي » .

په‌صفت‌نامه کی ( پانداد ) ، ( شروي ) ، ( لاماندي ) ددوی د خدا یا نو په نامه یاد شوي دي . بایدوویل شی‌چه په‌دغودرې‌نومونو ( پانداد ) ، (شاروي)

( لامانده ) په‌نامه دپشه یانو درې کلی اوس هم یادیږی .

د صفت نامی په‌قول غازي محمد درویش یو ر و حانی شخصیت و چه د کابل دوالی میرزا محمد حکیم له‌خوا په ( ۹۹۰ ه ) کښی ددغو درو د ا یل کو لو په‌غرض واستول شو . دالیشنګ په‌دره کښی داسلام آباد او درویش آ با د کلی تول دده‌نامه ته‌منسوب دی چه لوسری‌یی‌داسلام‌آبا د ګلا جوړه‌اودمر کزپه‌حیث یی ورنه کار اخیسته او اوس یی هم قبر همالته دی . دصفت نامی شخه معلومیږي چه دغه درې یوځل دسلطان محمود غزنوي‌اوبیا دامیر تیمور ګور ګانی‌په وخت کښی وهل شوې دي .

په صفت نامه کښی دغازي محمد درویش په لښکر کښی دغور غوشتی شینواري هزار میښواونورو نوسونه هم یاد شوي دي (۱) .

کله چه امیرعبدالرحمن په‌هغه‌ځای بری وموند دهغه ځای‌زیات اوسیدونکی یی دیر غمل په نامه کابل ، لغمان او لوګر ته ولیږ دول .

الینایان چه هری طایفی ته نژدې ورغلی دي ژبه یی هم دمحیطی تاثیر لاندې راغلی او بیلی‌بیلی لهجی پکښی پیدا شوې اوخپل اصلی شکل‌یی له‌لاسه ورکړی دی لکه شرقی او غربی نورستانی ژبې چه ډیر تویر لري پشه‌ئی ژبه هم په مختلفو لهجو منځ ته راغلی لکه میوالی لهجه چه په الیشنګ دره کښی ویل کیږي . وامائی لهجه چه په الینګار کښی ویل کیږي ، کشمنډي‌او خاړیګا چلسی اونورچه هرې ژبې ته نژدې شوې غیر پشه‌یی لغات پکښی ګډ شوي دي‌لکه

---

۱ـ کابل مجله د ۱۳۵ کال شپږمه ګڼه .

د کاپیسا پشه یي چه د پارسي ډیرې جملې لري او په خارګا او چلسې کښې چه غیر پشه یي لغات زیات لیدل کیږي .

د پشه یانو دنفوسو دشمیرسمه احصا ئیه په لاس کښې نشته (۱) او په کوښو ځایونو کښې چه هستوګنه لري هغه دادي :

د لغمان ولایت په مرکز میترلام کښې د پشه یانو کلي مسکوره ، دیوه ، ده زیارت ، دالیشنګ کلي ، کرنج ، چلمتي . دقرغیو په ولسوالي کښې چار باغ ، کشمند دالیشنګ په ولسوالي کښې دشمګټ دره ، چاناك ، دسایګل دره ، د ګل احمد کلا ، کاسیګر ، تنګو ، دردري (چه یوه تاریخي کتیبه هم لري) ، منجات ، غازي آباد شارخلو ، حاجي آباد ، نوروم ، جمشو آباد ، اند را ، لامانده ، دماسانده دره ، ده برجو ، نوخلو ، کاسکین ، دپوڼین دره ، نلی ، شمسه خیل ، کرندالي ، باندو ، پرائین ، ګولګري ، نژه لوم ، نجیل ، ګلوتو ، اسی خانوتو ، قلو ، دمبلوم ، میل دره ، پاندراو ، ګوندالي . (په دې ځای کښې هم کتیبه موجوده ده) کوتا ، دا کاور دره ، د کوهستان په علاقه داری کې کسوك ، سنجري ، منډول ، دیوان دره ، شاهي درنګي ، بوسبي ، کندا کوري ، نورولمبري ، الوکون ، لوړ کون ، منانګر ، خوجه ګشته ، داتپ دره ، دچکلي دره ، دد ګړان دره ، موراویس نولوم ، دنوییا دره ، چنډال ، تمبلو ، ګډیالو ، او کونډ وشیر .

---

۱- د . ي . ا . ایدیلمان په کتاب کښې (دشوروي علومو داکاډمي د ۱۹۶۵ کال خپرونه . تقریبا مسل زره اټکل شوی دي .

په الینګار ولسوالی کښې د کلمان دره ، دساودره ، دنور کلام دره ، تیتین نکره ، د کچور سالاو دره ، پچا ګرو دوو ، شاما ، دژنیا دره ، دننګرهار په ولایت کښې ښیوه ، ګوریك دره اونور.

د کاپیسا په ولایت کښې کوټې، دامسکین دره ، داشپې اوالی سی دره ، پچغان، سنجن ، درنامه ، ګیاوه ، بوله غین .

دسر وبی په اولسوالی کښې دازبین درې خوکلای ـ دلغمان پشئی کلی.
دبغلان په ولایت کښې داختاج ستار بای قریه .

دبدخشان د ولایت دکشم په ولسوالی کښې دسر جر کلی .

باید وویل شی چه دمهاجر تونو له کبله هرې خواته تللی ځینو پشه یی ژبه هیره کړې ده . همدغه رنګه ځینی نورې قبیلی چه ددوی سره نژدې شوی هغوی پشه ئی ژبه زده کړی لکه پښتانه، چغتیان، تیمور یان تاجیکیان اونور چه ژبه یی پشه ئی ده ولی قومی ادعا کوي چه زه پښتون ، چغتی، تیموري، تاجك یم(۱).

دپشه یی ژبی په باب ناستو ختیځ پیژندونکی اوپیاوړي محقق مارګین سترین نسبتاً یولوی کتاب په انګریزي ژبه لیکلی دی ، نوم یی ( اینډو ایرانین فرنټیر لانګو یجز ) (۲)دی.ددغه کتاب دریم توك پشه یی ته وقف دی چه په(۳۳۵) مخونو کښې په ۱۹٦۷ کال په اوسلو کښې چاپ شوی دی.

---

(۱)ـ ددغومعلوماتو زیاته برخه ښاغلی مظفرالدین ننګیار دالیشنګ د(لوړ ګون) او سیدونکی را کړې ده .

(2) Indo Iranian Frontier Languages Vol III oslo 19,7.




**دپشه یی و یو نکو دسیمو نقشه**

ددغه کتاب دمقدمې دیوې برخې لنډیز دلته وړاندې کوو ( ۱ ) پر و فیسر مارګین ستر ین لیکي : پشه یی ژ به دافغانستان په شما ل ختیځو سیمو کښې د کابل سیند په شمال کښې ویل کیږی چه دا سیمه تقریباً ( ۱۷۰ ) کیلو متره اوږ دوالی لري. په یو شمیر وادي ګانو کښې چه د ګلبهار څخه ترپنجشیره په شمال لویدیځ کښې او په ختیځ کښې د کونړ او پیچ دسیندونو تر یو ځای کیدو پورې رسیږی .

---

۱ - ددغه کتاب مقدمه ښاغلی خیر محمد ترجمه کړې چه په تشکر سره یې وړاندې کوو .

د یره بوده نه ده تیره شوې چه دا ژبه د پنجشیر د ناوې په یوه برخه کښې هم و یل کیده او د نجراو او بدراو په سیمو کښې په پراخه ساحه کښې و یل کیده.
همدا راز دلغمان او کونړ په ناوو کښې هم ځای په ځای و یل کیده.

ج . ګ . لوریمر د پشه یی ژبی و یونکی سل زره وګړی اټکل کړی وو چه د هغوی نوسانی د یرښت او کموالی یی په نظر کښې نه ؤ نیولی چه دا اټکل یی هم د پشه یی ژبی دو یونکو د سیمو له مخی کړی ؤ . مګر دی د پشه یی ژ بی دغربی سیمی د پراختیا دانداز ې نه او خبر ؤ . له بلی خوا د ده په وخت کښې پشه یی نفوس له یوی خوا زیاتیدل مګر له بلی خوا د پښتو ا و پا رسی ژ بو د تـا ثیر لـه کـبله چه د پشه یی سره ځنګ پر ځنګ پرتی دی او د پشه یی په سیمو کښې یی نفوذ کاوه د پشه یی و یونکی ورځ په ورځ کمیدل د پشه یی دو یو نکو د شمیر تخمین د ( ۹۶۰۰۰ ) نفر و په شا او خوا کښې دلوریمر د اټکل سره سمو ن خو ری . لیکن د ا ا ټکل په یوې منظمې سرشمیرنی بنانه دی او ددې تولو سره سمکن چه لو ړ و ی .

پشه یی دیوې بوسی او اصلی ژبې نوم دی چه دانوم د لیچ ، بو ر نیس ا و راورتی له خوا شمال غربی او جنوب شرقی لهجوته ور کړ شوی دی .

نور نوسونه لکه کوهستانی ، لغمانی ، اودیګانی نومونه ددباندې ګاونډ یانو له خوا سیمه ایزو لهجوته ورکړ شوی دی .

د پشه یی په باب دلو مړی خل د پاره دسار کوپولو له خو ا یا د ونه شوې د ه :
« د اسیمه د بدخشان څخه تردې ځایه پورې دلسو نیمو ورځو فاصلی په امتداد کښې یو ولایت دی چه ( پاشیای ) بلل کیږی اودوی خپلو ځانونو د پاره خپله

ژبه لري د د ې ولايت ټول خلك بت پرستان دي دښکلي‌وا و په زړه پورې هنرونو سره بلد دي ، خپل زيات وخت په د عا ا و له شيا طينو څخه په مرسته غوښتلو تيروي . او دلته خلك دسرو،سپينو، قيمتي تيږو، مرغلرو ګوتي په لاسو کوي اوپه غوږونو کښې يې راځوړ ندوي، دوي د کار ښه ا ستعداد لري . دوي پخپلو اخلاقو کښې ډير کينه کښ ، څيرك ، سخت زړي اوزړور خلك دي . د ا ولايت په يوه ګرمه سيمه کښې پروت دی . د د وی خواړه غوښه ، وريژې اوطبي بوټي دي »

يوه پيړ ی وروسته ابن بطوطه په خپلو يا دد ا شتو نو کښې د ( پشه يي ) ذ کر د « بروان » ( پروان ) سره نژدې په يوغره کښې کوي .

( په ۹۶۳ ع ) کال کښې ترکي اميرالبحر سيدي علي د فرا نچې ( پراچي ) اوپشه يي خلکو دمشر له خوا د کابل څخه دچاريکار و اوپروان په لاربدرګه شو .

په همد غه وخت کښې بابرد پشه يي ( په اغلب احتمال سره غربي لهجه يي ) ذ کر دلغمان سره دډيرو هغو ژبو په منځ کښې کوي چه د کابل په شاوخوا کښې ويل کيدې .

لوسړی ا ر و پا يي چه په ا و سنی عصر کښې د پشه يا نـو يـاديګا نـو ( چه دی يی بولی ) ذ کر کوی الفنسټون دی چه‌دی دد وی ځای د کـو نړ او لغمان په سيمو کښې او په‌نورو هغو ځا يونو کښې چه د ا ژ به و يل کيږی داسی کوی :

« داسی ښکاری چه‌داژبه د سنسکريت او اوسني پارسي ا و دپښتو څو لغا تو اودځينو ډيرو نامعلوموريښو يو مخلوط دی » .

ماسون هم دپشه یی ذکر په ډیروځایونو کښې کوی . د ده دوینا له مخې پشه یی د پنجشیر د اوسیدونکو چه تاجك دی د پوهو لوژ به ده .

«داژبه همدارنګه دنجراو په ختیځو غرونو کښې مروجه او په شپږو کلیو کښې وربانديد خبرې اترې کیږي او همدارنګه عموماً دنجراو هغه اوسیدونکی وربانديږ غږیږيچه دپارسی ژبی سرههم اشنادي . دتګاو ساپیان هم په قوي احتمال سره دپشه یی نژاد څخه دي . دلغمان تاجك تاجیکی ژبهوایی داژبه هم په قوي احتمال د دره نور کوهستانی اودتور پوښو (سیاه پوش) کافرانو لهجی ته نژدې ده».

لنډه داچه دماسون دوینا له مخې چه کوهستانی ژبه د درهٔ نور ، دره مزار او پیچ او نورو ساپیانو له خوا ویل کیږي چه په نورو لهجونه پوهیږي .

لیچ لوسړی سړی وچه د کونړ د پشه یی دوه سوه لغتونه او د لغمان ( ۱۷۰ ) لغتونه یی خپاره کړل .

بورنیس هم د (پوشی) لهجی یوڅه کم لغات نشر کړل. لیکن په (۱۸۳۷م) کښې ماسون پخپله مجله کښې دلغمان ( ۹۵ ) لغتونه او (۱۳) عبارتونه ثبت کړل . ګریفیت په (۱۸۴۰م) کښې پهخپل سفر کښې دپشهیی دشمال شرقی لهجی کرونکولی (۱۲) لغتونه خپاره کړل اوتورومپ مونږ د کونړي لهجی د (شلو) لغاتو سره اشنا کوي .

راورتی دپشه یی (۷۸) لغاته او د کوهستانی دشمال غربی لهجی (۱۲۶) لغاته ثبت کړي دي ، داسعلومه خبره ده چه د راورتی کوهستانی د عربی الفباء څخه رانقل شوې وه ، پهډیرو ځایونو کښېمونږ (ك) د (ګك) اویا د (ل) پهعوض

گورو. د(د) توری د(و) په‌عوض اویا (و) د(د) په‌عوض‌اوداسی نورلیدل کیږي .

راورتي د پشه یی زیات لغات دلیچ څخه رانقل کړي‌دي اودتور پوښولغات‌یی دبورنیس څخه نقل کړي‌دي . په‌ځینو ځایونو کښې یی دلیچ لغات یاغلط کړي او یایی شکل وربدل کړی دی .

تنرته ده په خپل سفر کښې د پشه یی یوڅه لغات ولیکل او د ، داوید سن دوینا سطابق ده دده نور دلغا تو (۱۵) پاڼي‌یاد داشتونه ولیکل چه هغه‌تراوسه پوري لاس ته نه دي راغلي .

بالاخره دهند دژبیو هنی دتحقیقاتو د کتاب په (۸) او (۲) توکونو کښې دده پشه یی لهجو یادونه‌شوې‌ده چه یوه‌یی ختیځه (د کونړ) اوبله‌یی لویدیځه (دلغمان) ده چه دواړه په جنوب ختیځ گروپ کښې شامليږي .

د گ. بودروس مهم اثر(ویترا گ‌زور کینتمس دریشته‌یی دیالکټ ۱۹۵۹ کال) چه ددرهٔ نوري لهجو (قلعه شاهی)اوسوتن‌پیوه ( کونړ) اوددوه‌شمال شرق گروپ (چلس او گنډك) دلهجو لغات او متنونه راوړي. بود روس په‌ډیره سخاوت مندانه توگه ددې لهجو گرامري یاد داشتونه ماته راکړل چه ډیر لغات‌دده په کتاب کښې‌نه‌وولیکل شوي زه‌په‌زیاته‌اندازه خپل ځان‌دده دسوادو دراکولو سرهون گڼم.

لینترهم‌پخپل اثر زیتریخ ننگ (این نورستانی اندام پامیر) کښې د کولمانی او کور ددرې یوڅه لغات را وړي .

د کابل کلنی (۱۳۱۳) په (۱۴۹) مخ کښې به پښتو الفباء د پشه یی دجنوب غربی لهجی تقریباً (۱۲۰) لغتونه او گرامري صیغی چاپ شوې دي .

ایف میکنیزی په (۱۹۵۱) کال دنوسبر په اتمه نیټه په پښه یی ګړ کښې (۲۱) لغتونه اخیستي وو.

ك . فردیناند دهند دژبو دسروې دموسسی دکتاب څخه دفعلونو او اصطلاحاتو دروابطویو څونمونی اودکلاتك (شفیع کوټ) دیوه پښتون څخه چه دوړو کوالی څخه دپښه یی سره اشناؤ یوځو جملی او یولنډ غزل د۱۹۰۵ کال په فبروري کښې تیار کړ.

ل ـ ایل لبرګ د(۱۹۵۶) کال په فبروری کښې (۲۹) اسمونه اویوڅه لغات په کور دار کښې اخیستي وو.

ه ـ پنزل ـ دکونړ څخه یوځو فعلی شکلونه را ټول کړل چه غالباً دشمال غربی او یاشمال شرقی داله سای دلهجی څخه دي .

ګ . ریډار ډ په (۱۹۶۰) کال کې کابل ته دتګاو څخه ځو یادداشتونه راورسول چه ددرهٔ نوري لهجی په فعلی شکلونو اوصفتونو او ضمیرونو باندې لیکل شوي وو.

په (۱۹۳۹) کال کښې داله سای لهجی لغات سي په پښتو ټولنه کښې چاپ کړل . ساد لوسړي محل دپاره په پښه یی ژبه د(۱۹۲۳) کال دسی څخه ترسپتمبره پورې په کابل کښې کارو کړ.

په(۱۹۲۳) کال کښې سی په کابل کښې دکهنه ده اودشوتل داوسیدونکو سره کارو کړ چه وروستی لهجه دکهنه ده دلهجی سره نژدې وه .

دلغاتو ګرامر او جملو یولنډلست سی په کابل کښې (۱۹۲۳) کال دایشپی'

نازو ولام (ناجیلي) پسیو دو(پچه غان) څخه واخیستل .

په جلال آباد کښې مې ځینې سواد دچار باغ (په لغمان کښې) کچوري سالاو ، منګو ، نور لام (دری واړه په الینګار کښې دي) کونړ، ویګل خلشاي (قلعهٔ شاهی) (په دره کښې) څخه راټول کړل .

د ۱۹۲۹ کال په مارچ او اپریل کښې مې په پېښور کښې د پشه يي ژبې دویونکو څخه چه دلغمان پچه غان درهٔ نور (دقلعه شاهي او لمټك)، اریت، دچلساي، کونړ نګال داوسېدونکو څخه معلومات واخیستل .

د ۱۹۶۱ کال په اکتوبر کښې په کابل کښې دیو پلنډې مودې په هستوګنه کښې مې (دلغمان ده زیارت) اواله ساي ددووتنو او سیدونکو... سره کار وکړ چه ماته یې ډیرې مهمې او ګټورې فعلي نمونې او مثالونه راکړل چه زما ډیره علاقه یې جلب کړه او زما دکار دپاره دوېمه مرستیال بلل کیږي . دیوې لنډې کتنې دپاره اله ساي او ایشپې ته لاړم او ددې کلیو په لهجومې داله ساي او ایشپې داوسېدونکو څخه معلومات راټول کړل .

پشه یي لکه څنګه چه وېمدیې وګورو په ډیر شمیر داسې لهجوویشل شوې ده چه پوهیدل پرې ګران دي . دشمال شرق پشه یي دنورو داردي او کافري (نورستاني) ژبو په ګاونډیتوب کښې پرته ده په جنوب او جنوب شرق کښې یې سرحدونه دپارسي او پښتو ویونکو سیمو ته رسیدلي دي ....»

پروفیسر مارګین سترین دګلبهار په سنجان، ده کهنه، په نجراو، پرګمتال، باشګل، اوزبین اوشا مکوټ کښې دخپلو پلټنو یادونه کوي اونور دپشه یي په لهجوي ویش پیل کوي چه سور ترهمدغه ځایه دده دمقدسې لنډیز وړاندې کړ .

پشه یی‌ژبه چه په‌خوځانګو (یاژبو) ویشل کیږي یوتربله‌یی بیلتون له‌هرخه زیات دفونیتیك په برخه کښی سوجود دی .

**فونیتیك :**

پشه یی ژبه لاندې غږونه لري :

الف ، زور ، زور کی ، ب ، پ ' ت ، ټ ، ث ، (۱) ' ج ، چ ' ځ ' څ ، د ' ډ ، ر ، ړ ' ز ، ږ (۲) س ، ش ، ښ (۳) ، غ ، ف ، ك ، ګ (غنه یي) ګ ، ل ، م ، ن ، ڼ ، و (ټول ډواونه) ء ه ې (مجهوله او څر ګنده) .

د (ڼ) اوغنه یی (ګ) غږونه دپشه یی په‌ټولو دیالیکټونو کښی نه دي‌موجود. ددغو غږونو په‌بدل کښی غالباً د(ن)غږوجود لري . دلویدیځو دیالیکټونو د(ن-ډ) په سقابل کښی ختیځ دیالیکټونه د(ن) غږ لري .

دلویدیځو دیالیکټونو د(ښ- سخت - ش) دغږ په‌مقابل کښی ختیځ د(خ) غږ لري . د( ر ) سره ګروپونو دلږ غونو کونسو نانت دانکشاف‌له‌مخی دپشه‌یي ژبې دیالیکټونه په څلورو ځانګو ویشل کیږي :

۱ - شمال لویدیځه ځانګه چه دګلبهار په‌خوا او شا کښی ده . د دغی ځانګی‌خصوصیت دادی چه د( ر ) سره دګروپونو ارغونی کونسو نانت یی ساتلی دي او هغه دادي :

---

۱- غږ یی (ث) ته ډیر نژدی دی چه دژبې په اړخ کښی ادا کیږي .

۲- د کندهاری لهجی د(ږ) په شان سخته ویل کیږي .

۳- د کندهاری لهجی د(ښ) په شان سخته ویل کیږي .

(ت + ر، د + ر، ګ + ر، ب + ر، پ + ر، م + ر، ) .

۲- دلغمان دلويديځ اليشنګ څانګه چه په هغه کښې دلرغونی کونسونانت ( ر ) سره دګروپونو حال داسې دی چه د (ك + ر، پ + ر) په ځای (ښ) او د(ك + ر) په ځای (ل) را ځی او (ت + ر، د + ر ) ساتل شوي دي .

۳- دتګاو اونجراو په څانګه کښې(ق+ر،ك+ر) هم(ث)ته ورته غږ ور کوي.

ددغو دريو سيمو دزاړه نسل په خبرو کښې دغږ لرونکو (۱) تنفسی تلفظ (۲) لاتر اوسه ساتل شوی دی .

۴- د کونړ، پیچ او الينګار په څانګه کښې د(ب + ر) ، (ك + ر) ، (د + ر) په بدل کښې(ل) او د(پ + ر) (ت + ر) په بدل کښې (ث + ل ) موجود دي.

دلغاتو په باره کښې هم يولړ توپيرونه شته چه يوه نمونه يې دلته وړاندې کيږي:

دلروان ديااليکت: اويه سوراتل مارايکی هايچ .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| دګلبهار- | پوتره | يا کتی | ماراته. | |
| دده نور | وپوه | کنيشته | . | اين |
| دويګل | اوی | کنيشته | . | اين |
| دچاس | اووه | کنيشته | | هاراهی - څه |

(په زور کيو)

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| داريت | وايی | لمتك | ماريشی | اويان |
| د کونړ | پرتهله | چنتها | ميالکين | ماينك |
| دلغمان | پوتهلی | چمنتهامار | يکين | هاينك |
| معنا | ماشومان | زامن - | کشر | وويل وو . |

---

(1) Voced.
(2) Aspirata.

دلته دپشه یی دختیځ دیالیکت دوه ټوکې دمتن دښکارندوی په ډول وړاندې کیږی (۱) .

## اولوالو ټوخ :

ائی فهمیدو دي کوپرسان کر ییا هر کیله که ډشتا کوچااو چاوانه پیلووند یو گه بو والی کو یوه دورئین کورای دوره کویوا . فهمیدو ساتیاتانکی دور ین تانکی کا لووانه چر خیدای که چیرنه گور یدي .

## لومړی ټوکه :

له یوه پوه ځځه چا پوښتنه وکړه هر کله چه په دښته کښی چینې ته ورسیږو او وغواړو چه ولاسبو سخ کوم پلو واړوو .

پوه وویل : خپل مخ خپلو کالیوته واړ وی، چه غل یی یونسی .

## دوهمنګله :

کیانی طبیب وانه اییت ساتن بنډیم بیرولا وتیو طبیب پرسان کرییا : کور ژیچکی . جوابه ذتن : چتیك ا و ئی .

طبیب شاگردځه وانه ساتییا : اپی دوا اچه .

ادم ساتییا : بنډیم لاوتیواچی دوا کور سعنیدارتو .

طبیب ساتیا : اگراچی بی جوړتیان جتیك اونی بې نه ژیچی یی .

## دویمه ټوکه :

یوځوك طبیب ته ورغی ویی ویل گیډه می ډیره خوږیږي. طبیب پو ښتنه

---

۱ ـ دغه ټوکې ښاغلی ننګیار لیکلی دي .

وکړه : څه د ې خوړلی د ي ، ځواب یی ورکړ : سوې ډوډی .طبیب خپل شاګرد ته وویل : دستر ګو دارو راوړه .

سړي وویل : ګیډه می خو ږیږي دستر ګو دارو څه معنی لري .

طبیب وویل: که ستر ګی دې روغی وای سوې ډوډی به دې نه خوړلای .



## تیرایی ژبه:

دغه ژبه د ننګرهار په یوه وړه سیمه ( د کوټ دره ) کښې ویل کیده. دغه ژبه اوس عملاله منځه تللې او یولړ شمیر لغات او ترکیبونه یې د کوټ د درې د زړو خلکو په یاد دي خو د دغې درې هغه توکم چه پخوا یې نیکونو په تیرایي خبرې کولې اوس هم د تیرایانو په نامه یادیږي خو د اولاد ژبه یې اوس نګه پښتو ده. د غه خلک چه اصلاً له تیرا څخه د ننګرهار د کوټ درې ته راغلي دي ژبه یې اوس په تیرا کې هم نشته د تیرا نه د ننګرهار د کوټ درې ته د تیرایانو راتګ د پیر روښان د مذهبي او سیاسي مبارزو سره اړه لري تاریخي اسناد وایي:

کله چه پیر روښان په ( دوړو ) کې او سیده خپل یو مأذون یې چه هغه هم بایزید نومیده تیرا ته واستاوه هلته د پیر روښان د دغه مأذون لارښوونو په ورک زیو، اپریدیو او تیرایانو ښه اغیزه وکړه او هلته یې د پیر روښان د ورتللو شرایط برابر کړل ، کله چه هلته لاړ د تیرایانو له خوا یې تود هرکلی وشو. پیرروښان د تیرا په ( مستوي ) نومي ځای کښې خوورځې تیرې کړې او بیا خلیلوته لاړ.

دمغلو سره د( اغاز پور ) له جګړې وروسته پیر روښان بیا تیراته لاړ او هلته بیا دتیرایا نو په منځ کښې میشته شو .( ۱ ) .

اخوند درویزه چه دپیر روښان دسیاسی او مذهبی مبارزو سخت مخالف او دهغه په باب له تورو نو او مبالغو څخه ډک روایتونه لري په خپلو آثارو(مخزن الاسلا م او تذکرة الا برار والا شرار) کښې د کوټ درې ته دتیرا هیا نو د را تللو په باب لیکی :

با یزید چه کله بیا تیراته راغی تیراهیان که څه هم په ظاهره دده مریدان وو خو په باطن کی یی دمغولو سره مینه لرله . پیر روښان ددوی په دغه نیت پوه شو ، دوی یی وغو لول ، دوی ته یی وویل : که ماراضی کوی خپل لاسونه وتړی او زما خدمت ته حاضر شیء . کله چه زما په حکم ستاسو لاسونه پرانستل شی هغه وخت به زه له تاسو خوښ شم .

تیراهیانو همداسې وکړل او په دغه صورت روښانیانو دړیسوه تیراهیان ووژل کورونه او مالونه یی ددوی لوټ کړل تیراه یی له دوی څخه خالی کړه پاتې تیرا هیان له تیراه څخه په کوچ شول چه د کوټ درې ته را غلل اوله دوی څخه څوك په تیراه کښې پاتی نه دي او ځایونه یی پښتنو ونیول ( ۱ ) .

د ا خوند درویزه دوینا څخه داحقیقت لاس ته راځی چه تیرا هیان دپیرروښان له خوا دهجري لسمی پیړی په دویمه نیمایی کښې له تیرا څخه د کوټ د رې

---

۱ - دخیبر البیان مقدمه - ۲۱ - ۲۲ - ۳۰ مخو نه .

۱ - په دې باب مثلا دمخزن (۱۲۶) مخ و گو رىء .

ته راغلي دي چه په دغو زواياتو هم داخلي او هم خارجي محققينو او نور خينو ( لکه مارګين سترين ، ګريرسيون ، ګانکوفسکي او نورو) استناد کړی دی .

دلته په تیراهی ژبه لنډه رڼا اچول کیږي : ( ۱ )

**اسم ذات :**

د تیرایی ژبی اسم ذات هم جنس ( نرینه او ښځینه ) هم شمیر(مفرد او جمع ) او هم ګرامري حالتونه لري .

د جنس توپیر و ر کښی لږ دی چه اسا ساً له کو نټکسټ او قرینو څخه معلومیږي په دي معنا چه دصفت په صورت او یا د فعل په تصر یف کې لید ل کیږي چه دموضوع یا فعل د فاعل سره دجنس په لحاظ سمون‌نه لري .

دمفرد او جمع صیغی هم په ګرامری حالاتو کی افاده کیږی :

ګر امري حالات دوه دی : لومړی یا فاعلی حالت دا سم په مجرد دا سا س سره افاده کیږي لکه ماله (پلار) پو تر( زوی ) کوم اسمونه چه په (زور ـ فتح) لکه : ( ما له ـ پلار) یا په بې غږه لکه ( پوتر ـ زوی ) پای ته رسیږي دجمع په صورت کښی په (زور) یا(مجهوله یی ) پاي ته رسیږي لکه (پو تره ـ زا من ) (دنت ـ غا ښ )( دنتې ـ غا ښو نه .) په یو شمیر کلموکی دجمع علامه (زورکی) دی لکه : (سپاز ـ خور) (سپازه ـ خویندې ) . (۲)

---

۱ ـ څر نګه چه دغه ژبه او س له منځه تللې نو د ګر امر د لنډ یز وړ اندې کول یې بې ځایه نه ښکاری.

(2) spaz,spazə.

په گرامری دویم حالت کښې هغه اسمونه چه په غیرې پای ته رسیږي هغه د لومړي حالت سره توپیر نه لري لکه د (ساله ـ پلار) کلمه کوم چه په بی غیره تما سیږي هغه‌هم کله تغیر نه لري لکه (پوتر ـ زوی) په دو اړ وحالتونو کښې او کله د د ویم حالت علامه (زور) ور پوری نښلی‌لکه : (دام ـ ځنی‌مزی (دا مه ـ دځنی دمزی) کله کله مجهوله (ې) یا مجهول (واو) ورپوري نښلی لکه (طرف ـ خوا ، طرف) (است ـ لاس) دو یم حالت (طرفی ، استو) د جمع علامه(ان)او کله کله (انو) (گانو)(مجهول‌واو)لري‌لکه: ادم،وگړی آدسان،وگړي خلك د( دي ـ لور) سپاز ـ خورجمعی په خاص ډول ( دون ، سپا زون ـ لونی ، خو یندې ) په نحر گند واو جوړ یږي .

**صفت :**

په تیر ایی کښې صفت هم جنس (نر ینه او ښځینه ) لری لکه (سوره ـ وو ړ، وړو کی ) (سوري ـ وړه ، وړو کی ـ( په نحر گند واو ) ( کا نه ـ لوی ،غټ ) ، (کا نی ـ لو یه ،غټه ) اوهم جمع سفر د لکه : ( بر اډ ه ستري ـ ښه ښځه ) ا و (براډي ستري‌ـ ښې‌ښځې‌ـستري ـ‌ښځه) لکه‌چه‌لیدل کیږي اضا فی تر کیب د پښتو او نو رو با ختري ژبو په شان دی چه صفت تر سو صوفه مخکښې را ځی .

**ضمیر :**

په لاند ې ډول شخصی‌ضمیر ونه په تیر ایی کښې موجوددي :

| | لومړی حالت | | دو یم حالت | |
|---|---|---|---|---|
| | مفرد | جمع (۱) | مفرد | جمع |
| متکلم | او( زه) | ما (مو نږ) | می (ما) | مین ( موږ) |
| مخاطب | تو(ته) | تاو (تاسو) | تی (تا) | تا ( تاسو) |

اشاري ضمير ونه دغايب شخصي ضمير وظيفه هم اجراء کوي .

دمتعدي ماضي فاعل دپښتو په شان په دويم حالت کښې راځي چه دی ته د ژبپوهنې په اصطلاح ايرگاتيف سيستم وا يي لکه (مې ديته وا ـ ماوو اهه )( ۲).

**اضافي ضميرونه :**

( ميانه ـ زما ) چه مضاف نرينه وی ( ميانی ـ زما ) چه مضاف ښځينه وی .

( چا نه ـ ستا ) لکه : ( بی ميانی خواخی تهی ـ دازما خوا ښی ده ) (۳)

**اشاری ضميرونه :**

( لا ،لی،ليمه )(۴) اشاری ضميرونه دی چه دواړه په لحاظ کوم توپيرسره نه لری.

د ( ليمه ) اشاري ضمير معمولا دجمع اودمفرد په دويم حالت کښې استعماليږی .

اشاری ضميرونه دجنس په لحاظ بدلون نه لری ا ونه په گراسری حالاتو کښی تغيرمنی .

دنژ دې له پاره يوبل اشاری ضمير هم موجود دی چه له(اسی،ايسه ـ دغه، دا )(۵) څخه عبارت دی .

---

(1) au(ao)—Me—Me —Men —tu(to)—tao—te —ta.
(2) Me dita wa.
(3) Myana—Mvani —Le Myani— chana xwaxe the.
(4) La,Le,Lema.
(5) ase—esa.

تیرایی ژبه

نور ضمیرونه په دې ډول دي : (کامه ــ څوك ' چا) ( کی ـ څه ، کوم ) ( کامیك ـ دچا ) ( تانو ـ خپل ) (لیتیك ،دوسره ) کتیس ــ څوسره ( ۱ )

شمیر : په تیرایی کی شمیر په لاندې ډول دی :

یك ( ۱ ) دو ( ۲ ) ترې ( ۳ ) څوور ( ۴ ) پنځ ( ۵ ) خو ( ۶ ) ست (۷) اخت ( ۸ ) ند ( ۹ ) ده ( ۱۰ ) ده ایکو ( ۱۱ ) ده بو ( ۱۲ ) چا وده ( ۱۴ ) پنزې ( ۱۵ ) ستاره ( ۱۷ )اتاره ( ۱۸ ) کونی ( ۱۹ )بیاو ( ۲۰ ) بیاوده (۳۰) بیاوایکو (۲۱ ) دوبی ( ۴۰ ) دوبیاوایك( ۴۱ )دوبیاوده ( ۵۰ ) دوبیاوبو (۵۲) څوور بیاو ده ( ۹۰ ) پنزی ( ۱۰۰ ) . ( ۲ )

**فعل :**

دمصدر علامه د ( ن ) و رو ستاړی دی لکه ( کرن ـ کول ، کړل ) (دبیان ـ وهل) ( ۳) لکه ( دبیان براډي نه تی ـ و هل به نه دي ) (۴) .

**فعلی تصریف :**

دفعل تصریف دښکارند وی په ډول دلته او سړی د کومکی فعل تصریف چه په جملو کښې درابطې په حیث وظیفه اجرا کوی او دپښتو دغیر مستعمل ( و ل ) کومکی فعل سره سمون لري په دریواړو زمانو کښې وړاندې کوو:

| | ماضی | | حال اومستقبل | |
|---|---|---|---|---|
| | جمع | مفرد | جمع | مفرد |
| متکلم | وامه | وامه | تیمه | ( تیم )( یم ) |

(1) kama—ki—kamik —Letik—katest.
(2) ek, do, tre, cavor, panc, xo, sat, nad, dah... chauda, panzi, satara, atara, kuni biau biaudah, biaueko, dobe, dobiauek, dobiau dah, dobiau dah, dobiaudo, cawar blau dah, panzi be.
(3) karan—dıyan.
(4) diyan Brade na ti

مخاطب　تیاس ( یی )　تیزه　واز　مامنه

غایب　تي (مذکر ) تې ( مونث - دي ، دم) tina وا(مذکر)وې(مونث) « ( ۱ )

دحال اومستقبل توپیر دصیغو لەمخې نشته - یوازې دپښتو پەشان د ( به ) ادات داستقبال له پارەزیاتیږي . داستمراري مستقبل لەپاره د ( به ) زیاتول حتمي نەدي مګر دمطلق لەپاره ضروري دي .

امر :

دامرد مفرد صیغه دمجرد اساس څخه جوړ یږی : ( بیز- کښینه ، اچیتو واخله ، تري -وتړه ، ګړي - وایه و ګړ یږه ) ( ۲ ) دجمع صیغو په پای کښې ( زور یاالف ) اودیر لږ مجهول یا معروف (واو ) اضافه کیږي : ( انا- راوړی ، ځیيه - واغوندی ) ( ۳ ) دلته د یوه وړو کی متن ترانسکر یپسیون د ترجمې سره وړاندې کیږي ( ۴ ) .

ek adamas do putərə' wāna
lema-manzum sūrė putər mala
ditanas: «ai mala, myāna māla-
'manzum ki kissa' owē, la masi de»

1—tim, tis, ti, te—tima, tiza—tina—wama, waz, wa, we—wama, wama, mam—(na)

2—Bez—achito— tare—gari.

3—ana—ciya

۴ - دامتن دایدلمن پەحواله دګریرسون له ( لینګو یستیک سروې اف اینډیا ) څخه اخیستل شوی دي .

ايلك ـ ادمس ـ دوـ پوتره ـ واته ـ ليمه ـ منزوم ـ سو رې ـ ږو تـر ـ مـا لا

د يتا نس :

( اي ـ ماله ـ ميانه ـ ماله ـ منزوم ـ کی ـ هيسه ـ اووې ـ لهـ ملسی ـ دې)

## ترجمه :

يوه سړی دوه زامن لرل لهدوی څخه کشري زوی پلارته وويل : ( اې پلاره زما کومه برخه چه ستا په شته منی کښې رسيږي هغه را بيله کړه ) .

## تحليل :

, يك ( يو ) عدد دی . ادم (سړی)اسم ذاتدی.( اس )داضافتنخښهده .

دو ( دوه) عدد دی. پوتره ( زامن) اسم ذات جمع مفر د يی ( پوتر ) دی .

واته ( وو) د کومکی فعل دماضی د جمع صيغه .

ليمه (ددوی ) اشاری ضمير .

منزو م ( منځ ،په منځکښی ) سو ری ( کشر ) صفت دی . ما لا ( پلا ر ) ا سم ذات دی .

ديتانس = و يل ( هغه ته ) . ای ( ای ) ند ا ئيه تو ری . مـا له منز و م ( دمال له منځه ، له ماله ـ ( څخه ) کي ( چه ) دتابعی جملو د رابطی ادات .

هيسه ( برخه حصه ) اسم ذات .

اوی ( کيږي )( رسيږی ) دغايب مفرد دحال صيغه د ه .

## وټه پوری ژبه :

دمرکزي داردي ژبو په جمله کښې یوه وټه پوري ژبه ده چه د کونړ دولایت دپیچ په دره کښې په وټه پوراو ( کتر کلا ) کښې ژوندۍ ده .

دنورو مرکزي داردي ژبو په لړ کښې دغه ژبه د شوماشتی ، همدارنګه د ننګلامی او ګلنګالی دیالیکتو نومره زیاته خپلوي لري او حتی د غه ژبې دمرکزی داردي ژبو په منځ کښې یوه بیله ځانګه جوړوي .

دلته یو وړوکی متن دښکارندوی په توګه وړاندې کېږی :

dū zūyen yek nāṛ ratī dawā īšaū. yek isyenaū zī: «men pur thū». sē dūi zūi isyenaū zī: «men pur thū».

دو-زوی یین-ییك ناړ-راتی-داوه-ایشاو - ییك - ایسیيناو-زي: (مین-پوړتهو) - سی دوی - زوی - ایسیيناو - زي-(مین) پوړ تهو) .

**ترجمه :** دیوه ماشوم په باره کښی د د ووښځو جګړه وه - یوې ویل (دازما زوی دی) بلی ویل (دازما زوی دی) .

**تحليل :** دو (دوه) عدددی . زويين (ښځو) اسم ذات جمع اضافي‌حالت' (ين) داضافت نخښبه‌ده. ییك (یوې) عدددی . ناړ (هلك ، ماشوم) اسم‌ذات.راتی (پر ، په باره - کښی) . داوه (دعوه) عربی کلمه ده اسم ذات مفرد په‌لومړي‌حالت کښی ایشاو (وه) دماضی قریبی‌صیغه ده کومکی فعل دی . ایسیيناو (ویل) ماضی استمراري . زی (چه) دتابعی جملو دربطوظیفه‌اجراء کوي.مین (زما)دمفرد متکلم اضافي‌ضمیردی. پوړ(زوی)اسم‌ذات‌مفرددی.تهو(دی)دجملو د ربطادات‌دی.سی(هغه) اشاری‌ضمیردی.دوی(بلی)تعینوونکی‌ضمیردی.زوی (ښځی) اسم ذات مفرد دی .

## شوماشتی ژبه:

ددغې ژبې دژوند تاریخي د شوماشت ددرې پاسنۍبرخه ده چه دمزاردرې په کینه خوا د کونړ دسین دښي اړخ سرستیال په‌غاړه پرته‌ده . دشوماشت درې دلاندینې برخې اوسیدونکې په پشه‌یي خبرې کوي .

دلته یوه جمله دنمونې په‌ډول وړاندې کېږي : ( ۱ )

sesikye - gōrəs - sīm-as - āmā-me

سوسیکیې - ګوړس - سیم - اس - اما - اینه .

**ترجمه :** د سپین اس‌زین په کورکښې دی .

**تحلیل :** سوسیکې - سپین ، ګوړه - اس-(س)داضافت نخښه ، سیم-زین ( اس - یې ) ( دمفرد غایب وصلي ضمیر ) اما - په کورکښې ا ینې - دی ( دمفرد غا یب دارتباط کلمه ) .

---

( ۱ ) دغه جمله دمارګین سترین له کتابه‌ایډلمن اخیستې‌چه‌ما دلته نقل کړه .

## گوار باتی ژبه:

دمرکزي داردي ژبو په لړ کښې يوه هم ګواري ژبه ده. دغه ژبه ديولړ محققينو له خواد (ګوار باتی) په نامه يادېږي چه سعا يې (ګواري ژبه) ده. ددغې ژبې دويو نکو ترمنځه دغه ژبه د(نرساتی) په نامه هم يادېږي ددغې ژبې تاتوبی د کونړ پرسين دباشګل دسين دتوئيدلوله سيمې نه‌ښکته د کونړ دسين دواړه غاړې دي.

ګواري ژبه په‌خولهجو ويشل کيږي‌چه يوتربله‌يي‌توپيرهرڅه‌زيات دفونيټيک په برخه کښې دی.

دستن نمونه : (۱)

ya-mānuš thiwana. se-dāran
di-thana. ban ase-dār-kerimān
bo-yarib-manuš. dār-kerimān bo

يه مانيش تهيوه نه سي دارن دي تهه نه بن اسی دار کیریمان بوغریب مانیش دار کیریمان بو .

**ترجمه** : - يوسړی و - هغه دلرګیوپسی غونډی (غره) ته لاړ هغه لرګی را وړل غریب لرګی راوړل .

**تحليل** :(يه - يو) مانيش(سړی)تهيوه نه (و)سي (هغه) دارن (لرګیو نه) دي تهانه بون(لاړ) بن(غونډی)اسی(هغه) کيريمان بو(ګول)(وړل)غریب(غریب).

---

(۱) دايد يرمن په حواله دسارګين سترين له ګوار باتی څخه دستن ښکارندوی اخيستل شوی دی .

# کهواری ژبه:

دغه ژبه چه د-چترالی او - ار نیا (۱) - په نامه هم یادیږي دافغانستان چترال په نژدې سیمه او دچترال دسین په پاسنی برخه کښې ژوندی ده،دشوروي بدخشان پهسیمه کښې ددغې ژبې یوشمیرویونکی‌شته.

---

(1)Arnia.

دلته دیوه واړه متن ترجمه اوتحلیل (۱) وړاندې کیږي :

Ī-mōšo-jū žižau-astani hatětan
muji ciro tato-tě restai: «ē tati
ma-tě-ma bašo tan māl-ăr
Ki-ma-tě tariran dět».

ايموشوجو ژیژاواستانی هتیتانموجی څیروت،توتی ریستی(ي تاتماتیماباشوتان
مال ارکی ماتی تار بران دیت).

**ترجمه :**

یوه سړي دوه زامن لرل کشر یی پلارته وویل:(ای پلاره ! ستاله شتمنی
څخه ماته برخه راکړه کومه چه زما رسیږي).

**تحلیل :**

ای (یو) عدد دی . موشو (دسړی) مفرد اسم ذات په دویم حالت کښی .
جو (دوه) عدد دی .

---

(۱) دغه ټوټه متن دايد لمن په حواله دګریرسون د( لانګویستیک سروی
آف اینډیا ) څخه اخیستل شوی دی .

ژیژاو( زامن) اسم ذات جمع . استانی (وو) په ماضی کښې دکومکی فعل جمع . هتیتان (ددوی) اشاري ضمیر په دویمحالت کښې . موجی (پهسنځ کښې) خیرو( کشر) صفت دی . تاتوتی (پلارته) (تات ـ پلارتی ـ ته).ایستاي (وویل) دغایب مفرد ماضی قریبه . ی (ای) ندایی ادات .

ماتی ـ ماته، ماله . (دماضمیرپه دویم حالت کښې) . تی ـ ته . ما ـ زما. باشو ـ برخه .

تان ـ خپل . مال ـ مال . اسم ذات . ار ـ محخه. ادات دی . کی ـ چه. دتابعی جملود تړلو ادات . تریران ـ رسیږی . دغا یب مفرد دحا ل صیغه . دیت ـ راکړه . د مفر د امر صیغه .



# نورستان او نورستانی ژبی:

نورستان دافغانستان یوه ښکلی اوتاریخی سیمه‌ده چه د هند کوش په‌جنوبی‌لمنو کښې دافغانستان په‌شمال لویدیځه برخه کښې پرته‌او تقریباً نهه‌زره او پنځه سوه مربعه کیلومتره ساحه‌یی نیولی ده ( ۱ ) .

اوسنی نورستان (اوپه لرغونو و ختو کښې دبیلور) په‌نامه یادیده خودانومونه دتاریخ له‌مخی یو تر بله سره لږ څه توپیر لری . د اسلام له دوری ترمخه په‌موجوده نورستان اوپه ورځیرمه دچترال په‌سیمه اودپنجکوړی په پاسنیو برخوکښې خپلواك اولسونه اوسیدل چه دلهجوله‌مخی سره بیلیدل په دوی کښې ډیره لویه قبیله د ( کاتی ) په نامه وه چه‌بابر پخپل‌یاداشتونو کښې د ( کتور Katur ) په نامه یاده کړې ده . ددغی قبیلی وګړی د کافرستان په‌ختیځه اولویدیځه خواکښې اوسیدل.

---

( ۱ ) آریانا دایرة المعارف‌یی ساحه پنځه زره مربعه میله چه اته زره مربعه کیلو متره کیږی ښوولی ده .

په پیچ دره کښې پرسونیان اوسیدل. پرسونیان د توکم پیژندنې له مخې د پر لرغونې اوسید ونکې گڼل کیږي .

دوایگل د درې په منځنۍ او پاسنۍ برخه کښې وایگلیان او سیدل . د پیچ درې او الینگار د درې ترمنځه په سیمه کښې اشکونییان اوسیدل . دا د دوی د توکم پیژندنې له مخې وبشو . مگر د نورو گاونډیو له خوا د دوی ویش د لباس او ظاهري نورم له مخې و . په دی معنا ، تور کالي اغوستل ـ او سپین کالي اغوستل ( ۱ )

تور پوښو ډول تورې میرې او گډان روزل چه د هغو له ویرې څخه یې تور کالي جوړول او هغه د لاندې کلیو او بانډو اوسیدونکې وو .

کتوی ــ پوشان ـ باندول ـ کامدیش ـ کشتوز ـ کا نتوز ــ منځگل ـ برگک متال ـ پیروك ، پیشه وار ـ شدگل ـ پرستام ــ چپو ـ بد موك ـ اپسی ـ پسی گرام .

کوم یې چه د خپل ذوق او دود له مخې سپینې میږې او گډان روزل او سپین کالي یې ورنه جوړول د سپین پوښو په نامه یادیدل او د لاندې کلو او بانډو او سیدونکې وو :

اشکونړ ـ پرسون ( پارونی ) ـ ملیل ـ مشوه ـ تیتین ـ نخره ـ مشوی ـ وایگل ـ

---

۱ ـ پورتنی مواد ( د افغانستان تاریخ ) د ریم توك ( ۳۰ ـ ۴ ـ ۳۰ ـ مخونه ) د مسون اورو مودین تالیف د مسکو د ۱۹۶۵ کال خپرونه څخه اخیستل شوی دی .

ارنس - اشوز - کو ر د ر - کلای کل - کتا - کمبیر - وامه - شپه کـر
کورکل - ژونبا - پهار - نشه یی .

توروپوښ اکثره دنورستان پهشمال کښی ژوند کوی او د نو رستان د ختیځ
کته یان‌او دلویدیځ کته‌یان دی .

مګر پورتنی ویش‌لکه چه‌وویل شول دنژاد پیژندنی په اساس‌نه بلکې دلباس
اوپوشاك په اساس دی ( ۱ ).

کله چه‌په(۱۲۷۳ )شمسی کال کښی‌دامیرعبدالرحمان‌خان‌له خواپه دغه
سیمه کښی اسلام خپورشو دغه‌سیمه دنورستان په نامه یاده شوه .

دنورستانیانو دتوکم اونوروسره دنسبی خپلوی په‌باب دلویدیځو محققینوله
خوا ډول ډول نظریات وړاندی شوی چه دلته د یولړ محققینو د نظریاتولنډ یز
وړاندی کوو .

رابرت سن‌انګریز چه‌په ۱۸۹۰ کال‌کښی نورستان‌ته تللی ؤ دده عقیده‌داوه
چه « نورستانیان دهنداو شرقی آریانانو یوه څانګه‌ده چه په یوواسمه عیسوی پیړی
کښی‌یې داسلام د منلوڅخه غاړه غړولی او دنورستان موجوده غر نیو سیمو ته د
پناوړلو په غرض وړتول شوی وو او اوس یی له لرغونی توکم څخه پر سو ن ،
جامیان اواسیان اونور پاتی د ی . »

دتاریخی اسنادو څخه‌داسی معلومیږی چه دنورستانیانو تا تو بی پخوا دومره

---

( ۱ ) په دې باب ( نور ستان ) نو سی کتا ب د محمد صفر غرز ی تا لیف
( ۱۸ ، ۱۹ - مخونو ) ته رجوع و کړیء .

وړوکی نه ؤ .

نورستان یووخت دیونانیانو دقلمرو جز ؤ وروسته د کوشانیانو او یووخت په کاپیسا کښې دساکانو د سلطنت جزؤ .

کوم وخت چه نامتو چینی سیاح هیوان څانګ په ( ۶۳۰ ) عیسوی کښې راغلی ؤ نورستان هغه وخت دیوه مقتدر سلطنت جزؤ چه دغوربند اوپنجشیر وادی ، لغمان ( لمپاکا ) ، ننګرهار ( ناګارا ) اوورځیرمه سیمی هم ور کښې شاملی وې . دا موضوع ( کیمبرج هیستری آف انډیا - لومړی جلد ۵۶۶ - ۵۵۵ مخونو کښې ) لیکلی ده - بل انګریزی ( یول ) نومی محقق د ارغونی تاریخ له مخی نورستان د هغه سلطنت په قلمرو کښې داخل ګڼی چه د کابل او کشمیر ترمنځه واقع او په منځنیو پیړیو کښې د ( بیلور ) په نامه یادیده ( انسایکلوپیډیا بریتانیکا جلد ۱۳ - مخ ۳۴۸ ) .

د ( اسلامی انسایکلوپیډیا دویم جلد ۶۲۰ مخ ) په قول نورستان دمسیحی عصر په لومړیو پیړیو کښې د کوشانیانو دامپراتوری په قلمرو کښې شامل او د کاپیسا په شمول دغه ټولی غرنی سیمی د ( کاتور ) په نامه یادیدلی . اوس د نورستان یوه لویه قبیله چه د ( کتر ، کاتی ) په نامه یادیږی له هم دغه ( کاتور ) څخه ده . دغه نوم اصلا د یوه کوشانی واکمن ( کیداره ) څخه اخستل شوی ګڼل شوی دی .

کپتان ( ودو ) او ( یول ) په دی عقیده دی چه مارکو پولو چه کوم توکم کسم ( کیشم ) ته نژدی د کوکچی په وادی کښې لیدلی دی هماغه نورستانیان

دی‌چه هغه‌وخت دهندوکش په‌شمالی برخوکښی میشته‌وودسرارل‌ستین په عقیده د نورستانیانو د نفوذ لمنه تر واخانه رسیدلی وه او دوا خان لرغونی کلاگانی‌او حصارونه ددوی دلاس نخښی دی .

د کوهن او گریرسون په عقیده دنورستانیانو دنژادخانگه د ( نورودار د ی قبایلو په‌شمول ) هغه وخت له هندوآریایی قوموڅخه بېله شوی وه چه لا په دوو څانگو ( هندی ـ آریایی ) نه‌ؤ ویشل‌شوی .

کله‌چه تیمورگورگانی په ( ۸۰۰ هـ ) کښی‌دهنددنیولو اراده لرله‌داندراب خلکو ورته د ( کتور ) دقبایلوله لاسه‌شکایت وکړ . تیموردهند لاره بدله اوپه نورستان‌یی یرغل شروع کړ .

مگر په دغه یرغل کښی دده دلښکر زیاته برخه دنورستانیانو له‌خوا ووژل شوه .

با برپه خپلو یاد داشتونو کښی دنورستانیانو دلاسی یاد ونه کوي چه په پنجشیر به‌یې یرغلونه کول .

نورستان بیاپه ( ۱۸۹٦ ع ) کال کښی د اعلیحضرت عبدالرحمان له خوا ووهل شو او اسلام ور کښی خپور او زوړ نوم‌یی په ( نورستان ) بدل‌شو چی اوس‌په‌همدغه‌نامه شهرت‌لری . ( ۱ ) . او په دغه‌ترتیب اوسنی نورستان دلرغونی ( بیلور ) یوه لویه برخه ده.

---

۱ ـ پاسنی مطالب په آریانا دایر ة المعارف کښی لیکل شوی چه دلته یی لنډیز وړاندی شو .

د نورستانیانو دنژاد او د هغو ژبو په باب وروستنی تحقیقات وایی چه دوی ددارډی ( دادیك ) قبایلو یوه سهمه پښه‌اونورستانی ژبی‌ددارډی ژبو یوه څانګړی اوسهمه څانګه ده چه د لوید یځو محققینو له خوا کله د ( کافری ) او کله د ( دارډی ژبودلویدیځی څانګی ) په نامه یادیږی .

نورستانی ژبی‌له ( کاتی،وایګلی، اشکونی،پرسونی )ژبوڅخه عبارت د ی . دلته به‌په دغو ژبولنډه شان رڼاواچول شی .



## کاتی ژبه :

ترمخه وویل شول چه دنورستان په ژبو کښې د ویو نکو د ډیروالی له مخې کاتی ژبه مهم ځای لری . داژبه چه د ( کتر ، کتور ) دقبیلې ژبه ده په دووسهمو دیالیکتونو : ختیځ دیالیکت ( دباشکل په دره اوورځیرمه سیمو کښې ) اولویدیځ دیالیکت ویشل کیږی . دغه ژبه د کاتیو ( دپیچ دسین دښې مرستیال ) په دره اودرا مګل او کولوم ( دالینګار مرستیالانو ) سیمونو تر منځه ساحه کښې مروجه ده . دانظریه سمه ښکاری چه د کاتی ژبې د ټولو د یالیکتونو اصلی ټاټو بی د کاتیو دره ده چه بیاوروسته له دغه ځایه خپاره شوی دی .

څرنګه چه دغه ژبه د باشګل په دره کښې هم ژوندی ده ځینې کسان یی د باشګلی په نامه هم یادوی .

دلته د گاتی ژبی یو وړو کی متن د ترجمی سره د ښکار ندوی په ډول وړاندې کیږي . (۱) .

e manje du pitr azamme, amño
Pamiju kaniśte tot-os-tą giji karas:
«eh tot-a, to, toi latri pamiju ī
baristā gac».

ي مانجی دو پیترازامی امنو پامیجو کنیشتی توت-اوس- توگیجی کړس .
(ایهمه توت ! تولاتري یامیجوي پرشته گڅ) .

ترجمه :
دیوه سړی دوه زامن و کشر یی خپل پلارته وویل :(ای پلاره دخپلی شتمنی ځخه زما برخه را بیله کړه) .

---

۱ - متن او دهغه تحلیل او ترجمه د گربرسیون دلینگو یستیک سروې اف انډیا .اتم ټوك دویم فصل(۳۲) مخ نه اخیستل شوي دي (دا ید لمن په حواله) .

تشریح :

ي (یو) داعدد دی چه په کاتی کښې یی بشپړه فورمه (یو) دی خوپه‌خبرو کښې مخفف شوی دی .

سانچی (دسړي) اسم‌ذات دمفرد غایب‌صیغه ده چه په‌دویم ګراسري حالت کښې واقع شوی ده . دو( دوه) شمیر دی .

پیټر :(زوی، زامن) اسم ذات په لوسړي حالت کښې واقع دی . ازامی-(وو) دجمع غایبی صیغه چه دکوسکی ساضی فعل نه جوړ شوي ده . امنو پاسیجو : (له دوی څخه) (امنو) اشاري ضمیردجمع صیغه ده‌او یاسیجور (له-څخه،'ه‌منځه) خدمتی کلمه ده .

کانیشتی : ( کشر ، وړوکی) صفت دی دستایسی په فورسه کښې . توت ـ اوس ـ تو : (خپل پلارته) . (توت ـ پلار ،اوس- خپل ،ته ـ ته) .

کیجی(خبره کلمه) اسم‌ذات کړس(وکړ) خبره وکړه وویل). (کړ- کول- اس دغایب متصل خپلواك اینګلیتیك) ضمیر دی .

ایه ـ(ای، وا)دندا غږدی. توته ـ (پلاره) ! ( توت-پلار) او (ه) دندایی حالت ننبه ده .

تو (ستا) دمخاطب مفرد اضافی ضمیردی . لاتري (شتمنی) لاتري یاسیجو- له شتمنی څخه) .

ې(زما)دمتکلم‌مفرداضافی‌ضمیردي.بړشته-(برخه)اسم‌ذات‌په‌لوسړي‌حالت‌کي.
ګاخ (راکړه) دمفرد مخاطب دامر صیغه ده .

## وايگلي ژبه:

وايگلي دياليکتونه په دو واساسي څانگو ويشل کيږي :

الف : دوايگلي ددرې په لانديڼيو برخو ، هغو ته په ورڅيرمه د کونړ دسين په غاړو کښې .

ب : اساساً دوايگل دره کښې اولې څه په ژو نجيگل ، درين او جا ساميش کښې . ددغو دياليکتونو توپير اصلا دفونيتيك په برخه کښې موجود دی .

دلته دوايگلي دژو نچيگل دمتن نمونه وړاندې کيږي (۱) :

ew manaṣ̌tā̈-bā̈ dü pṻtr oṛē·düyā̈
kēnī köštō̈ pü̈tras tā̈tisā̄-ken mā̈tre:
«tā̈t-e, tṻ-bā̈ mā̈la mā̈ṭī ṻ mā̈ṭā̈nē
gre».

---

۱- دمتن دغه نمونه دايدلمن له کتابه چه حواله يې په ما رگين سترين ورکړې ، واخستله شوه .

یوسانشه به دوړوترا ړی . دویه ـ کینې کوشتو پوترس تاتیسه ـ کین ماترې
(تانې توبه ماله ستې او ستانې اوکړې) .

**ژ باړه :**

یوه سړي دوه زامن لرل . له دوو څخه یوه کشرېی خپل پلارته و ویل:
(اې پلاره ! خپله شتمنې وو یشه او زما برخه راکړه) .

**تحلیل :**

یو ـ (یو) شمیردی . مانشه به ـ (سړی) اسم ذات (به) داضافت وروستاړی دی .

دو ـ (دوه) شمیردی . پوتر (زوی) اسم ذات . اړې (وو) دماضی کومکی فعل دمفرد او جمع له پاره یوه صیغه لري . دویه کینې (له دووڅخه) شمیر په دویم حالت کښې (کینې) ادات دی د(څخه نه) په معنا، کوشتو (کشر) صفت دی چه دمقایسې په فورمه کښې دی . پوترس (زوی یی) پوتر (زوي (س) داضافت وصلی ضمیر دی . تاتیسه ـ کین ـ خپل پلارته ـ تات ـ پلار (س) د اضافت ضمیر دی . ماترې ـ وویل ـ دغایب مفرد دماضی صیغه . ې ـ ندایه معمول دی.

تو ـ به (ستا)(تو/ ـ شخصی ضمیر (په) داضافت نخښه ده . ماله (مال، شتمنې) اسم ذات دی . (زور) دجمع نخښه ده مفردیې (مال) دی .

ستې ـ د(ویشلی ، بیل کړی) فعلی صفت دی . (او) (زما) ضمیر په دویم حالت کښې .

ستانې (برخه) فعلی اسم دی چې له (ست ـ ویش) څخه اخستې شوی دی.
(او) (ماتو) ضمیر په دویم حالت . کړی (راکړه) دمفرد امر صیغه ده .

# اشکوڼی ژبه :

دنورستانی ژبو په لړ کښې یوه هم اشکوڼی ژبه ده . د د غې ژبې دژوند تاتوبې دالینګار او پیچ درې ترمنځ ساحه اوور څیرمهسیمې دی . دنورستانی ژبو په لړ کې اشکوڼی د کاتی او وایګلی سره زیاته خپلوی لری . اشکو ڼی ژبه د نورو نورستانی ژبو په شان په یولړ دیالیکتونو ویشل کیږی .

ددغو دیالیکتونو په جمله کښې (واسی) او (وامایی) دیالیکتونه د اشکوڼ ددرې له ژبې څخه نسبتاً لرې دي .

دمتن ښکارندوی(۱)

kūṛum bagōs kal.cēi Aškuṇū
tọ wiētä ba, sakāṛye mıš wērī
kales, saka Aškuṇū tọ ta kudālāi:
«yāk imba wērī tọ kūṛū zudā
cē?»

(۱) د متن د غه نمونه دایدلمن له کتابه واخستله شو ؛ چه هغه د مارګین ستریِن له کتا به اخیستی ده.

**ترجمه:**

کله چه ته کوم پلوځی کوم اشکو نو ال وو ینی ته ورسره خبرې و کړې
نو اشکونو ال له تا پو ښتنه کوی : تا زمو نږ ژبه چیر ته زده کړه .

**تحلیل:**

کوړم : ( کو نو م ) - ( پلو ، خوا، لو ری ) د (به ) سره د ( کو م پلو
کومه خوا ) په معنا .

گوس : (لاړې ) دمفرد مخاطب ماضی مطلقی صیغه ـ دلته دحال (ځی) معناور کوي.

کل: ( کله کوم وخت ) دتا بعی زمانی جملی د ربط له پاره .

ځیی : (څوك ، کو م ، څو ك ) .

( اشکو نو ( اشکو نو ال اشکو نی ) نسبتی کلمه ده چه (اسکون) ته یی
نسبت شوی .

تو ( ته) دمفر د مخا طب ضمیر په دویم حالت کښی .

ویته : (ولید) ما ضی مطلقه (دلته دحال په معنا ) .

به : ( کیږی، کیدا ی شی ) دفعل ر یښه (به) ده چه د (شول) او (کیدل)
مرستیال فعل دی .

سکه ړ یه میش : ( له د و ی سره ) دلری و ا تن له پا ره دجمع ا شا ری
ضمیردی چه په دویم حال کښی وا قع شوی دی .

و یرې کلیس : (خبرې کوې) - ( ویرې) د (ژبی،خبرې) معنا ور کوي او
کلیس دحال دمفرد متکلم صیغه ده چه د (کوې) معنا و ر کوي .

سه گه : (هغه دی ) دلرې و اتن اشا ري ضمير دی .
ته : (ته) ادات د ي چه د سمت معنا ا فا ده کوي .
کود الای ( وبه پو ښتی ) دمستقبل دغا یب مفر د صيغه ده .
ییك (دغه) دنژ دې له پاره دمفرد اشاری ضمير دی .
ايميه (ز مونږ) دمتکلم جمع اضافی ضمير دی .
کورو (چیرته په کوم ځای کښې ) ظرفی سوا لیه ضمیر د ی .
ز و ده ځی ( زده کړي ) زوده د(زده) معنا و ر کوي او (ځی ) د کو لو دمفرد او جمع غا يبی ما ضی فعل د ی.



# پراسونی ژبه:

دغه ژبه چه د پراسونی او پارونی (د کریرسون لهخوا سینواري او ویرونی (۱) پهنامه یاده شوی دپارون نومی سین (دپیچ دکینړ سرستیال) ددرې په پاسنی برخه کښې ژوندی ده .

دغه ژبه له نورو نورستانی ژبو څخه ډیر دلرې ده چهداسی ډیر ژبنی عناصر لری چه هغه اینډ وارو پاپی نه دي او داسی معلومیږي چهدغه عناصر دکومی مغلوبې (سوبستراتوم) له ژبې ور کښې پاتی دي .

د پراسونی د لهجو ترمنځه تو پیر ببخی لږ دی چه هغه هم په لغوي پانګه او د غږونو په سیستم کښې لیدل کیږي .

دلته یوورړوکی متن دبېکارندوی په توګه وړاندې کیږی .

Wulu əncerā atek žīciwə ācəkso. unzū ütyöiš: «aləkžīčīw a-žī-pči, ažitẽ te-gə́m a-pli psü n-ōc» ilyäg-lom. üyū žīčīš sag n-ā-žī-Pčegnē Pscog-laš? ütyöiš unzū orod mārasum.

ترجمه :

پرون کوم لیك را ورسید (له لاندې خوا راغی) ماتاته (وو یل) دالیك پورته یو سه په پا سنی با نډه کښې یی ور کړه (هلته یی پر یږ ده او را ښکته شه) تا ولی لیك پر یښو د وردې نه وو ړ ما به ته و هلی و ای .

تحلیل :

او لو س (بل، بله) دلته یی معنا (پرونی) د ی .

انځیره (ورځ ) اسم ذات د او لو س سره یی معنا (پرون ورځ ، ابله ورځ) .

اتیك (یو، کوم یو،) دتنکیر له پاره .

ژ یچیو (لیك ، کاغذ ) اسم ذات مفرد په لو سړی حالت کښې .

اڅکسو (راورسید ، راغی ) د (څ) معنا(راتلل ) دی دماضی مطلقی صیغه.

او نز و زه) دمفرد متکلم شخصی ضمیر دی .

او تیو و یش (تا ته ) دمخا طب مفرد ضمیر په دویم حا لت کښې .

الك (هغه) اشاری ضمیر د ی .

اژ ې پیچی(پورته کړه)(اژی-پو رته خواته ) او (پیچی-وړل)دامرصیغه ده.

اژ یتی (پا سنی، هسك ) صفت د ی .

تیگیم (بانډې ته ، کلی ته ) ( گیم )د( بانډې، کلی ) په معنا او(تی-ته) د پښتود (ته) معنا ور کوی چه دحر کت سمت او خوا ښئی .

اپلی (ور کړه) (پلی ورکول) او (الف) سیمه ا یز سو فیکس دی .

پسو (پر یږده ، کښېږه ده )دفعل مفعو لی صفت دی چه دلته دامرمعناوو کوی

نو ځ ( را کیښنو زه ، لا ندې را شه ) ( اځ ) د (را تللو ) او (ن) سیمه-
ایز سو فیکس دی .

ایلیپا گلوم ( ما وویل ) ایلیلو د(کولو) او ( ویلو ) دوا په معنا ورکوی
چه دمفرد متکلم دما ضی مطلقی صیغه ده .

رو یو (تا) دمفر د مخا طب شخصی ضمیر دی .

ژ یچپیش (لیک، کاغذ ) اسم ذات په دویم حالت کښی .

سگ (ولی ، څله) سوا لیه ضمیر دی .

نا ژی پچیگی (پورته و ی‌نه وور ) تحت‌اللفظی معنا یی (پورته نه کړ)دلته
(ن) دنفی معنا ور کوی .

پسخوك (پر ې دې شود ) دما ضی مطلقی دمفرد مخا طب صیغه ده .

او تیوش (ته) دمفرد مخا طب شخصی ضمیر دی په دویم حالت کښی.

او رو د ما زه سوم ( وهلی به می وا ی ) ( او رو د ) د( و هلو ) په معنا
د کو مکی فعل (سوم )په مر سته د مفر د مخا طب صیغه ده .

یا دو نه :د د ار دی‌ژ بو په‌برخه کښی د اید لمن له‌کتابه استفاده شوې‌ده
دد ار دی ژبو گرامری معلو مات د ( ۱۳۵۱ ) کال د کابل مجلی په پرله
پسې گڼو کی خپاره شوی دی .

# ضمیمه

## افغانستان ته د تورکی ژبو دراتګ لنډ تاریخ

په افغانستان کښی سربیره پرآریایی ژبو اوآر یایی توکم نورې ژبی او نور توکمونه هم ژوند کوی چه په هغو کښی دیاد ولو وړمقام ترکی ژبی او ترکی نژاد لری .

دافغانستان په‌شمالی سیمو(په مزارشریف ، بغلان، میمنه) کښې له‌یوملیون څخه‌زیات اوزبکان، تورکمنان، قیرغیز یان، کازاقان او کره کالپاکان‌ژوند کوی .

د هرات په سیمه کښی یولړ نورتوکمونه هم شته چه اوس په فارسی خبرې کوی‌مګردتوکم په‌لحاظ هغوی‌سره خپلوان‌نه‌دی . دغه توکمونه له(تایمنی،(۱) ده زینتی، جمشیدی ، فیروز کوهی) څخه عبارت دی چه داتول د(چارایماقی) په نامه‌یادیږی اودنفوسو شمیریې له‌دوه زره اوپنځه سوه څخه زیات‌دی . په افغانستان

---

۱ـ دځینو محققینو په عقیده تایمنیان پښتانه دی، خواوس‌یې ژبه اوښتې‌ده.

کښې ځینې واړه توکمونه نورهم شته لکه (تیموریان ، لوریان ، بختیاران) همدارنګه په سیمه کښې یواځې شمیر کشمیر یان ، هندکیان ، چنګړ (جټان) ، عرب اونورهم ژوند کوي .

افغا نستان یوه داسې سیمه ده چه دتاریخ په پوړیو کښې بې دیر نژادونه په خپله غیږ کښې روزلي ، ډیرې ژبې ورکښې اوریدل شوي دي .

بابر په خپلو یادونو کښې یوازې دکابل په ولایت کښې دډیرو توکمو نو یادونه کوي :

دی لیکي چه دکابل په ولایت کښې پښتانه ، تاجیکان ، پشه یان ، ایماق ، تورکان ، عرب ، سارتان ، پراچیان اوبرکیان ژوند کوي . دی لیکي چه دکابل په ولایت کښې په پښتو ، فارسي ، تورکي ، عربي ، مغولي ، هندي ، پراچي ، برکي (او رسړي) ، عبراني ، پشه ئي او امکاني خبرې کیږي (۱) .

اوس سونږ ګورو چه نورې ټولې ژبې له منځه تللې او دخلکو ژبه یې پښتو او فارسي (دهندیانوهندي) ژبې پاتې دي .

له دغه ځا یه اټکل کولای شو چه په افغا نستان کښې به پخوا ډیرې ژبې ژوندۍ وې چه اوس سونږ دهغوپه باب معلومات نه لرو .

په هرصورت دافغانستان په اقلیتونو کښې دتورکي ژبو ګروپ دیادونې وړدی چه غواړم دلته دهغو دراتګ اوتاریخي سیر په باب څه وړاندې کړم .

---

(۱) (دافغانستان تاریخ) دویم ټوك ، سولف مسعود ، اورسودین (۱۰-۱۱) مخونه .

د منځني آسيا دتوکمونو په باب دلرغونو يوناني مؤرخينو په تأ ليفا تو او دهخا منشيانو په کتيبو اوداويستاپه رواياتو کښې چه دقبل الميلاد ز رو کلونو په جريان کښې ليکل شوي مؤرخ ته دااجازه ورکوي چه دمنځني آسيا داوسيدونکو مطلق اکثريت آريايي توکمونه وګڼي ـ اوبيا ډيروروسته په د غه سيمه کښې تورکی ژبی نسلونه ميشته شو ل . د ميلا دي پيړيو په سر کښې د غې سيمې ته دچين له سرحدونو څخه د کوچي لويو قبايلو هجوم شروع شو چه په وروستيو پيړيو کښې به کله کمزوري او کله به ډيرزور ورو . لوړي دغهقبايل په منځنی آسيا اوبيا پهايران کښې خپاره شول. دغوتورکیقبايلودميلا دی پيړيوپه سر کښې دچينا يی ختيځ تورکستان سيمه ونيوله چهدغه سيمه ددوی پهنامه په تاريخ کښې يـا د يـږي .

د غه وخت په چينی ختيځ تورکستان کښې باختری توکم ساکی ـ تخاری قبايل اوسيدل چهدباختری ژبو پهبيلو بيلو دياليکتونو يې خبرې کولې .

دد غو ساکیتخاریقبايلو يوهبرخه دقبل الميلاددوهزره کلونو پهجريا ن کښې دلرغونی باختر او درنګيانا( سيستان ، هيلمند . . . ) سيموته راغلی و و .

ددغو قبايلو بله برخه چهپهتاريخ کښې د هيون ـ افتاليانو په نامه ياديږی په ميلا د ی څلورمه اوپنځمه پيړی کښېراوکو چيد ل ا و په بين النهرين ا و تخارستان کښې ميشته شول اويوشمير يې هما لته پهچينی تو ر کستا ن کښې پاتې شو ل . دغو پا تی شو يو قبا يلو په ( ۸ - ۹ ) ميلا دی پيړ يو کښې بودايی مذهب دراود اوبودايي متنونه يې پهخپلو ژبو اړولی ووچه په دېباب

په‌ختوتن او دچینی تورکستان په‌نورو وادیکانو کښې لاس ته‌راغلی گتیبې شاهدي ورکوي . له‌دغه وخته‌وروسته‌دباختري ژبوآثارپه‌دغه‌سیمه کښې نه‌څرگندیږي . دلته باختري ژبې نور دتورکي ژبو سره دگډوډي په‌اثر له منځه تللې دي .

دتورکي قبایلو دهجوم قوت‌په منځني آسیا کښې په‌بین‌النهرین کښې‌خصوصاً د کاقا نات ( شپږ مه میلا دی پیړی . ٦ - ٧ کلونه ) دوا کمنی، دقره خانی ( دلسمی پای د یولسمی لومړی نیما یی ) کښی‌او د تورکی قبایلو د یووالی په وخت کښې ډیرزور وروو .

په همدغه وخت کښې دوی له‌یوی خوا د کرنې د چارو سره زیات آشنا او دمالداری اوکوچی ډوله ژوندنه په‌ځنگ شول او له‌بلې خوادآریایی ژبو و یونکو سره خلط اوگډوډ میشته شول .

دتورکي ژبوسره داختلاط اوگډوډي په‌اثریو لړبوسی باختري ژبې‌اولهجې له منځه لاړې اوځای‌یې‌تورکی ژ بوونیو چه‌ددغو له‌منځه تللیو ژبوپه جمله کښې یوه لرغوني باختري ژبه‌سوغدی‌ده . د ژبود گډون په ساحه کښې سو غدیان لومړی دوه ژبی‌شول چه‌په‌خپلو کښې به‌یې په‌سوغدی خبری کولې اودتورکانو سره په تورکی ، بیایې ورو په ورو خپله‌ژبه‌دتل له‌پاره هیره اوتورکی ژ بی‌شول .

د غسې حال‌دمنځنی آسیاپه ډیرو سیمو کښې لیدل کیږي ، مثلا د نامتو عالم‌البیرونی خپله‌ژبه خوارزمی وه سگرددہ په تالیفاتو کښې زښت ډیر تورکی لغات ، جملې ، بشپړ عبارات اودیالوگونه لیدل کیږي . له دغه ځایه معلومیږي چه په خوارزم کښې هم‌په دیارلسمه پیړی کښې تورکی ژبی‌زښت ډیرو و، چه

بالاخره خوارزمی ژبه مغلوبه اوځای یې تـو رکي ژبو ونیو چه له ( ۱۳ ) پیړی وروسته دخوارزمی ژبې آثاربیخي ونه لیدل شول .

دتورکی ژبو په اثرځای په ځای دفارسی ژبې ساحه هم ورتنګه شوه اوپه یو لړ سیمو کښې لکه فرغانه ، دچیرچیك د سین حوزه ( تاشکند ) ، زرافشان دره ، سورخان دره او نورو کښې دهغې ځای تورکی ژبو ونیو .

دسلجوقیانو ( ۱۱ – ۱۲ پیړۍ ) په عصر کښې تور کی ژبې قبایل د ایران دفلات شمال ـ لویدیځو سیمو ( آذربایجان ) ته وکوچیدل او هلته میشته شول . په جنو بی آذربایجان کښې هم د بومی آر یایی د یالیکتونو او تورکی ژبو ترمنځه اختلاط اوګډ ون شروع شو .

هلته دتورکی ژبو غلبه وخت په وخت زیا تیدله چه له یوې خوا وروستنیو مغـو لی هجو مونو ور سره مرسته و کـړه او له بلـې خـوا د نو یو تورکی ژ بو د هجوم طوفان هغې خوا ته مخ په زیا تید لوو او له بلې خوا بو می خلکو هم د خپلـو ژ بو په ځا ی و ر و په و روتور کی ژ بـې خـپلـو لی او او خپلې یې هیرولې چه بالاخره یې خپلې ژبې بیخی هیرې کړې . بیخی لږ ویی خپلې لرغونې ژبې لانه دي هیرې کړې لکه تالیشیان او تا تیا ن . په تا ر یخی خراسان کښې د کور دانو په مقابل کښې هم دتورکی ژبو دغسې تا ر یخی سیر ولیدل شو چه ځای په ځا ی یې ددوي د ژبې لمن ورټوله کړه او ځای یې تور کی ژبو ونیو.

په دغه صورت دتاریخ په رڼا کښې لیدل کیږي چه دتقریباً یو نیم زرکلونو په جر یان کښې تورکی قبایل دمنځنی آسیا په پراخه سیمه کښې خپاره شوي او

بوسی ژبې یې متأثرې کړې دي ـ څه یې بیخی له منځه وړي او دځینونوروډژوند ساحه یې ورتنګه کړې ده ( ۱ ) .

دافغانستان په معاصره خاوره کښې هم دتور کی ژبو قبایلوسیر دمنځنی آسیا د نورو سیمو تار یخی سیر ته ورته وو .

دیفتلیا نو دوا کمنی له سقوطه وروسته چه په ځلورمه میلادي پیړی کښې جوړه شوې وه د ( ۵۹۰ - ۶۲۷ ) کلونو تر منځه دتور کانو او ساسانیانو تـر منځه دتخارستان ، تالقان او خوا اوشا سیمو دنیولو دپاره مبارزه روانه وه . مګر دتو ر کی تاردو شاد په وخت کښې دغه سیمی دتور کانو پهلاس ورغلی(۲) .

تور کی ژبو وخت په وخت دافغانستان په خاوره کښې دخپل نفو ذ سا حه پراخه کړې او ډیر وخت نه وتیر چه د کابل وادي یې هم دخپل تسلط لاندې را وسته . په میلادي ( ۷۲۶ ) کال کښې چه چینی‌زایر ( هوی‌چاو) دلته‌راغلی‌ؤ، هغه لیکلی دي چه : « ددغه ځاي پادشاه ادهغه دسپرو پلټن تول‌تور کان‌دي » دجنو بی تر کستا ن اودافغانستان له شماله دتور کانو نفوذ بیا دهند په نیمې قارې کی هم خپو ر شوچه تر ډیره وخته یی دوا م وکړ ( ۳ ) .

په منځنی آسیا کښی‌دتزاري روسیي دنفوذ په وخت کښې‌دزښتوډیروتورکی ژبو خلکو دپناه ځای افغا نستان و چه په دې مرحله کښې هم افغا نستا ن ته ددوی راتګ دیادونی و ړ دی .

---

( ۱ ) ـ مقدماتی ژبپوهنه ( ۲۳۶ - ۲۴۰ ) مخونه .

(۲) ـ دافغانستان تاریخ ،لومړی توك( ۲۰۹ ) مخ .

( ۳ ) ـ دپاکستان اولسونه ( ۱۰۸ - ۱۰۹ ) مخونه .

په منځنۍ آسیا کښې د آریایي ځایي ژبو سره د تورکي ژبو د اختلاف او غلبې په اثر لکه چه ترمخه وویل شول ډیرې ژبې له منځه ولاړې او ډیرې ژبې متأثرې شوې چه له دغې اغیزې نه پښتو هم په ځنګ نه وه . د ژبو د طبیعي قانون په حکم تورکي ژبو ډیر آریایي لغات له آریایي ژبو څخه واخستل او په مقابل کښې یې ډیر تورکي لغات آریایي ژبو ته ور کړل . فارسي ژبه چه دا خذ لوی استعداد لري له تورکي ژبو څخه زښته ډیره متأثر شوه مګر پښتو هم یو محدود شمیر لغات لکه توپ ، ار دو (پلټن) ، کتغ ، سوغات ، اولس او داسې نور چه اوس په پښتو کښې پر دې نه ښکاري د تورکي ژبو نه اخیستي دي .

دلته باید وویل شي دنو روژبو په مقابل کښې غلبه همیشه د تورکي ژبو په برخه نه وه بلکې داسې هم لیدل کیږي چه آریایي ژبو ځای په ځای د تورکي ژبو لمن هم ور ټنګه کړې او ترکي ژبو خلکو خپله ژبه پریښې او په ځای یې آریایي کومه ژبه منلې ده . مثلا د معاصر افغانستان په خاوره کښې چار ایماقو چه په تورکي مغولي ژبو خبرې کولې همدارنګه قزلباشا نو چه پخوا په تورکي ژبو خبرې کولې او په اتلسمه پیړۍ کښې د شمالي ایران نه افغانستان ته راکوچیدلي همدارنګه د مغولي او کمنوپاتې شوني هزاره چه ځینو ګروپونو یې لا د نولسمې پیړۍ په سر کښې په مغولي دیالیکتونو خبرې کولې د غو ټولو اوس خپلې ژبې بیخي هیرې کړې دي .

همدارنګه په هند کښې هم تورکانو خپله ژبه له لاسه ورکړه او هندي محلي ژبې یې ومنلې چه مفصله خبره یې لازمه نه لیدل کیږي .

## په افغانستان کښې دعربي ژبې تاريخي سير:

په معاصر افغانستان (اوپه منځنۍآسيا) کښې دعربۍژبې تاريخ هم ديادولو وړ دیچه تر اوسه يې بوسې ژبې (خصوصاً پهلغوی پانګه کښې)لدا غيز ې نه متأ ثرې دی.

منځنۍآسيا ته داسلام دنفوذ سره سم دعربي ژبې دنفوذ لمن راوغزيده .

په هجری (۸۱)ميلادی (۷۰۰) کال کښې عربی ژبه په منځنۍآسيا کښې دعربو دنفوذ دلاند ې سميوله پاره درسمې ژبې په حيث اعلان شوه .

مګر پهدغهوخت کښېچه اسلام ددغوسيمو هرې برخې ته لاخپلې ريښې نهوې غزولې او دعربو فاتحانو تسلط په محدودو مرکزی سيمو قايم والبته دعربي ژبې نفوذ هم لاد وسره زيات نه و .

مګر دعربو دتسلط دټينګيدلوسرهسم دعربي داستحکام اوزياتو خپريدلو لهپاره لارهاواريدله . دتاريخی اسناد وپه شهادت دميلادی اتمې پيړۍ په سر کښې په خراسان او ساورءالنهر کښې عربی ژ به نه يوازې دعربو دليك او لوست ژبه وه، بلکې دمحلي ميرزا يانو او رسمی اشخاصو دليك او لوست ژبه هم وه .

په دې باب په ساورأ النهر کښې د سوغد دپاچا ديواشتيچ هغه ليك ښه شاهد دی چه په خراسان کښې بې عربي حاکم ته په (۷۱۸) کال ميلادی کښې ليږلی و . دوخت په تيريدلو سره ورو په ورو د عربي دنفوذ لمن له مذهبی او رسمی چارو څخه دتسلط لاندې اولسونو داشرافی کورنيو کلتور او دژوند په نورو چارو کښې افادې او استفادې ته هم وروغزيدله . دغو کورنيو دعربي په

ذریعه عربو حاکمانو او واکمنو مقاماتوته ځان نژدې کاوه ، زیاریې ویسته چه عربی ژبه زده او په هغې پوره تسلط ولری او په دغه ترتیب یې په عربی کښې داشعارو په لیکلو ، ادبی ، علمی او مذهبی تالیفاتو هم پیل وکړ . په (۸-۱۱) میلادی پېړیو کښې ددغو سیمو دعالمانو لهخوا دمذهب ، حساب ، الجبر ، طب، حقوق ، نجوم ، فلسفه اونورو علومو په ساحه کښې په سلګونو آثار او تألیفات منځ ته را غلل چه نامتو لیکوال یې البیرونی ، فارابی ، ابن سینا،محمود قاشقاری او نورو و .

داوخت داسلامی تولو هیوادونو دپاره عربی ژبې په علمی ساحه کښې دبین المللی ژبې همې حیثیت لاره لکه څومره چه په منځنیو پېړیو کښې لاتینی ژبی په ټوله اروپا کښې لاره . داوخت په عربی ژبه دشعرویلو دودهم ډیر زیات شو . ثعالبی (لسمه پیړی) په خپل اثر (یتیمات الدهر) کښې لیکلی چه دده په وخت کښی دعربی ژبی (۱۱۹) شاعران په خراسان او ماوراء النهر کښې موجودو و .

البته له دغه جریانه پښتني سیمې او پښتانه هم لرې او ډیر په څنګ نه شول پاتې کېدلای ډیرو پښتنو عربی زده کوله اوپه هغې یې حتی پاخه شعرونه ویل : دلته دمثال له پاره دهجری دریمی پیړی یوپښتون شاعرته ګوته نیسو دغه شاعر دهلمند دسروان او سیدونکی محمد هاشم بن الزید السروانی البستی دی چه سر بیره پرپښتو دعربی ژبې شاعر هم و (۱) .

---

(۱)- پټه خزانه، دویم چاپ (۵۸-۶۰) مخونه.

البته دا ته باید وویل شي چه عربي یوازې دهغې لوړې طبقې و ګړي د خپل نفوذ په چاپیر یال کښې متاثر کړي وو چه دمذهبي یاسیاسي هدفونو دلاس ته راوړلو په غرض دمورنۍ ژبې په شان زده کوله اوپه رسمي او دولتي چارو کښې یې تری کار اخیسته. دهیواد د اولسي خلکو په ژبه د عربي کوم تاثیر پروت نه و دوی ته عربي ژبه دتل دپاره پردی وه. مګر دد وی ادب نور په لیکه اولوست کښې نه ویوازې دفلکلور په دول دخلکو تر منځه ژوندی و.

دتاریخي اسناد و په شهادت ویلای شو چه دعربي په مقابل کښې د پښتو مقاومت نه یوازې په اولسي خلکو بلکې دپښتنوپه لویو کورنیو کښې هم موجود و، په دې باب داسیر کروړ (دویمې پیړی پیل) دحماسي شعر قوت اود ژبې سوچه والي لوی شاهد دی چه له یوې خوا د عربي ژبې یولغت او دعربي ادبیاتو یوه تشبیه هم ورکښې نشته او له بلې خوادشعر قوت دا ښیي چه پښتوتر دغه عصره پورې ډیر قوی او پیاوړی ادبیات لرل بل ښه مثال یې د ابن الزید السرواني له خوادخپل استاد (ابن خلاد) دعربي شعر ترجمه دچه په دریمه هـ پیړی کښې یې کړی مګرله عربي نه متأثر ه ده. خومتاسفانه دټول ګلبن څخه یې یوازې همدایویادوه ګلونه دښکارند وی په دول زمونږ په لاس کښې دي بلکې د اسلام دخپرید لو څخه وروسته د (۵) هجري ددویمې نیما یې پورې په سیمه ایزو ژبو (نه په فارسي ،نه په پښتو) لیکلي ادبیات تقریباً په لاس کښې نشته. مګرکله چه په منځنۍ آسیا او له هره ځا یه زیات په افغانستان کښې دعربو په ضد او د خپلو اکۍ دحصول په غرض مبارزې شروع شوې ځای په ځا ی ملوك الطوایفي او

سیمه ایزې حکمرانی منځ ته راغلی د لوړې طبقو کورنیو چه پښتوا تو له پاملرنه دعر بی ژبې او دهغې دادبیا توزده کړی ته اړ ولې وه نو ر مجبور شول چه دخپلو اولسونو د پاملرنی راگرزولو په غرض ددوی ژبو او ادبیا تـو تـه ستو جه شی او هـغـه دعر بو په ضد د درستې اوو سلې په حیث استعمال کړی چه داحرکت دهجری څلورمې پیړی له دویمې نیمایی څخه وروسته پهڅرگندیږی چه وروپه ورویی دعربو او عربی له تسلطه خپل هیواد اوخپل کلتور خپلواك کړل لومړی دطاهر یانو بیا د صفاریانو او ور پسی دسامانیانو دولتو نه جوړ شول اوعربی ژبه له رسمیا تو څخه ولویده .دا څرگنده نه ده چه دعر بو له فتوحاتو و روسته دلومړی څل له پاره دچاله خوا کله او په کوم ځای کښی دمحلی ژبو دپاره د عربی الفباء ومنله شوه .

مگر داخر گندهده چه دطاهر یا نو او صفاریانو پهعصر کښی وروپه ورو دعربی دنفوذ لمن ور تو له او دساما نیانو په عصر (۸۷۵-۹۹۹) میلادي کښی چه پا یتخت یی بخارا او فارسی رسمی ژبه شوه . دعربی نه وروستهفارسی ژبه کله دفارسی کله دنوې فارسی او کله ددري په نامه هم یادیږي .

په عربی الفبا دفارسی لومړی متن ( تاریخ طبري ) اولسی څلوریزې رانقل کړي دي چه دعربی حکمران اسد ابن عبدالله دماتې په باره کښې پهبلخ کښی ویل شوې دې .

داهغه وخت وچه دبلخ دښارغالباً په کومه برخه او محله کښی فارسی رایج شوې وه مگر دالبیرونيدروایت سره سم دبلخ په ولایت کښی د باختري

( بلخی ) او ( تخاری ) ژبې او لهجې عامې وې ( ۱ ) چه غالباً دپښتو بیلې بیلې لهجې دی . حدود العالم دپښتنو دلوبې قبیلې غلجیانو داستوګنې ساحې غزنی بلخ ، تخارستان ، جوز جان او بست ښوولی دي ( ۲ ) . په هر صورت دعربی دنفوذ دلمن دور تیولولو وروسته په فارسی کښې زیات اصلا حات وشول چه اوسنی بنې ته راواوښته چه دسلطان محمود په وخت کښې خصوصاً په ادبی لحاظ ډیره بډا یه شوه .

دپښتو څه حال ؤ؟ ددې سوال ځواب دپښتو په بحث کښې وړاندې کوو. عربی له رسمیته ولوېدله مګر بیا هم دافغانستان په ځینو برخو کښې عرب پاتې وو چه عربي يې د خپلې مورنۍ ژبې په حیث ساتلې وه .

بابر په خپل توزک کښې دکابل دولایت دژبو اوتوکمونو دیادونې په لړ کښې دعربی او عربو دموجودیت یادونه هم کړې ده .دافغا نستا ن په یو لړ سیمو کښې عربی ژبه ډیر وخت دخلکو ژبه په کتارکښې ژوندۍ وه خواوس ځای په ځای په نامه عرب شته مګر ژبه یې دپښتو او فارسی په ذریعه عملاله منځه تللې ده .

البته عربی اوس نه یوازې دمذهبی مراسمو دژبې په حیث پا تې ده بلکې د مرکزی آسیا په ژبو یې دلغوی پا نګی لویه اغیزه پرته ده چه له هر څه زیا ت ورنه فارسی ډیره متأ ثره ده لهدغی اغیزې یې پښتو هم څه ناڅه خلاصه نهده.

دپښتو پهلغوی پانګه کښې دعربی لغاتو استعمال په څلورډوله لیدل کیږی: الف: هغه مذهبی اوځینی علمی اصطلاحات چه پښتو پخوا نه لرل لکه(حج،سنت

---

( ۱ ) ـ دافغانستان تاریخ لوسړی ټوك ( ۲۳۹ ) مخ .

( ۲ ) ـ ( د پاکستان او لسو نه ) ( ۱۳۵ ) مخ .

واجب ،فرض ،امر ،ماضی،حال ،متعدی) او نور .

ب: په ځینو موارد و کښی دعربی دلغاتو سره پښتو په کټ مټ،مفهوم یالږ تو پیر سره خپل ژوندی لغات لری لکه :

عر بی:فاصله ـ فرق ـ احسان ـ احترام .

پښتو :واټن ـ تو پیر ـ ښیګڼه ـلما نځنه.

ج: په ځینو موارد و کښی دعربی په ذریعه د پښتولغات دامی له منځه تللی چه دهغو ځرك یا په کلا سیکو ادبیاتواو یا په کوسه لهجه کښی لیدلای شو اوبس لکه:

عربی :عز م ـ منزل (مزل) نصیحت ـ اتفا ق ـ وعده.

پښتو :ویلا ړ ـ پند ـ ورم ـ سند ـ ژ منه .

د: په ځینو موارد و کښی پښتو دخپلو لغاتو دار لو یا نه لرلو په صورت کښی عر بی لغات اړ ولی اوخپل کړی یی دی لکه :وخت (وقت) خلك ( خلق ) بیه (بیعه ) کمیس (قمیص) .

**یادو نه**: په د ې مقاله کښی له ډیر وماً خذونو څخه استفاد ه شوی چه سهم یی دادی:

۱ـ «دافغانستان تاریخ »لوسړی توك ـ دمسون او روسودین تالیف د مسکو د ۱۹۶۴ کال خپرونه.

۲ـ «دپا کستان اولسو نه » دګانکو فسکی تألیف دمسکود(۱۹۶۴) کال خپرو نه .

۳ـ «ایرانی مقد ساتی فیلا لو ژی»داو رانسکی تالیف دمسکو د( ۱۹۶۰) کال خپر ونه .

## په‌دغه اثر کی د استفادی مأخذونه

الف ـ هغه ماخذونه چه زیاته استفاده ورنه شوې ده :

١ ـ دافغانستان تاریخ ـ لو سړی توك ـ مؤلفین و . م . مسون ـ او د . ا . رو مو دین دشوروي اتحاد دعلومو اکاډمی مسکو ( ١٩٦٤ ) کال .

٢ ـ ایرانی ژبی ـ مؤلف . ي . م . اورانسکی دشوروي اتحاد دعلوموا کاډمی مسکو ( ١٩٦١ ) کال .

٣ ـ « ایرانی مقدماتی فیلا لوژي » مولف ي . م اورانسکی دشوروي اتحاد دعلومو اکاډمی مسکو ( ١٩٦٠ ) کال .

٤ ـ « داوسیتی ژبی تاریخی ایتیمو لو ژیك قاموس ـ لو مړی توك » مولف و.ي . ابا یف دشوروي اتحاد دعلومو اکاډمی ـ مسکو ( ١٩٥٨ ) کال .

٥ ـ « دپاکستان او لسونه » مولف یو . و . گانکوفسکی دشوروي اتحاد دعلومو اکاډمی مسکو ( ١٩٦٤ ) کال .

٦ ـ « دتاجکی اولسی اشعارو ته تاریخه » مولف ای.س. براگینسکی دشوروی اتحاد دعلومو اکاډمی خپرونه ـ مسکو ( ١٩٥٦ ) کال .

٧ ـ « داردي ژبی » مؤلف د .ي . ایدیلمن دشوروي اتحاد دعلومودا کاډمی خپرونه مسکو ( ١٩٦٥ ) کال .

٨ ـ « دپهلوی . فارسی . ارمیانی . روسی او انگریزی قاموس » مولف

پروفیسر ابرامیا ن دشوروي اتحاد دعلوسودا کاډمي خپرونه ایروان (۱۹۶۵) کال.

ب ـ هغه ماخذونه چه نسبت لږه استفاده ورنه شوې ده :

۹ ـ « منځنۍ فارسي ژبه » مولف و . س . راستور گویفه دشوروی ا تحـاد دعلوموداکاډمي خپرونه مسکو ( ۱۹۶۶ ) کال .

۱۰ ـ « پامیری ژبی » مؤلف ت.ن . پخالینه دشوروی اتحاد دعلوموا کاډمي مسکو ( ۱۹۶۹ ) کال .

۱۱ « دیاز گولامي او شو غناني ژبو دگروپ ترمنځه نسبي خپلوي » مولف و. س . سو کولو نه دشوروی اتحاد دعلوموا کاډمي ـ لیننگراد (۱۹۶۷) کال .

۱۲ـ « اشکاشمي ژبه » مولفه پخالینه دشوروي اتحاد دعلوموا کاډمي مسکو ( ۱۹۵۹ ) کال .

۱۳ـ « دشو غناني ژبی باجودي دیالیکت» مو نو کر مونیك ،شوروي اتحاد ، دعلوموا کاډمي دوشنبه ( ۱۹۶۳ ) کال .

۱۴ ـ دروشانه او خوفي ژبو متنو نه او قاموسونه مولف و . س.سوکولونه دشوروی اتحاد دعلوموا کاډمي ( ۱۹۵۹ ) کال .

۱۵ـ «دختیځ هندوکش ژبي مونجاني» مولف گریوزبرگ، لیننگراد ۱۹۷۲ کال.

۱۶ ـ« افغانستان ته دلینگوستیك هیئت رپوټ » مولف. ج . مارگین ستترین ( ۱۹۲۶ ) کال .خپرونه اوسلو .

۱۷ـ«داوسیتي ژبي په باب یادونه »مولف فرانسوي ختیځ پوه ی. بینوینیست روسي ترجمه دشوروي دعلوموا کاډمي خپرو نه مسکو ( ۱۹۶۴ ) کال .

۱۸ - « د روسي ژبې ایتیمولوژیك قاموس » مولف ا. ګ. پري ابریژینسکي
دشوروي اتحاد دعلومو اکاډمۍ خپرونه مسکو( ۱۹۵۹ ) کال .
هغه مأخذونه چه پیخي لره استفاده ورنه شوی ده :
۱-«دهند او ایراني ژبو په سوادو کې دایر ګاتیف سیستم اساسي پرابلمونه»
مؤلف ل . ل پیرپیکو دشوروی اتحاد دعلوموداکاډمۍ خپرونه (۱۹٦۸) کال .
۲- « داینډو وایران سرحدی ژبې » ج . مارګین سترین(۱۹۲۹) کال اوسلو.
۳-دروسي ژبې ایتیمولوژیك قاموس ۱ ، ۲ ، ۳ ټوك د مسکو دپوهنتون خپرونه.
۴- «دنولسمې اوشلمې پېړۍ دژبپوهنې تاریخ لومړی ټوك»مسکو ۱۹٦۴ کال .
۵- «دهند . پاکستان، نیپال اوسیلون ژبې» دشوروی اتحاد دعلوموداکاډمۍ
د (۱۹٦۸) کال خپرونه . مسکو .
٦- «دختیځ پیژندونکو کانګرس» نوی کتاب ، نوی ډیلي (۱۹٦۴) کال .
۷- زړې سلاویاني ژبې ، مونو نیکیسفورف مسکو (۱۹۵۵) کال .
۸-«لرغوني روسي ژبه» ددیبروف اوافیچیسکوف تألیف دشوروی اتحاد درستوف
دپوهنتون خپرونه .
۹- «داینډو وآریایي ژبپوهنې پرابلمونه»مؤلف و . ي . ابایف دشوروی اتحاد
دعلوموا کاډمی مسکو (۱۹٦۴) .
۱۰- «تاریخ سیستان»رساله دشوروی اتحاد دعلوموا کاډمی ، ستالین آباد
(۱۹۵۹) کال .
۱۱-«شاهنامه فردوسي»(اومړی ټوك) (۱۹۵٦) کال،مسکو .

